جئناك بالحق واحسن تفسيرا

# درس بيضاوي

د تفسير البيضاوي پښتو شرح

# تفسير البيضاوي


تاليف

مناظر اسلام شيخ القرآن والحديث حضرت العلامه

ابو ابراهيم رحيم الله

الحقاني ننگرهاري


تقريظ او تائيد

شيخ الحديث حضرت مولانا مغفور الله صاحب مدظله

دارالعلوم حقانيه - اکوړه خټک

تحرير، ترتيب، تخريج

محمد بن الشهيد "بدري"

د تفسير بيضاوي يوازنی داسې شرحه چې د ضبط العبارة، اسانه او روانه ترجمه، علمي او تحقيقي تفسير او تشريح، حل اللغات، د نصوصو او اقوالو له تخريج او په نورو زياتو فوايدو مشتمله ده


مکتبة الحرم

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق
+923052488551
+923247442395







مالکی حنبلی

جِئْنٰكَ بِالْحَقِّ وَاَحْسَنَ تَفْسِيْراً

# درس بيضاوي

## پښتو شرحه

## د تفسير بيضاوي

مِنْ إفَادات

نابغة العصر مناظر اسلام شيخ القرأن والحديث **شهيد** مولانا **رحيم الله حقاني الافغاني**:

خادم القرآن والاَحَادِيْث النّبويّة

**تقريظ اوتائيد**

محدث العصر عمدة المحققين شيخ الحديث مولانا مغفور الله «بابا»

محدث جامعة الحقانية اكوړه ختك

د تفسير بيضاوي يوازنۍ داسې شرحه چې د ضبط العبارة، اسانه او روانه ترجمه، علمي او تحقيقي تفسير او تشريح ، حل اللغات ، د نصوصو او اقوالو له تخريج او په نورو زياتو فوايدو مشتمله ده

تحرير، ترتيب، تخريج

**محمّدُ بن الشهيد «بدري»**

# کتاب پېژندنه

دکتاب نوم ________ درس بيضاوي

من افادات: ________ فضيلة الشيخ حضرت علامه رحيم الله حقاني

ليکوال: ________ محمّد بن الشهيد«بدري»

تصحيح: ________ مولوي صفت الله«نعماني»

کمپوزر: ________ مولوي امداد الحق «شهاب»

ناشر: ________ مکتبة الحرم① محله جنگي پشاور② جاده ميوند، سر چوک، کابل

د چاپ کال: ________ اول: (١٤٤٤ هـ- ٢٠٢٣ م)

د صفحاتو شمېر: ________ (٥٢٨)

مطبعه: ________ مطبعة الحرم نديم سنټر دوکان نمبر (٢٠٧) محله جنگي پشاور

د افغانستان اړيکه او واټساپ:

٠٧٧٤٣٤٣٨٧٠-٠٧٧٩٣٩٥٩١٩-٠٧٨٨٧٩٧٩٤١-٠٧٨٨٧٩٧٩٤٢

د پاکستان اړيکه:

واتساپ: ٠٣٠٠٩٣٩٥٩١٩- ☎ ٠٩١٢٥٨٠٠٠٤

ګرانو لوستونکو!

دغه کتاب چې په نوم د درس بيضاوي شرح تفسير بيضاوي تاليف شوی دی له زيات کوښښ او زيار څخه وروسته که څه قسم غلطی او تېروتنه ستاسي په نظر راشي نو مهرباني وکړئ زموږ د مکتبة الحرم اداري ته خبر ورکړئ تر څو په راتلونکي کې دا تېروتنه او غلطي تکرار نه شي.

# إنتساب

د ټول امت مسلمه د شهیدانو پاکو او سپیڅلو روحونو ته ډالی، بالخصوص هغه چاته چې له امریکائي یرغلګرو سره ئې د پنځلس(۱۵) کاله اوږدې مبارزې وروسته په خپلو وینو د اسلام باغ سیرابه کړ او ځانونه ئې په خپل ځیبنتن د جنت په بدله کي وپلورل او د شهادت لوړ مقام ئې تر لاسه کړ لکه: هر یو استاذ محترم شیخ القرآن داع الجهاد فخرالشهداء والعلماء حضرت مولانا شهید **عبدالسلام** حقاني ننګرهاري تقبّله الله، او مجاهد کبیر امیرالمجاهدین نمونه اخلاص فاضل نوجوان فخر الشهداء حضرت مولانا الحافظ شهید **محمد کامران** «حیدري» تقبّله الله، او فخر لوګر نازولی شهید زموږ امیر او قائد قاري **محمد داؤد** «خالد» تقبله الله، روح دې ښاد او یاد دې تل تازه وي.

# تقریظ

شیخ القرآن والحدیث مناظر اسلام حضرت مولانا ابو ابراهیم رحیم الله الحقانی حفظه الله.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لله وحْده والصّلوة والسّلام على من لّانبىّ بعده.

امّا بعد:

فَلَقَدْ طالعتُ مَاكتبَه الأخ (محمّد بدري) فوجدتّه صحيحًا ونافعًا وارجُو من ذكاوته وجودة فهمه وحسن سعيه فى التّعلم ان يّكون ماكتبه صحيحًا وجيداً ونافعًا واسئَلُ الله من فضله ان يّنفع به وهو حسبى ونعم الوكيل.

كتبه العبدالأحقر

( رحيم الله الحقاني )

۲۰۱٦م

# تقریظ

شیخ المشایخ عمدة المحققین وسند المحدثین حضرت

مولانا مغفور اللّٰه «بابا» حفظه اللّٰه

الحمد لله وكفى وسلامٌ على عباده الذين اصطفى

اما بعد!

تفسير انوار التنزيل واسرار التاويل للعلامه القاضي ناصرالدين البيضاوي متداول قراءته، منذ أمَدطويل فى منهج النظامي وقد صرّح العلماء قديما: بأن المقصِدَ من قراءة تفسير الجلالين و تفسير البيضاوي، هو رفع المستوى طالب علم و استعداد ملكته فى مجال التفسير.ذالک؛ لانه بعد قراءتهما يقدر على الاستفادة من التفاسير المهمة بسهولة.

وهذا الشرح تحت النظر أمالي على تفسير البيضاوي للمحقق الشيخ رحيم الله الحقاني الذى اغتنى بجمعه تلميذه الفاضل محمد بن الشهيد البدري روعة الاسلوب و سهلة المأخذ. فالشرح نفيسٌ فى بابه و جامع لكل ما يتعلق بالكتاب.

وبالتالي، ان الشيخ رحيم الله حقِاني رزقه الله علوّ النظر و التفنن فى علوم المتنوّعة فى سنة المبتكر، لمئات طلبة العلم اطال الله عمره.

فلم أُتحْ لي ان اطالع الشرح كله، لاجل الضعف فى الجسد، والقيام بواجبات التدريس و كثرة قدوم الضيوف. الا أني قد اطلعت على مواضع شتى منه ، فوجدته نافعا ؛ أسأل الله أن ينفع به طلاب العلم.

مغفور الله

(شیخ الحدیث جامعة الحقانية اکوره ختک)

۱۳ محرم الحرام ۱۴۴۳ هجري

# پیلیزه

الحمد لله الذي انار قلوب العباد المتقين بنور كتاب المبين وجعل القرأن شفاءً لما في الصدور وهدىً ورحمة للمؤمنين ، والصلاة والسلام على خاتم الانبياء و اشرف المرسلين سيدنا محمد النبي العربي الامين الذي فتح به الاعيانا عميا واذآن صماً وقلوباً غلفاً واخرج به الناس من الظلمات الى النور صلاةً وسلاماً دائمين الى يوم البعث والنشور وعلى اله الطيبين الاطهار واصحابه الهادين الابرار و من تبعهم باحسان الى يوم .

**وبعد:**

انسان دژوند په هر قدم او هره برخه کې د علم او هدایت محتاج دی او هم یې په علم کې د بریا او کامیابۍ راز نغښتی دی ، علم هغه نبوي مشال دی چې تل یې انسان د فتنو له تورو تیارو د روڼ سحار تر گودره رسولي دي، هغه قافلې تل تر خپل منزله رسيدلي چې د علم له سرمايې برخمنې وي.

هغه چې تاریخونو پرې ویاړ او افتخار کوي د علم لارویان دي، الله جل جلاله په خپل کتاب «قرأن کریم » کې انسان په تمامو مخلوقاتو افضل او اکرم گرځولی دي او لامل یې بیا علماء دا بیانوي چې په مخلوقاتو انسانان یوازنی مخلوق دی چې تر منځ یې د تعلیم او تعلم سلسله روانه ده .

په انسانانو کې بیا هغه کسان چې علماء دي د الله جل جلاله په نزد ځانگړی مقام او مرتبه لري په ځانگړي ډول هغه علماء چې د تفسیر له علم سره تعلق لري او د کلام الله معاني، رموز، مقاصد او مطالب په ډاگه کوي د انبیاءعلیهم السلام حقیقي وارثان دي لکه څنگه چې کتاب الله په کتابونو کې عالي ده دغه راز یې علم په علومو او عالم یې په علماو کې عالي او فوقیت لري.

علم التفسیر یوازنی هغه علم دی چې نور تمام علوم یې خادمان او د حصول وسایل او زرایع دي قرأن نورو علومو ته د چشمې حیثیت لري او نور علوم دینیه دي او که عصریه دي له همدې منبع څخه سر چینه اخلي، امام جلال الدین سیوطي (رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمایي: په اسلام کې چې ترننه

ځومره کتابونه لیکل شوي دي په حقیقت کې دا ټول د احادیثو تشریح او وضاحت دی او تمام احادیث د قران تشریح ،تفسیر او ضاحت دی[1].

په هردور کې الله جل جلاله د قران د خدمت لپاره علماء پیدا کړي هرعالم يې جلا جلا خدمت کړی دی چاپې د الفاظو ، چاپې د معانیو ،چاپې د احکامو ، چاپې بلاغت او فصاحت او چاپې اعراب او اعجاز خلکو ته بیان کړی ده تردې چې ښځو هم د قران خدمت ملا وتړله د هندوستان د مشهور واکمن او بادشاه او عالمګیر (رَحِمَهُ اللَّهُ) لور « زیب النساء » هم دغه میدان کې خپل مسؤلیت ادا کړ او د زیب التفاسیر په نامه يې په فارسی د تفسیر یوه بهترینه نسخه تیاره (المؤلفات من النساء ومولفاتهن) لنده دا چې هرچا يې د خپل علم او فهم مطابق تفسیر او وضاحت کړی ده .

یو له دغو خادمانو څخه نومیالی مفسر امام بیضاوي حمه الله دی نوموړي د قرآن تفسیر په داسې انداز کړی دی چې نورو تفاسیرو کې بیا د متن حیثیت لري همدا وجه ده چې تفسیر بیضاوي د پیشمېره تفاسیرو تر منځ علماو د درس نظامي لپاره انتخاب کړی او له یوې اوږدې مودې څخه راپه دیخوا يې په مدارسو کې درس او تدریس روان دی ، تفسیر بیضاوي که له یوه پلوه دومره اهمیت او ارزښتمن دی ؛خو بیا له بلې خوا په همدومره مشکلو او باریکو نکاتو مشتمل دی ، چې د هرچا فهم ورته په اسانی سره نشي رسېدلی او نه يې هرڅوک د حلولو توان لري، ځکه خو بیضاوي په جامعه کې هغه عالم ته ورکول کیږي کوم چې په نورو علومو کې متبحر او قوي ملکه ولري .

کوم وخت چې د څلورمې درجې طالب وم د موقوف علیه طالبانو به اکثره د تفسیر بیضاوي له مشکلاتو څخه شکایت او سرټکاو له ځان سره مې ویل چې کاش یوه داسې زمینه برابره شوې وای چې طالبان له دغې ستونزې او شکایاتو خلاص شوي وای او په اسانه او ساده لهجه پښتو کې د بیضاوي دغه مشکلات حل شوي وای ، له دغه وخته مې دې کار ته تلوسه وه ، همدغسې شول په کال (۱۴۳۸)هـ کې مې د پېښور په دارالعلوم زبیریه کې د موقوف علیه لپاره له شیخ الحدیث مولانا رحیم الله حقاني حفظه الله سره داخله واخسته او له لومړی ورځې مې دا عزم وکړ

---

(۱) للاتقان في علوم القرآن :٤٤٣/٤ و اثر الحدیث الشریف فی اختلاف أئمة الفقهاء رضی الله عنه :۱۲۳ لشیخ محمد عوامه حفظه الله

چې د تفسیر بیضاوي د درس او تقریر د لیکلو په خاطر به هم د کال تر پایه غیر حاضري نه کوم، په لومړیو ورځو کې مې له شیخ صیب سره مشوره وکړه ورته مې وویل : غواړم ستاسو درس ته لیکلې بڼه ورکړم شیخ صیب راته ویل چې داخو به ډېره ښه شي ، له دې څخه وړاندې شیخ صیب په خپله په تفسیر بیضاوي د حاشیې لیکلو هوډ درلود او یو څه صفحات یې پرې لیکلي هم و خو د زیاتو علمي بوختیاو له امله ترې معطل پاتې وه ، شیخ صیب هغه لیکلې صفحې هم راته وسپارلې چې تر څو په لیکلو کې ترې مرسته واخلم د لیکنې په اوږدو کې به مې وخت په وخت له شیخ صیب سره مشورې کولې او د تېروتنو سمونه به یې راکوله تر دې چې تر اخره ټول درسونه د الله جل جلاله په فضل ولیکل شول د شیخ صیب له نظر ثاني څخه ورسته مو چاپ ته وړاندې کړ همغه و چې طالبانو ته ډېر مفید ثابت شو خو بیا یې هم یو څه نیمګړتیاوې لرلې لکه : املایي تېروتنې د عباراتو ګډوډی او د احادیثو د تخریج نه شتون او د غسې له نورو حوالو هم بې برخې پاتې و ،نو په همدې اساس مو له دویم ځل چاپ نه وړاندې لومړی د همدغو نیمګړتیاو سمونه او تکمیل وکړ، دسمونې او تصحیح پر مهال راسره زما د کوچنیوالي ملګري محترم ورور او جید عالم مولوي صفت الله نعماني حفظه الله زیاته مرسته وکړه له الله جل جلاله څخه ورته فردوس جنت صالح اولاد او نافع علم غوښتونکی یم .

او د یادونې وړ ده چې د لیکلو پرمهال مې د حضرت شیخ صیب په اجازه له حاشیة الشهاب، حاشیة شیخ زاده او تقریر الحاوي څخه هم استفاده کړې دی تر څو کتاب عام فهمه او مستفید ثابت شي.

اخوکم فی الله: محمد «بدري»

۲۰ربیع الثاني/۱٤٤۲ هـ

## د تفسیر بیضاوي اهمیت

تفسیر بیضاوي د حدیثو او سنت دقایقو، دکلام او حکمت دفوایدو ، د معانیو د اسرارو، د فلسفې او میزان د رموزو ، د معقول او منقول د تاویلاتو . د صرف او نحوې د بحثونو، د قرأت ، قراني مقاصدو د منابعو ،د اهل السنة د عقایدو او د ګڼو علومو ځانګړې مجموعه ده .

تفسیر بیضاوي په یوه فقره کې کتونکی په لسګونو علومو راګرځوي ، له تفسیر کشاف نه وروسته د شاه جهان او عالمګیر تر زمانې بیضاوي ته په تفاسیرو کې لومړی مقام حاصل ؤ او ښه ګرم بازار یې لاره ، په روان دور کې بیا له کشاف څخه هم مخکې او لومړی مقام لري ، تردې چې ځنې علماو د قران له حفظ سره تفسیر بیضاوي هم یاد کړی مولانا محمد معظم په خپل کتاب «تذکرة علماء هند» کې د خپل استاذ مولانا عبد الحکیم سیالکوټي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) چاچې په تفسیر بیضاوي ځانګړې حاشیه هم لیکلې په باره کې فرمایي : چې مولانا عبدالحکیم صیب له قران سره د تفسیر بیضاوي هم په یاده یاد کړی و.

د تفسیر بیضاوي د اهمیت لپاره همدومره هم بس ده چې د بېشمېره تفاسیرو تر منځ د سلګونو کلنو څخه تر ننه د مدارسو په نصاب او درس او تدریس کې ځای نیولی او څومره حواشي ، شروح او تعلیقات چې په تفسیر بیضاوي لیکل شوي په بل تفسیر نه دي شوي.

## د تفسیر بیضاوي منهج او تګلاره

د امام بیضاوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) تفسیر ډېره جالبه او زړه وړونکې تګلاره او منهج لري همدا لامل ده چې تفسیر ته یې دومره مقبولیت حاصل دی.

(۱)... تفسیر بیضاوي د سورت په پای کې داسې احادیث راوړي چې د سورت عظمت او فضیلت ترې ثابت وي .

(۲)... تفسیر بیضاوي د صحابه کرامو اقوال او اثار هم ذکر کوي او د عقل په مټ ترېنه نکتې او اشارات را وباسي .

(۳)... ځنې وخت بيلا بيل قرأتونه ذکو کوي، د متواترو قرأتونو ترڅنګ شاذ قرأتونه هم ذکر کوي.

(۴)... فقهي مسايل ذکر کوي خو په اختلاف کې د شافعي مسلک تايد کوي او هم ورته دلايل ذکر کوي.

(۵)... کوم ځای چې د اهل السنة والجماعة او معتزله و اختلاف وي هلته دواره مسلکونه بيانوي او د اهل السنة ترجيح او هم ورڅخه کلکه دفاع کوي.

(۶)... ځنې وخت اسرائيليات هم په صيغې د تمريض (رُوِيَ او قيل) سره ذکر کوي.

(۷)... امام بيضاوي د احاديثو په نقل کې په ځان د صحت التزام نه دی کړی زياتره وخت ضعيف او موضوعي روايات ذکر کوي.

(۸)... د فلکياتو او طبعي امورو په ذکرکولو کې زياتره د تفسيرکبير لاره خپلوي او نورو مسايلو کې بيا د کشاف تقليد کوي، امام جلال الدين سيوطي (رَحِمَهُ اللَّهُ) وايي: تفسير بيضاوي د کشاف بهترينه خلاصه ده [1]

## په تفسير بيضاوي ليکل شوې ځينې حواشي

(۱)...حاشيه محی الدين محمد بن شيخ مصلح الدين مصطفی قوجوي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی(۹۵۱)هـ دا مفصله حاشيه په اته جلده کې چاپ شوې وه.

(۲)... حاشيه ابن المتجد مصلح الدين مصطفی بن ابراهيم (رَحِمَهُ اللَّهُ) کوم چې د محمد الفاتح (فاتح قسطنطنية) دی دا په درې جلده کې چاپ شوې وه.

(۳)... فتح الجليل ببيان خفي انوار التنزيل د زکريا بن محمد الانصاري المصري (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی(۹۱۰)هـ.

(۴)... حاشيه کمال الدين اسماعيل بن بالي القرماني (رَحِمَهُ اللَّهُ) چې مشهور ده په قره کمال سره.

---

(۱) المدخل المنير لشيخ مخلوف :٤١

(۵)...نواهد الافکارفي شواهد الافکار د امام جلال الدین سیوطي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۱۱)هـ.

(۶)...حاشیه ابو الفضل صدیقي قریشي (رَحِمَهُ اللَّهُ) چې په گازروني سره مشهوره ده المتوفی (۹۴۵)هـ.

(۷)...حاشیه شمس الدین محمد بن یوسف بن علي بن سعید کرماني الشافعي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۷۸۶)هـ.

(۸)... حاشیه محمد بن جلال الدین بن رمضان شیرواني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۰۰)هـ.

(۹)... حاشیه جمال الدین اسحاق قرماني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۳۳)هـ.

(۱۰)... حاشیه بابا نعمت الله بن محمد (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۰۰)هـ.

(۱۱)... حاشیه مصطفی بن شعبان سروري (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۶۹)هـ.

(۱۲)... حاشیه ملاعوض (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۹۴)هـ-.دا حاشیه غالبا په دېرش جلدونو باندې مشتمله ده.

(۱۳)... الحام الماضي فی ایضاح غریب القاضي للشیخ ابي بکربن احمد بن صانع الحنبلي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۷۱۴)هـ.

(۱۴)... حاشیه شیخ وجیه الدین بن نصرالله بن عماد الدین علوي گجراتي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی(۹۹۸)هـ.

(۱۵)... حاشیه شیخ شمس الدین احمد بن سلمان الرومي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۴۲)هـ

(۱۶)... حاشیه شیخ اسماعیل شیرواني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۴۲)هـ.

(۱۷)... حاشیه شیخ محی الدین محمد افندي بن پیر علی برکلي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۹۷۱)هـ.

(۱۸)... حاشیه ملا عبدالسلام دیوي الاودهي (رَحِمَهُ اللَّهُ)

(۱۹)... حاشیه امان الله بن نورالله بن حسین بنارسي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفی (۱۱۳۳۹)هـ.

(۲۰)... حاشيه شيخ محمد بن علي الحصكفي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۱۰۸۸)هـ.

(۲۱)حاشيه شيخ ابو يوسف يعقوب البناني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفي (۱۰۹۸)هـ

(۲۲)... خاشيه علامه نور الدين بن محمد محمد صالح احمد ابادي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۱۱۵۵)هـ

(۲۳)... هداية الراوي الى الفاروق المداوي للعجز عن تفسير بيضاوي للشيخ محمود بن حسن الفضلي المشهور بصادق گيلاني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۹۷۰)هـ

(۲۴)... حاشيه محمد بن قراموز المشهور بملا خسرو (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۸۸۵)هـ

(۲۵)... حاشيه ملا عبد الحكيم سيالكوټي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفي (۱۰۶۷)هـ

(۲۶)... حاشيه محمد بن عبد الملک بغدادي الحنفي (رَحِمَهُ اللَّهُ) التوفي (۱۰۰۶)هـ

(۲۷)... تفسير التفسير للنورالدين حمزه قراماني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۸۷۱)هـ

(۲۸)... حاشيه عصام الدين ابراهيم بن محمد عرب شاه اسفرايني (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۹۴۳)هـ

(۲۹)... حاشيه سعدالله بن عيسى المشهور بسعدي الافندي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۹۴۵)هـ

(۳۰)... حاشيه سنان الدين يوسف بن حسام الدين (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۹۷۶)هـ

(۳۱)... حاشيه محمدبن عبدالوهاب المشهور بعبدالكريم زاده (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۹۷۵)هـ.

(۳۲)... حاشيه شيخ احمد بن شهاب بن محمد الحفاجي الحنفي (رَحِمَهُ اللَّهُ) المشهوره بحاشية الشهاب المتوفى (۱۰۶۹)هـ دا حاشيه له نوي تحقيق سره په نهه جلده كې چاپ شوې ده ډيره اعلى او مفيده ده ماهم په څه ځايونو كې زياته استفاده تري كړېده.

(۳۳)... حاشيه شيخ عثمان بن عيسى بن ابراهيم السندي البرهانبوري (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۱۰۰۸)هـ

(۳۴)... حاشيه شيخ ابويوسف يعقوب البياني لاهوري (رَحِمَهُ اللَّهُ) المتوفى (۱۰۹۸)هـ

# په تفسیر بیضاوي لیکل شوي تعلیقات

(۱)... تعلیق سنان الدین یوسف بردعي مشهور بعجم سنان (رَحِمَهُ اللّٰهُ)

(۲)... تعلیق شیخ محی الدین محمد الکلبي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۲۲)ھ

(۳)... تعلیق مصطفی بن محمد المشهور ببستان افندي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۷۷)ھ

(۴)... تعلیق محمد بن مصطفی بن الحاج حسن (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۱۱)ھ

(۵)... تعلیق شیخ اصلح الدین محمد (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفي (۹۷۷)ھ

(۶)... تعلیق ملا حسین خلخاني (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۱۰۱۴)ھ

(۷)... تعلیق نصر الله الرومي (رَحِمَهُ اللّٰهُ).

(۸)... تعلیق غرس الدین حلبي طبیب (رَحِمَهُ اللّٰهُ)

(۹)... تعلیق محی الدین محمد بن قاسم المشهور باخوین (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۰۴)ھ

(۱۰)... تعلیق سید احمد بن عبدالله قریمي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۵۰)ھ

(۱۱)... تعلیق محمد بن عبدالغني (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۱۰۲۶) ھ دا تعلیق تر نصف د سورت بقرې پورې دی او پنځوس جزه لري

(۱۲)... تعلیق محمد امین المشهور بابن صدرالدین شرواني (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی(۱۰۳۶)ھ

(۱۳)... تعلیق هدایة الله علائي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۱۰۳۹)ھ

(۱۴)... تعلیق محمد سرانسي (رَحِمَهُ اللّٰهُ)

(۱۵)... تعلیق محمد بن ابراهیم الحنبلي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۹۷۱)ھ

(۱۶)... تعلیق محمد امین المشهور بامیر بادشاه بخاري حسني (رَحِمَهُ اللّٰهُ)

(۱۷)... تعلیق محمد موسی بسنوي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۱۰۴۶)ھ

(۱۸)... تعلیق شیخ قاسم بن قطلوبغا الحنفي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۸۷۹)ھ

(۱۹)... تعلیق احمد بن روح الله الانصاري (رَحِمَهُ اللّٰهُ) المتوفی (۱۰۰۹)ھ

(۲۰)... تعلیق الاتحاف بتمیز ماتبع فیه البیضاوي صاحب الکشاف

(۲۱)... تعليق محمد بن يوسف الشامي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ)

(۲۲)... تعليق كمال الدين محمد بن ابي شريف القدسي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۹۱۰)هـ

(۲۳)... التعليق الحاوي على تفسير البيضاوي للشيخ عبدالحق بن سيف الدين محدث دهلوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى(۱۰۵۲)هـ

(۲۴)... تعليق سيد شريف علي بن محمد الجرجاني (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۸۱۶)هـ

(۲۵)... تعليق شيخ رضي الدين محمدبن يوسف المشهور بابن ابي اللطف القدسي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۱۰۴۸)هـ

(۲۶)... تعليق محمد بن محمد بن عبد الرحمن المعروف بامام الكامليه قاهري (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۸۷۴)هـ

## د تفسير بيضاوي د احاديثو تخريج

(۱) تحفة الراوي في تخريج احاديث البيضاوي للشيخ محمد بن حسن المعروف بابن همات الحنفي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۱۱۷۵)هـ

(۲)الفتح السماوي بتخريج احاديث البيضاوي للشيخ عبدالروف المناوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ).

د تفسير بيضاوي د ابياتو حل

مولانا فيض الحسن بن فخرالحسن السهارنپوري (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) المتوفى (۱۳۰۷)هـ دبيضاوي ابيات حل کړيدي.

## طبقات المفسرين (د مفسرينو طبقې)

د هر علم ماهرين او ائمه په څو طبقو او صنفونو ويشلي شوي لکه طبقات الفقهاء، طبقات المحدثين، طبقات علم النحو او داسې نور دغه ډول مفسرين هم څو طبقو لري خو دومره ده چې د مفسرينو طبقې د نورو طبقو په څېر منضبطې ندې او نه ورته هغه ډول شرايط او حدود ټاکل شوي او نه هم پرې کوم امام قول کړی؛ بلکې ځينې علماوو قرونو او زمانو ته په کتلو سره په څو طبقو ته ويشلي شوي.

## لومړی: طبقة الصحابه (رحمهم الله)

د قران لومړي مفسرين صحابه كرام رضوان الله اجمعين دي، صحابه كرام ټول د قرآن په تفسير او رموزو ښه پوهيده خو بيا هم ځينو له ځينو سره توپير درلوده په دوی کې بيا ځو کسانو په تفسير کې زيات شهرت درلود لکه خلفاء الراشدين، عبادلة اربعة (عبد الله ان مسعود، عبد الله ابن عباس، عبد الله عمرو او عبد الله بن زبير)، انس بن مالک، ابو موسی اشعري، ابو هريرة، او جابر (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ).

په خلفاو کې زيات روايات د تفسير له علي بن ابي طالب (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) څخه راغلي د حضرت معمر (رَحِمَهُ اللَّهُ) روايت ده: روى معمر عن وهب بن عبد الله عن أبي الطفيل قال: شهدت عليا يخطب وهو يقول: سلوني، فو الله، لا تسألوني عن شيء إلا أخبرتكم، وسلوني عن كتاب الله فوالله ما من آية إلا وأنا أعلم أبليل نزلت أم بنهار، أم في سهل أم في جبل. [1]

**ترجمه**: عبد الله بن طفيل (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) وفرمايي: حضرت علي كرم الله وجهه ته په داسې حال کې ورغلم چې خطبه يې ويله، او خلکوته يې ويل له ما پوښتنې وکړئ! که د هر شي پوښتنه کوئ زه به ځواب درکوم او د الله جلا د کتاب په اړه رانه پوښتنې وکړئ زما دې په الله قسم وي داسې يو ايات نشته چې زه پرې عالم نه يم چې دا دورځې نازل شوی که د شپې په سمه نازل شوی که په غره.

او په نورو صحابه کرامو کې بيا زيات روايات له عبد الله ابن عباس او عبد الله ابن مسعود (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا) څخه راغلي دي چې دوی دواړه په صحابه کرامو کې د تفسير امامان بللی شي.

## دويمه: طبقة التابعين:

شيخ الاسلام ابن تيمية (رَحِمَهُ اللَّهُ) وايي: أعلم الناس بالتفسير أهل مكة.

په تفسير کې تر ټولو ماهرين خلک د مکې مکرمې دي؛ ځکه دوی د ابن عباس رضي الله عنه شاګران دي لکه مجاهد، عطاء بن أبي رباح، عكرمة مولى ابن عباس، وسعيد بن جبير، طاوس او داسې نور او په کوفه کې ابن مسعود شاګردان-

---

(۱) مصنف لابن عبدالرزاق وتهذيب التهذيب: ۱۷۰/۱ و الفقيه والمتفقه للخطيب

لکه علقمة،اسود بن یزید ، إبراهیم النخعي، او شعبي (رَحِمَهُمُ اللَّهُ) او د دوی له جملې څخه حسن بصري ، عطاء بن أبي مسلم الخراساني ،محمد بن کعب القرظي ، أبو العالیة رفیع بن مهران الریاحي ، الضحاک بن مزاحم ، عطیة بن سعید العوفي، قتادة بن دعامة السدوسي ، الربیع بن أنس ، او مام سدي دی دغه له تابعینو څخه متقدمین مفسرین دي دوی اکثر اقوال له صحابه کرامو څخه نقل کړی دي وغالب، او په مدینه منوره کې زید بن أسلم له کوم نه چې خپل زوی عبد الرحمن بن زید روایت کوي اومالک بن أنس رضي الله عنهم دی .[1]

خو په دوی تر ټولو زیات روایات د امام مجاهد (رَحِمَهُ اللَّهُ) دي فضل بن میمون (رَحِمَهُ اللَّهُ) وایي: چې ماته امام مجاهد وویل: ما دېرش ځله مکمل قران په خپل استاذ عبد الله ابن عباس رضي الله عنه باندې لوستلی او درې ځله مې داسې لوستل چې د هر ایت مې ترې جلا جلا پوښتنه کړې چې د څه لپاره او ولې نازل شوی دی.

## دریمه طبقه تبع التابعین:

دا هغه خلک دي چې د صحابه کرامو او تابعینو اقوال یې را جمع کړل او په علم التفسیر کې یې په لومړي ځل تفاسیر ولیکل لکه ، سفیان بن عیینة ، وکیع بن الجراح ، شعبة بن الحجاج ،یزید بن هارون ، عبد الرزاق ، آدم بن أبي إیاس ،إسحاق بن راهویه ، عبد بن حمید ، روح بن عبادة ، أبي بکر بن أبي شیبة (رَحِمَهُمُ اللَّهُ) او داسې نور.

## څلورمه طبقة له تبع التابعینو څخه وروسته مفسرین:

دا هغه طبقه د چې له د صحابه کرامو، تابعینو او تبع التابعینو څخه یې سندا خالص تفسیر روایت کړی لکه: علي بن أبي طلحة،ابن جریر الطبري، ابن أبي حاتم،ابن ماجه، حاکم،ابن مردویه، أبو الشیخ بن حبان، او ابن المنذر (رَحِمَهُمُ اللَّهُ) مګر ابن جریر (رَحِمَهُ اللَّهُ) په خپل تفسیر کې د اقوالو توجیه، ځینو اقوالو ته په نورو ترجیح اعراب او استنباط هم ور یو ځای کړي.

---

(۱) مقدمة اصول التفسیر لابن تیمیة: ۱٥

## پنځمه طبقه له دوی څخه وروستني مفسرين:

دا له څلورمې طبقې څخه ورسته مفسرين دي چې خپل تفاسير يې له لغوي فايدو، د اعراب له ډولونو. له هغو قرأتونو چې سندونه يې محذوف و ډک کړي او يو څه شيان يې د خپلې رايې هم ورېو ځای کړل لکه أبو إسحاق الزجاج ،أبو علي الفارسي ،أبو بكر النقاش او أبو جعفر النحاس.

له پورته ذکر شو مفسرينو څخه ورسته يوه ډله د متاخرينو راولاړه شوه له تفسيري رواياتو څخه سندونه لرې کړل او د ائمه و اقوال يې غوڅ شوي او بې له حوالو رنقل کړل، نو له دغه ځای څخه په تفسير کې لاس وهنه شروع شوه د صحيح او ضعيف تر منځ توپير ورک شو.

په دې طبقه کې د شپږمې پېړۍ مفسرين دي لکه امام راغب اصفهاني، امام غزالي، علامه جار الله زمحشري او ابو جعفر محمد بن حسين العلوي الطوسي او داسې نور.

## اوومه طبقه:

دا هغه مفسرين دي چې په کوم علم او فن کې ماهره دي خپل تفاسير يې له همغه علم څخه ډک کړي ګويا که قران د همدغه علم لپاره نازل شوی لکه نحوي مفسر يوازې له اعراب، نحوي قواعد او داسې نورو نحوي مسايلو څخه تاويږي لکه ابو حيان (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) وغيره

او که فقيه وي هغه بيا تمامه فقه په خپل تفسير کې رانقولوي لکه امام ابو عبد الله محمد بن احمد القرطبي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) او ماهر دعلومو عقليه و تمام معقولات په خپل تفسير کې ځايوي لکه امام فخرالدين رازي او امام ناصرالدين عبدالله بن عمر البيضاوي (رَحِمَهُمَا ٱللَّهُ).

## اتمه طبقه:

دا هغه مفسرين دي چې څه يې ليدلي او څه يې په زړه تېر شوي په هغې يې اعتماد کړی ديته يې نه دي کتلي چې د سلفو ائمو نه په دې اړه څه نقل شوي او که نا؟

لکه امام جلال الدين سيوطي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) په خپل تفسير کې په (غير المغضوب عليهم والضالين) کې لس اقول راوړي او حال دا چې له رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)، صحابه کرمو او

تابعینو څخه یوازې د یهودو او نصاری تفسیر نقل دی امام ابن ابي احاتم (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمایي زه په دې کې د مفسرینو هیڅ اختلاف نه وینم.

او په دغه طبقه کې جلال الدین احمد بن محمد المحلي او امام شهاب الدین محمود الوسي (رَحِمَهُمَا ٱللَّهُ) هم شامل دي.

## نهمه طبقه:

په دې طبقه کې ابوالبرکات عبد الله بن احمد بن محمود النسفي، هبة الله شرف الدین بن عبد الرحیم بارزي، ابوالفدأ عمادالدین اسماعیل بن عمر ابن اکثیر القریشي، شرف الدین عبدالواحد بن المنیر قطب الدین بن محمود بن مسعود الشیرازی او شرف الدین حسین بن محمد طیبي (رَحِمَهُمُ ٱللَّهُ) شامل دي.[1]

## د امام جلال الدین سیوطي رحمه الله تقسیم:

امام جلال الدین سیوطي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) مفسرین څلورو طبقو ته ویشلي:

**لومړۍ طبقه**: دا د سلفو طبقه ده چې صحابه کرام، تابعین او تبع التابعینو ته شامله ده.

**دویمه طبقه**: دا هغه مفسرین دي چې محدثین دي په خپلو تفاسیرو کې یې د صحابه کرامو او تابعینو اقوال سندا ذکر کړي.

**دریمه طبقه**: د اهل السنة والجماعة باقي مفسرین کوم چې خپلو تفاسیرو ته علم کلام، علم النحو، فلسفه او احکام فقهیة ور داخل کړي.

**څلورمه طبقه**: بدعتي مفسرین لکه معتزله، شیعیه او داسې نور دغه مفسرین لکه زمحشري، روماني، جبایي او داسې نور دي[2].

(۱) ظفر المحصلین :۲ صـ ۵۰ ـ ۱۵۹

(۲) طبقات المفسرین :صـ ۲ لامام جلال الدین السیوطي

## د تفسیر تدوین

2 لومړی باید ووایو چې د قرآن تفسیر ځینې ځایونه کې قرآن په خپله کړی چې دیته تفسیر القرآن بالقرآن وایي دغسې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) هم د قرآن تفسیر کړی هغه په دې معنی چې دنبوي دور خلک عرب و او قرآن هم په عربي ژبه نازل شوی و نو د قرآن د معانیو او مطالبو په فهم ورته څه ستونزه نه وه بیا به چې به ځینو ځایونو زیات اجمال و صحابه کرامو به مخامخ له رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نه پوښتنه وکوله او رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) به ورته تشریح او تفسیر کولو ، دتفسیر په اړه تر ټولو قیمتي ذخیره او پانګه هغه تفسیري روایات دي چې د احادیثو په بیلا بیلو کتابونو کې نقل شوي دي لکه امام بخاري هم دغه روایات داغونډ کړي او د کتاب التفسیر القرآن په نوم یې نومولي دی.

دیته ورته دصحابه کرامو زمانه وه تر رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وروسته چې کله د فتوحاتو دایره پراخه شوه او په تمدني ژوند کې پرمختګ وشو نوي مسایل رامخته شول له هم دې امله د قرآن په ایتونو کې غور اوفکر ته اړتیا پیښه شوه د علامه ابن خلدون (رَحِمَهُ اللهُ) په وینا ټول صحابه کرام د قرآن په فهم کې برابر نه و صحابه کرامو به هم هغه تفسیر کاوه چې یا به یې بالواسطه یا بلاواسطه له رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او ریدلی و .

له صحابه کرامو څخه وروسته بیا د تابعینو دور پیل شو او دغه د تفسیر لپاره هم یوه نوي لړۍ وه چاچې له صحابه کرامو څخه خپله علمي تنده خړوبه کړې وه هغوی د صحابه و په څیر په تابعینو کې لوی مفسرین شول په دوی کې: مجاهد ، عطاءبن ابي رباح، عکرمه، سعید بن جبیر، حسن بصري، ابوالعالیة، ضحاک او قتادة (رَحِمَهُمُ اللهُ) ډېر مشهور دي غالباً تر ټولو مخکې د دې فن ابتداء سعید بن جبیر وکړه چې عبدالملک بن مروان ترې د تفسیر لیکلو غوښتنه وکړه نو ده د. عبدالملک په غوښتنه تفسیر ولیکه د عطاء بن دینار په نوم چې کوم تفسیر مشهور دی په حقیقت هغه همدا تفسیر دی.(۱)

(۱) میزان الاعتدال لامام شعراني

لنډه دا چې تفسیر د تدوین شکل اختیار کړ هغه د اموي خلافت له وروسیتو څخه واخله د عباسي خلافت تر اولنیو وختونو پورې د تفسیر د تدوین او لیکلو دور بلل کیږي ،د تدوین تر زمانې مخکې ټول تفسیري روایات دا حادیثو په کتابونو کې له نورو احادیثو سره ګډول د تدوین له مرحلې سره تفسیري روایات له نورو احادیثو څخه جلا او بیل شول او دیو مستقل فن هیئة یې اختیار کړ او د قرآني ترتیب موافق د هر ایت او سورت بیل تفسیر ولیکل شو په دې کې امام ابن ماجه ، ابن جریر الطبري، ابن ابي خاتم ، امام حاکم (رَحِمَهُمُ اللَّهُ)او نورو محدیثینو زیات ونډه لرله دا تفسیرونه د سند له مخې له رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)، صحابه کرامو ،او تابعینو او تبع التابعینو څخه نقل شوي ول په دې کې له مأثوره (نقل شوي تفسیر ) پرته نور هیڅ نه ول البته ابن جریر له تفسیري اقوالو له ذکر کولو سره توجیه ذکر کوله .

## تفسیر له تدوین څخه وروسته بیا تر ننه پورې

دلته دتفسیر پنځمه مرحله پیل کیږي دا د تفسیر تر ټولو ستره تاریخي دوره ده چې له عباسي خلافت څخه پیل بیا تر ننه پورې تر دې دمخه تفسیر یوازې په تفسیري روایاتو مشتمل و په دې دور کې دعقل او نقل ترمنځ اختلاط راغی ،صرف ،نحو او له عربیت سره تړلي علوم ایجاد شول ، فقهي مسلکونه جوړ شول او علم کلام هم سر راپورته کړ ، په عباسي خلافت کې مسلکي تعصب هم خپل اوج ته ورسېد اسلام ته منسوبو مختلفو جماعتونو خپلو فکرونو او عقایدو ته دعوت پیل کړ ، له منطق او فلسفې سره تړلي کتابونه له یوناني څخه عربي ته وژباړل شول پایله یې دا شوه چې دا ټول علوم له تفسیر سره ګډوډ شول ،چاچې له کوم علم اوفن سره تعلق درلود د هغه تفسیر تر هماغه فن او فن پورې محدود پاتې شو لکه نحویانو په خپلو تفسیرونو کې په نحوي مسایلو زور اچولی ولکه امام زجاج او ابوحیان اندلسي ، حکماو او فلسفیانو پکې فلسفې او حکمت ته ځای ورکړ لکه امام فخر الدین الرازي (رَحِمَهُ اللَّهُ) ، مورخینو بیا خپل تفسیرو داسې ولیکل ته به وایې چې قرآن نړۍ ته یوازې د تاریخ لوستلو لپاره نازل شوی دی مبتدعینو د خپلو خوښو بدعتونو په

تائید او حمایت کې اقوال او ویناوې راجمعه کړې لکه له معتزله و څخه زمخشري ،رماني ، جبايي ، له شعیه و څخه طبرسي ، ملاحسن کاشي وغیره.

صوفیانو له قرآن څخه داسې نکتې را وه ایستلې چې د هغوی د مسلک تائید ور څخه کیږي لکه ابن العربي، عبد الرحمن السلمي او داسې نور او فقهاو پخپلو تفاسیرو کې بنه ژور فقهي بحثونه وکړل.

## د تفسیر تقسیم په اعتبار د مضامینو

د دې ټولو مضامینو شمېر تقریباً اتیاو ته رسیږي او په هر یو بیل بیل کتاب هم لیکل شوی دی.(۱)

دا تصانیف که څه هم بیشماره دي خو ټول په شپږو ډولونو ویشل کیدای شي .

(۱) **فقهي تفسیر:** په دې کې یوازې هغه ایاتونه راوړل شوي چې یوه فقهي مسئله ترې ثابتیږي لکه احکام القرأن د اسماعیل بن اسحاق، احکام القرأن د ابوبکر رازي ، احکام القرأن قاضي یحی بن اکثوم او داسې نور.

(۲) **ادبي تفسیر:** په دې کې د قرأن فصاحت او بلاغت ته پاملرنه شوې او هڅه یې کړې چې اعجاز یې ثابت کړي په دې کې هغه تفاسیر هم شامل دي چې د قرأن د حقیقت او مجاز ، تشبیهاتو او استعاراتو وغیره په اړه لیکل شوي دي .

(۳) **تاریخي تفسیر:** په دې کې د هغو انبیاء علیهم السلام او خلکو د قیصو تفصیل او تشریح وې د کومو قیصو یادونه چې قرأن کړې ده .

(۴) **نحوي تفسیر:** په دې کې د قرأن له نحوي مسایلو څخه بحث شوی دی لکه اعراب القران او داسې نور .

(۵) **لغوي تفسیر:** یعنې د قرأن د مفردو الفاظو معنا او څېړنه کوي لکه مفردات القرأن د امام راغب (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) لغات القرأن د ابوعبیدة او داسې نور .

(۶) **کلامي تفسیر:** په کومو ایاتونو کې چې د عقیدې مسایل وي پر هغې بحث کوي .(۲)

---

(۱) الاتقان لعلوم القرأن

(۲) تاریخ التفسیر و المفسرون:۱/ ۵

## لومړی مفسر څوک دی؟

د دې پوښتنې ځواب (چې دقران لومړی مفسر څوک دی) اګر که په ظاهر اسانه ښکاري خو په حقیقت کې دا څه معمولي سوال ند دی چې په څو ټکو به ځواب شي داسې مفسر په نښه کول چې د قرآن ټول تفسیر یې د قرآني ترتیب له مخې کړی وي یوه مُعمّا ده.

ابن ندیم په الفهرست: ۹۹ کې لیکلي چې د ابوالعباس ثعلب په اشاره امام فراء نحوي د «کتاب المعاني» په نوم ذ قرآن یو تفسیر لیکلی و چې د قاهري له دارالکتب څخه د دې لومړی ټوک په کال (۱۹۶۵) میلادي کې چاپ شو دا جلد تر سورة یونس پورې و خو تر دې وروسته بل ټوک نه دی چاپ شوی.

پیښه داسې وه چې عمرو بن بکیر له امیر حسن بن سهل سره اړیکې دلودې ده یو ځل فراه نحوي ته ولیکل چې امیر حسن ځینې وخت د قرآن د تفسیر په سلسله کې له ما څخه پوښتنې کوي او زه یې ځواب نه شم ورکولی، نو ښه به دا وي چې ته په دې اړه یو کتاب ولیکې، نو فراه خپلو شاګردانو او ملګرو ته وویل: راشئ! زه تاسو ته په قرآني تفسیر مشتمل ولیکم شاګردان او ملګري یې راغلل یو کس به تلاوت کاو او ده او فراه به تفسیر کاوه او شاګردانو به یې لیکه تر دې چې مکمل شو.

اوس پوښتنه داده چې موږ په پوره باور داجبره کولی شو چې فراه نحوي (م۲۰۷)ه اولنی کس ده چې د قرآني ترتیت له مخې یې د قرآن پوره تفسیر ولیکه؟

همدا رنګه تر فراه مخکې مفسیرینو د قرآن د مشکلاتو په حل بسنه کړې وه او د قرآن تفسیر یې مفصل نه ولیکلی؟

داسې هیڅکله نه ده د ابن ندیم له پورتنې عبارت څخه همدا خبره بیاوري نه ښکاري.

که څه هم د احمد امین المصري په کتاب «ضحی الاسلام»: ۱۴۱/۲ همدې لورته میلان څرګند کړی، دا ځکه چې د فراه کتاب «معاني القرآن» د ترتیب او تدوین له مخې د ابوعبیدة له کتاب «مجازالقرآن» سره تر ډېره حده مشابهت لري نو له دې څخه معلومیږي چې فراه په دې ډګر کې د لومړیتوب تاج نه دی ګټلی.

د سلفو علماو له وینا څخه معلومیږي چې د ټولو ایتونو او سورتونو تفسیر په مکمل ډول له پخوا څخه شروع شوی و د دې کار پیل د دویمي هجري پیړۍ په لومړیو کې نه دی شروع شوی.

ابن ابي ملیکه (رَحِمَهُ اللَّهُ) وایي چې ما ولیدل چې امام مجاهد د ابن عباس رضي الله عنه څخه د قرآن د تفسیر په اړه پوښتنې کولې او له ده سره تختته وه ابن عباس رضي الله عنه ورته ویل چې لیکه یې آن چې امام مجاهد له ابن عباس (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) څخه مکمل تفسیر ولیکه[1]

حافظ ابن حجر (رَحِمَهُ اللَّهُ) د عطابن دینار المصري د پیژندنې په سلسله کې په خپل کتاب «تهذیب التهذیب» کې لیکي: احمد بن صالح ویل: عطا بن صالح د مصر له نیکانو څخه و د تفسیر په لړ کې چې له عطا څخه کوم اوقول نقل دي هغه دسعید بن جبیر له کتاب څخه اخستل شوي دي، ده له سعید څخه مخامخ نه دي اوریدلي.

ابو خاتم (رَحِمَهُ اللَّهُ) وېلي عطا ثقه دی مګر تفسیري اقوال یې د سعید بن جبیر له کتاب څخه اخستي دي، عبدالملک بن مروان (مړ ۸۶هـ) سعید بن جبیر (رَحِمَهُ اللَّهُ) د تفسیر په لیکلو ګومارلی و چې ده یې امر پوره کړ. عطابن دینار ته دا تفسیر یوځای تر لاسه شوی و ځکه هغه دا تفسیر له سعید څخه مرسلاً روایت کاوه.

له پورتنیو څرګندونو څخه دا حقیقت په ډاګه کیږي چې سعید بن جبیر (رَحِمَهُ اللَّهُ) په قرآني تفسیر مشتمل یو کتاب لیکلی و بیا عطا بن دینار له هغه کتاب څخه تفسیري اقوال نقل کول، دا خبره مشهوره ده چې حجاج بن یوسف سعید بن جبیر د روایاتو د اختلاف له مخې په کال (۹۴یا ۹۵هـ) کې شهید کړ همدې ته په کتو سره ضروري ده چې سعید بن جبیر دې داکتاب د مروان تر مرګ (۸۶هـ) مخکې تالیف کړی وي.

دا رنګه په وفیات الاعیان[2] کې لیکلي چې د معتزله و شیخ عمرو بن عبید له حسن بصري (رَحِمَهُ اللَّهُ) څخه په روایت یو تفسیر لیکلی و کشهوره ده چې حسن بصري (رَحِمَهُ اللَّهُ) په (۱۱۶هـ) کې وفات شوی وو.

---

(۱) تفسیر ابن جریر الطبري :۳۰/۱

۲ وفیات الاعیان :۳/۱

دغه راز تر دې مخکې ابن جریج (۱۵۰هـ) په درې ضخیمو جلدونو کې یو تفسیر لیکلی و چې محمد بن ثور ترې روایت کړی و.

له دې ټولو څرګندونو جوتیږي چې د تفسیر د لیکلو په په میدان کې فراه اولیت نه لري بلکې تر ده دمخه د دې کال د بنسټ دبره ایښودل شوي وه خو د څېړنې له مخې مورږ د دې خبرې له په ډاګه کولو عاجزیو چې په اصل کې دا نیکمرغي د چا په برخه شوي وه !!!

## فایدة جلیلة

## متقدمین او متأخرین چاته وایي؟

## په صحابه کرامو کې متقدمین او متأخرین

**لومړی**: کو مو صحابه کرامو چې له هجرت څخه مخکې ایمان راوړی هغوی ته متقدمین ویل کیږي او کومو چې له هجرت څخه وروسته ایمان راوړی هغوی ته متأخرین ویل کیږي.

**دویم**: کومو صحابه کرامو چې له صلحې حدیبیې نه مخکې ایمان راوړی هغوی ته متقدمین ویل کیږي او کومو چې له صلحې حدیبیې نه څخه وروسته ایمان راوړی هغوی ته متأخرین ویل کیږي.

**دریم**: کومو صحابه کرامو چې له فتحې د مکې نه مخکې ایمان راوړی هغوی ته متقدمین ویل کیږي او کومو چې له فتحې د مکې څخه وروسته ایمان راوړی هغوی ته متأخرین ویل کیږي.

## فقهاؤ کې متقدمین او متأخرین

**لومړی**: علامه عبد الحی الکهنوي فرمایي: کومو فقهاو چې د امام ابوحنیفه (رَحِمَهُ اَللّٰهُ) او د صاحبینو، امام زفر او حسن بن زیاد زمانه موندلې ده هغوی ته متقدمین فقهاء وایي او له دوی څخه را په دېخوا فقهاء متأخرین دي: لکه امام جصاص، امام سرخسي او امام سمرقندي (رَحِمَهُمُ اَللّٰهُ).[1]

**دویم**: د امام محمد (رَحِمَهُ اَللّٰهُ) تر زمانې پورې فقهاء متقدمین دي له دغې زمانې څخه را په دېخوا فقهاء متأخرین دي.

---

(۱) النافع الکبیر لمن یطالع الجامع الصغیر

**دريم**: حافظ شمس الدين الذهبي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) وايي چې تر دريمې صدۍ پورې فقهاء و ته متقدمين ويل کيږي او له دې څخه را په دېخوا فقهاء متأخرين ويل کيږي.

## په مفسرينو کې متقدمين او متأخرين:

له تبع التابعينو څخه مخکې مفسرينو ته متقدمين ويل کيږي او له دوي څخه ورسته مفسرينو ته متأخرين ويل کيږي.

## محدثينو کې متقدمين او متأرين :

(۱)..علامه ابن الصلاح (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمايي: کوم محدثين چې د احاديثو تصحيح کولى شي هغوى ته متقدمين ويل کيږي او کوم چې دغه قوت نه لري هغوى متأخرين دي.[۱]

(۲)..محدث عصر علامه عبدالفتاح ابوغدة (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمايى : له (۴۵۰هـ) نه مخکې علماء متقدمين دي له دې څخه ورسته متأخرين دي.[۲]

(۳)..علامه ابن حجر (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمايى : له (۲۲۰هـ) نه مخکې د متقدمينو دور و او له دې څخه روسته متاخرين دي او دى له دې حديث څخه استدلال کوي : خير القرون قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم. لومړى قرن د ضحابه کرامو دى دويم د تابعينو او دريم د تبع التابعينو تر ټولو روستى تابعي په (۲۲۰هـ) کې وفات شوى.

(۴)..علامه صاوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمايي: له (۵۰۰هـ) مخکې متقدمين دي او دېنه ورسته متأخرين دي.

(۵)..امام ابن عساکر (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمايي: تر (۳۱۰هـ) پورې د متقدمينو دور و له دينه وروسته متأخرين دي دى هم له دې حديث څخه استدلال کوي:

خير القرون قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم. فرمايى: يو قرن سل کاله وي او په حديث کې درې قرنه ذکر شوي او دا حديث رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د هجرت لسم کال سره

---

(۱) مقدمة ابن الصلاح (معرفة انواع علوم الحديث)

(۲) التعليقات الحافلة على الاجوبة الفاضلة لشيخ عبدالفتاح ابوغدة

قریب ویلی دی نو لومړی پ (۱۱۰هـ) پوره کیږي او دا قول علماؤ راجح هم ګرځولی . د یادونې وړ ده چې له دینه عام علماء مراد دي

## په فلاسفه وکې متقدمین او متأخرین

د فلسفي له عربی تر اوړېدلو مخکې (د خلیفه مامون الرشید تر زمانې) فلاسفه و ته متقدمین ویل کیږي او له دوی څخه وروسته متأخرین دي .[1]

## په مناطقه وکې متأخرین او متقدمین

د امام فخرالدین الرازي (رَحِمَهُ اللَّهُ) تر زمانې منطقیانو ته متقدمین او له دغې زمانې ورسته مناطقه متأخرین بلل کیږي خپله امام الرازي رحمه په متأخرینو کې دی[2]



(۱) مارب الطلبة : ۷۵ (بیت العلم)

(۲) حاشیه یعکروزي علی ایساغوجي :؟ (حقانیة)

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيم

داكتاب د تفسير په فن كې ليكل شوى او په هر فن كې د شروع كولو څخه مخكې د اووه (۷) شيانو پيژندل ضروري وي.

چې په دې اووه (۷) شيانو كې درې (۳) دوجوب او څلور (۴) دا ستحباب په مرتبه كې دي.

(۱) د تفسير تعريف (۲) موضوع دتفسير (۳) غايت دتفسير (۴) مابه الاستمداد (۵) حكم (۶) مرتبه (۷) دمصنّف مختصر حالات.

**(۱) د تفسير تعريف:**

لغوى معنى: تفسير صيغه دمصدر ده دباب دتفعيل څخه د فَسّرَ يُفسّرُ څخه په معنىٰ دكشف او وضاحت. [۱]

امام راغب اصفهاني (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمائي چې په كومه صيغه كې د -ف-س-ر-ماده وي په هغې كې به دكشف معنىٰ وي لكه - والصبح اذا اسفر - [۲] اوسفر ته هم ځكه سفر وائي چې په ديكې احوال العالم او اخلاق النّاس منكشف كيږي.

امام راغب (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) داهم فرمايلى دي چې فسر دسفر څخه مقلوب (عكس) دى لكن ددواړو په مابين كې فرق دادى چې سفر دكشف الاعيان لپاره استعماليږي او فسر دكشف المعانى لپاره استعماليږي [۳].

**اصطلاحي معنى:**

دتفسير اصطلاحي تعريفونه ډير دي لكن داعتماد وړ پكې دوه (۲) تعريفه دى:

**لومړى:** دجمهورو

**دوهم:** دعلامه تفتازاني (رَحِمَهُ ٱللَّهُ)

---

(۱):- لسان العرب: ۱ / ۳٦۱ ، والقاموس: ۲ / ۱۱۰ ،

(۲):- سورة المدثر آية - ۳٤ ،

(۳):- المفردات القرآن: ٤۹٥ ، للامام الراغب الاصفهاني

**دجمهورو تعريف**:

علمٌ باصول يعرف بها معانِي كلام لله علٰى حسب الطّاقةِ البشريّة.

**ترجمه**: دايو علم دی په قواعدو چې پيژندلی شي په دې سره معنی ګاني دکلام د الله جلّ جلاله په اندازه دطاقت بشري.

دعلامه تفتازاني (رَحِمَهُ اللَّهُ) تعريف: هوالعلم الباحث عن اصول كلام الله من حيث الدلالة على المراد.

**ترجمه**: دا يو علم دی چي بحث کوي له اصولو او قواعدو دکلام الله څخه له حيثيت ددلالت نه په مراد باندې.

## فرق په مابين دتفسير او تأويل کې

په ديکې مشهور څلور قوله دي :

(۱).. ابو عبيده (رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائي چې تفسير او تاويل دواړه متراف دي. [۱]

(۲)..امام راغب اصفهاني (رَحِمَهُ اللَّهُ) پکې دوه فرقه کوي.

**لومړی**: داچې د تفسير استعمال په الفاظو اومفرداتو کې کيږي اودتأويل استعمال په معانيو او جملو کې کيږي.

**دوهم**: داچې تفسير عام دی په کتب الهيه وو او غير الهيه وو دواړو کې مستعمليږي اوتأويل خاص په کتب آلهيه وو کې مستعمليږي.

(۳).. ابو منصور ماتريدي (رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائی چې تفسير ديته وائې په کوم کې چې په قطعی طريقه باندې دالله(جَلَّ جَلَالُهُ) دمراد تعين وي اوتأويل عبارت دی له ترجيح داحد المحتملات څخه[۲].

(٤).. وقيل التّفسير ما يتعلّق بالرّواية والتّأويل مايتعلّق بالدّراية [۳]

---

(۱):- الاتقان في علوم القرأن: ۲/ ۱۷۳ ،

(۲):- الاتقان في علوم القرأن: ۲ / ۱۷۳ ،

(۳):- الاتقان في علوم القرأن: ۲/ ۱۷۳ ،

(٥).. چا ویلي چې دقرآن دمعنیٰ تعین که له روایت څخه شوی وي دا تفسیر دی او که درأیت څخه شوی وي دا تأویل دی.

(٦)..او چا ویلي چې کومه معنیٰ له عبارت نه معلومه وي هغه تفسیر ده او کومه چې په اشاره سره معلومه شوی وي هغه تأویل ده خو دا دمتأخرینو اقوال دي [۱].

**(۲) موضوع د تفسیر:**

دعلم التفسیر موضوع ده «الایات القرآنیة من حیث فهم المعاني».

**(۳) غرض د تفسیر:**

د علم التفسیر غرض: «الفوز بسعادةالدّارین: والمراد من الدّارین الدّنیا والآخرة»: کامیابي په دنیا کې داده چې اوامر اونواهي معلوم شي داوامرو امتثال وشي او دنواهیو څخه اجتناب وشي اوپه آخرت کې کامیابي داده چې جنت ته داخل اوله جهنّم څخه نجات پیدا کړی: دا امور دوجوب په مرتبه کې دي.

**(۴) مابه الاستمداد:**

یعنې هغه علوم چې له هغوئ څخه په فن دتفسیر کې کومک اومرسته اخستل کیږي هغه څلور دي په هغه ترتیب په کوم چې د حضرت معاذبن جبل (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ) حدیث دلالت کوي کله چې رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) یمن ته لیږلو ورته ئې وویل معاذه ! په څه به فیصلې کوې هغه ورته وویل [۲]

(۱) بکتاب الله کما یقال انّ القرآن یفسّر بعضه بعضاً.

(۲) بسنّت الرّسول الله صلّى الله علیه وسلّم لکه امام شافعي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) فرمائي: کلّ ماحکم به رسول الله صلّى الله علیه وسلّم فهو ممّا فهمه عن القرآن.

---

(۱):- روح المعاني: ۱ / ٤،

(۲):- حدثنا حفص بن عمر.. انّ رسول الله صلّى الله علیه وسلّم لمّا اراد انْ یَبعث معاذاً الى الیمن قال کیف تقضى اذا عرض لک قضاء؟ قال اقضى بکتاب الله قال فان لّم تجد فى کتاب الله ؟ قال فبسنّة رسول الله صلّى الله علیه وسلّم قال فان لّم تجد فى سنّة رسول الله صلّى الله علیه وسلّم ولا فى کتاب الله ؟ قال اجتهد رأیي... سنن ابى داوٗد:۲/ ۱۵ ، رقم الحدیث ۳۵۹۲.

(٣) باثارالصحابة والتابعين فيقدم الاعلم كالخلفاء والعبادلة په اثار د صحابه و کې به اول دهغه صحابه وو قول مقدم وي كوم چې په نورو زيات علم لري لکه خلفاء الراشدين او عبادله اربعه لکه عبد الله بن مسعود (رضي الله عنهما) ما عبد الله بن عباس (رضي الله عنهما) عبد الله بن عمر (رضي الله عنهما) او عبد الله بن زبیر (رضي الله عنهما).

(۴)..د عربی النسل فصحاء وو كلام.

(۵) **حکم د علم التفسیر**

په ټولو کتب سماويه وو باندې اجمالي علم لرل فرض عين ده.

او په قرآن کریم باندې هم په دی حیثیت چې مونږ ددې د احکامو په امتثال باندې مکلف يو.

اوتفصيلي ايمان پرى فرض كفائي دى ځکه چې تفصيلي ايمان فرعه دعلم ده اوس كه تفصيلي ايمان هم فرض عين شي نو تفصيلي علم به هم فرض عين شي او كه تفصيلي علم فرض عين شي نو زرائع دمعاش به معطل شي.

(۶) **مرتبه د علم التفسیر**: مرتبه دعلم التفسير دټولو علومو څخه اوچته ده ځکه شرافت د علم په اعتبار شرافت دمعلوم سره وي او دعلم التفسير معلوم دټولو معلومات څخه اوچت او عالي دى چې هغه مرادا د كلام الله دى حضرت عبدالله بن عباس (رضي الله عنهما) د يؤتى الحكمة ترجمه په علم التفسير سره کوي فرمائي چې (معرفة الناسخ والمنسوخ والحلال والحرام).

**واضع دعلم التفسير:**

دعلم التفسير واضعين الراسخون فى العلم من عهد النبى صلى الله عليه وسلم الى ههنا على التحقيق.

**(۷) د مصنف مختصر حالات:**

**نوم او نسب**: ابو الخير ناصر بن عبد الله بن عمر بن على بن محمد بن على (رحمه الله).

**استوګنګی**: قاضي بيضاوي اصل کې دپارس يعنې دايران وو او په شيراز ښار کې ئې دقاضي په حيث دنده ترسره کوله څه موده پس دقضاء څخه معزول کړی شو بيا يوبل ښار ته لاړ هلته ددغه يو پير اوسيده چې ددې پير خواته وزير هم اوسيده نو قاضي بيضاوي (رحمه الله) دا اراده

وکړه چې دا پیر دې وزیر ته واسطه کړم او بیرته په خپل منصب وګومارل شم په دغه قریه کې یوه درسګاه وه دی هم هلته ورغی او په درس کې کښیناست ددغه استاذ طریقه داوه چې اول به ئې اعتراضات وکړل بیابه ئې په طالبانو تیرول له دي نه پس به ئې جوابات کول استاذ داعتراضاتونه پس وویل چې څوک به دا اعتراضات واوروي نو قاضي بیضاوي پاڅیده دټولو اعتراضونو جوابونه ئې وکړل استاذ ورته وویل چې اول به اعتراضات معاد کوې بیا به جوابات کوي نو ده ورته په هماغه ترتیب اعتراضات هم معاد کړل په دې درس کې وزیر هم ناست وو دقاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) ذهن ته حیران شو بیا دغه وزیر ورته د ډوډۍ دعوت ورکړ چې ډوډۍ ئې اوخوړه وزیر ترینه پوښتنه وکړه چې څوک ئې او چیرته ځې ده ورته وویل چې په شیراز کې قاضي وم له خپلې دندې ئې معزول کړم تاپسې راغلی یم چې بیرته خپل منصب ته لاړشم وزیر ورته وویل چې الله دومره لوی دولت درکړی اوته ادنیٰ پسې ګرځې.

له دینه پس خپل پیر ته راغی له هغه ئې دمنصب خواست وکړم هغه وزیر ته وویل چې داعالم ستاسره ځان په جهنم کې یو ځای کول غواړي قاضي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) وویریدلو او دقضاء له منصب څخه تیرشو او ددې تفسیر لیکل ئې پیل کړل.

**بیضاء**: بیضاء په پارس کې دیو درې نوم دی دې درې سره یوه سپینه مانۍ وه ددغې علاقې خلکو به ورته قصر سفید ویلې اودې درې ته به ئې هم قصر سفید ویلې او اطرافو ته به ئې بیضا ویلې.

**وفات**: دقاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) په وفات کې دوه قوله دي:

(۱) تاج الدّین سبکي صاحب دطبقات الکبریٰ وائي چې په سنة (۶۸۵) هجري کې په مقام تبریز کې وفات شو.

(۲) بعضو دا ویلي چې په سنة (٦٨٢) هجري کې وفات شو خو اول قول راجح دی.

**تصانیف**: (۱) شرح المصابیح په علم حدیث کې (۲) منهاج الاصول اوشرح منهاج په اصول فقه کې (۳) شرح مرصاد الافهام الی مبادی الکلام لابن حاجب صاحب الکافیة (۴) طوابع الانوار اومختصر کشاف په علم کلام کې (۵) مختصر الوسیط یعني غایة القصوىٰ په فقه شافعي کې (۶)

مصباح الأرواح په اصول الدّين کې (۷) شرح مطالع په منطقو کې (۸) منتهى المعنى بشرح اسماء الحسنى (۹) لبّ الالباب فی علم الاعراب (۱۰) نظام التّواريخ (۱۱) انوار التّنزيل واسرار التّاويل يعني تفسير بيضاوي دقاضي بيضاوي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) دتبحّر علمي اندازه له دي تفسير نه معلومیږي.

## ينځه ضروري بحثونه: تفسير بالرأية

(۱)..هل يجوز التفسير بالرّأی:

**ترجمه**: آيا تفسير په رأئې سره جائزدی؟

دتفسير بالرّای معنیٰ داده چې يو شئ په کتاب الله وسنّت الرّسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) اوپه اثارو د صحابه وو رضوان الله عليهم اجمعين کی پیدانشي.

نو اوس ايا مجتهد پخپله رأيه باندې ددی معنیٰ بیانولی شی او که نه؟ دې کې دوه (۲) مذهبه دی.

(۱) مذهب بعضی علماء فرمائي چې تفسير بالرّأيه ناجائزدی اود دوی لپاره دوه (۲) دلائل دي.

**لومړی دليل**: قال رسول الله صلّى الله عليه وسلّم من تكلّم فی القرآن برأيه فاصاب فقد اخطأ[۱]

**ترجمه**: چاچې خبرې وکړې په قرآن کې په خپله رأيه او حق ته ورسيد په تحقيق سره دی خطاء شو.

**دوهم دليل**: قال رسول الله صلی الله عليه وسلّم من قال فی القرآن بغير علم فليتبوّأ مقعده من النّار[۲]

**ترجمه**: چاچې په قرآن کې بې له علمه خبرې وکړې نو تيارى دې وکړی ځای داوسيدو له اور نه.

**دوهم مذهب**: جمهور علماء فرمائي چې تفسير بالرّأيه جائز دی او ددې لپاره ډير دلائل پيش کوي.

---

(۱):- حدثنا عبدالله بن محمد.. حدثنا ابو عمران عن جندب قال: قال رسول الله صل الله عليه وسلم من قال فی كتاب الله فأصاب فقد اخطأ: سنن ابی داؤد كتاب العلم : ٤ / ٤٣ . رقم الحديث ؟٣٦٥٢ وفی روايت جامع الترمذي من قال فی القرآن : ٥ / ٦٦ .. رقم الحديث ٢٩٥١؟.

(۲):- حدثنا محمودبن غيلان ... عن ابن عبّاس قال: قال رسول الله صلّى الله عليه وسلّم من قال فی القرآن بغير علم فليتبوّأ، مقعده من النّار: جامع التّرمذي : ٥ /٦٥ .. رقم الحديث ٢٩٥٠ ، ورواه احمد فی مسنده : ٣ / ٤٩٦ رقم الحديث ٢٠٦٩،

**اول دليل**: قال الله تعالى : (وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰى اُولِي الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهُ مِنْهُمْ) [۱]

**ترجمه**: كه دوى دامتنازع فيها مسئله واپس كړې وائى رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته او مجتهدينو ته نو ددى په ترجمة به مجتهدين پوهه شوى وائى.

دوى ته الله جلّ جلاله فرمائى چې كوم ايات په ترجمه نه پوهيږى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم او مجتهدينو ته ئى واپس كړئ مجتهد ددى په معنى پوهيږي.

**دوهم دليل**: قال الله تعالى (كتابٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِيَدَّبَّرُوْا اٰيَاتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُو الْبَاب.) [۲]

**ترجمه**: دا قرآن داسې يو عظيم كتاب دى چې ما نازل كړى ددې لپاره چې ددې په اياتونو كې (سوچ او فكر) وكړئ، او خاوندان دعقل ترينه پند او نصيحت والي.

دې آيت كې الله جلّ جلاله مسلمانانو ته په اياتونو كې دسوچ او فكر دعوت وركړى اودا تفسير بالرأيه ده.

**دريم دليل**: عن ابن عبّاس رضى الله عنهما القرآن ذلولٌ ذُو وُجُوه فاحملوه على احسن وجوهه [۳] وحسن الوجه يدرك بالرّأى.

ابن عبّاس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) فرمائي قرآن نرم كتاب ذي خاوند د ډير وجوهو (دډيرو وجوهو احتمال لرى) تاسو ئي ورحمل كړى په خايسته وجه، اودحسن الوجه ادراک په رأى سره كيږي.

---

(۱):- سورة النّساء : ۸۳،

(۲):- سورة ص: آية- ۲۹،

(۳):- حدثنا محمد بن مخلد . . . عن ابن عبّاس قال: قال لي رسول الله صلّى الله عليه وسلّم القرآن ذلولٌ ذو وجوه فاحملوه على احسن وجوه. رواه دارقطني قال ابن الاثير فى نهاية الذّلول منّ الذّل بالكسر، ضدّ الصعب.

## دجمهورو لخوا بعضو علماو ته جوابونه

(۱).. **جواب**: جمهور دبعضو علماو له اولني دليل څخه جواب کوي هغه دا چې دفقد اخطأ معنیٰ داده فقد اخطأ الطّريق لمخالفة التّرتيب.

**ترجمه**: يعنې څوک چې په قرآن کې خبرې کوي په خپله رأيه نو دا خطاء دی له وجې د مخالفت دترتيب نه ځکه ترتيب خو دادی چې اول به کتاب الله ته ځي بيا به سنّت رسول الله صلی الله عليه وسلّم ته ځي بيابه اثارالصّحابه ته ځي که دی ټولو کې دغه معنیٰ پيدا نشوه بيا به تفسيربالرّأيه کوی، نوکه څوک پرته له دغه ترتيب تفسير بالرّأيه کوي دا خطاء دی ځکه چې د ترتيب لحاظ نه ساتي.

(۲).. **جواب**: دبعضو علماو دوهم دليل دا و (من قال فی القرآن الخ ) له دينه جمهور داسې جواب کوي چې: من قال فی القرآن ای فی مشکل القرآن او فی مجمل القرآن.

**ترجمه**: يعنې چاچې په مشکلاتو او مجملاتو دقرآن کې خپله رأيه استعمال کړه ځکه ددې مشکلاتو او مجملاتو تفسير به دمتکلّم اوشارع نه اخستلی شي او ده پکې خپله رأيه استعمال کړه نو (فليتبوأء مقعده من النّار).

## (۲) دمحکم اومتشابه تعريف

**محکم**:

**لومړی تعريف**: ماعرف المراد منه امّا بالظّهور او بالتّأويل.

**ترجمه**: هغه چې پيژندلی شي مراد يې يا په ظهور (قبل التّأويل) سره او يا په تأويل سره.

**دوهم تعريف**: مالايحتمل من التّأويل الّا وَجْهاً واحداً.

**ترجمه**: محکم هغه دی چې احتمال نلري له تأويل نه مګر يوه وجه (احتمال ديوی وجی پکې وي).

**متشابه**:

**لومړی تعريف**: متشابه هغه دی چې الله جلّ جلاله د هغې ترجمه تر خپل علم پورې خاص کړې وي.

**دوهم تعريف**: (المتشابه مَا احتمل أوجهاً).

**ترجمه**: متشابه هغه دی چې دډيرو وجوهو احتمال پکې وي.

# په محكم او په متشابه كې اختلاف

دعلماوو په دې كې اختلاف دى چې آيا دقرآن ټول آياتونه محكمات دي او كه ټول متشابهات دي او كه بعضې محكمات دي او بعضې متشابهات دي نو په دې كې درې مذهبه دي.

**اول مذهب**: دا وائي چې دقرآن كريم ټول آياتونه محكمات دي او دليل دا وائي قال الله تعالى (كتابٌ أُحكِمَتْ أياته)[1]

**ترجمه**: يعنې دقرآن كريم ټول آياتونه محكمات دي.

**دوهم مذهب**: دا وائي چې دقرآن كريم ټول آياتونه متشابهات دي او دليل دا وائي: قال الله تعالى (كتابًا متشابهًا)[2]

## دريم مذهب دجمهورو:

دا وائي چې دقرآن بعضې آياتونه محكمات دي او بعض متشابهات دي دليل دا وائي (مِنْهُ آيَاتٌ مّحكَمَاتٌ هُنّ امّ الكتاب وأُخرُ متشابهات).[3]

**ترجمه**: يعنې بعضې آياتونه دقرآن محكمات دي او بعض متشابهات دي او دا راجح هم دى او هغه دوه مذهبونو ته داسې جواب كوي.

(۱).. **جواب**: چې دلته له احكام نه احكام اصطلاحي نه دي مراد بلكې لغوي مراد دي چې اتقا او مضبوط والى دى أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ يعنې مضبوط دي آياتونه دقرآن تناقض پكې نشته دفصاحت او بلاغت نه خالي نه دي

(۲) **جواب**: د دوهم مذهب له دليل نه جواب ددوئ دا دليل داو (كتابًا متشابهًا) چې له متشابه نه متشابه اصطلاحي ندى مراد بلكې متشابه لغوي مراد دى چې تماثل (مشابهت) دي كتابًا متشابهًا داقرآن داسې كتاب دى چې آياتونو كې ئې تماثل او مشابهت دى چې ټول معجز

---

(۱):- سورة هود: ۱،
(۲):- سورة الزمر: / ۲۳،
(۳):- سورة آل عمران:/ ٦،

دي ټول په اعلیٰ درجه دفصاحت اوبلاغت کې دي ټول د تردّد اوتناقض نه خالي دي مصد ق دمتشابهاتو حروف مقطعات دي او هرچه صفات ذاتیه دالله جلّ جلاله دي لکه (۱) علم (۲) حیت (۳) قدرت (۴) اراده (۵) سمع (۶) بصر (۷) کلام (۸) تکوین (کما فی شرح العقائد) دا صفت له متشابهات څخه نه دي ځکه ددې معنیٰ کلي معلومه ده لکه د سمع معنی ده ادراک المسموعات او د بصر معنی ده ادراک المبصرات.

له دی صفاتو ذاتیو څخه ماسوا چې کوم صفات دي لکه یدالله فوق ایدیکم، الرّحمٰن علی العرش استوی همدارنګه لکه د صحیح مسلم حدیث دی عبدی جُوعتُ فلم تطعمنی[1].

**ترجمه**: اې زمابنده زه وږی وم تا ماته ډوډی رانه کړه دا صفات له متشابهاتو څخه دي یعني د دې معنی الله جلّ جلاله ته معلومه ده بل هیچا ته معلومه نده.

## دمتشابهاتو په معانیو کې اختلاف

دمتشابهاتو په معناګانو باندې علماء پوهیږي او که نه؟

## د جمهور علماءو رایه:

جمهور وائي چې دمتشابهاتو په معناګانو یوازې الله جلّ جلاله پوهیږي بل هیڅوک پرې نه پوهیږي.

## د بعض علماءو رایه:

بعضې علماء وائي چې دمتشابهاتو په معناګانو راسخین علماء هم پوهیږي.

خو اصل اختلاف په دې آیات کریمه کې دی( وما یعلم تأویله الّا الله والرّاسخون فی العلم یقولونه امنّابه) [2].

---

(۱) :- حدثنا محمد بن حاتم ... عن ابی هریرة قال. قال رسول الله صلی الله علیه وسلّم انّ الله عز وجلّ یقول یوم القیامة یا ابن آدم مرضتُ فلم تعدنی قال یا ربّی کیف أعُود وانت ربّ العالمین ؟ قال اما علمتَ انّ عبدی فلانًا مرضَ فلمْ تعده اما علمتَ انّک لوعدّته لوجدتنی عنده یا ابن آدم استطعمتک فلم تطعمنی قال ! یا ربّ وکیف اطعمک وانت ربّ العالمین قال اما علمت انّه استطعمک عبدی فلان فلم تطعمه اما علمت انک لو اطعمتک لو جدت ذالک عندی . . صحیح مسلم کتاب البرّ والصلّة:۱۳/۸ رقم الحدیث ۲۵۶۹ .

(۲) :- سورة آل عمران.

جمهور علماء وائي چې واو په والرّاسخون کې استنافیه دی او یقولونه د والرّاسخون لپاره خبردی نو معنی داشوه چې نه پوهیږي په معنی ددې مګر یو الله او راسخین علماء وائي مونږ ایمان راوړی په دې متشابهاتو باندې.

بعضي علماء: وائې چې داواو عاطفه ده اویقولون حال دی نومعنی دا چې الله جل جلاله او راسخین علماء ددې په ترجمه او معنی پوهیږي په حال کون دراسخینو کې چې دوی وائې امنّا بِهِ مونږ ایمان راوړی په دې متشابهاتو؛ خو راجح قول دجمهورو ده چې دا واو استنافیه شي او والرّاسخون مبتداء شي

او یقولونه ورته خبرشي ځکه دلته دعبدالله بن مسعود (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) او عبدالله بن عباس (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) بل قرائت دی هغه دا (وما یعلم تأویله الّا الله ویقول الرّاسخون فی العلم)[1] اوپه دې قرائت کې واو استنافیه[2] متعین دی.

## (۳) قِدَم او حدُوث دقرآن

قرآن قدیم دی او که حادث ؟

دا مسئله مؤرّخین په فتنه خلق القرآن سره یاده وي یادې مسئلې دخلیفة مأمون الرّشید په زمانه کې زور واخیست او په خپله مأمون هم معتزلو په خلق او حدوث دقرآن قانع کړی ؤو نو ځکه مأمون په یاده مسئله کې ډیری علماء شهیدان او ځینې ئې زندانونو ته واچول تردې چې دوخت ستر امام اومحدث احمدبن حنبل (رَحِمَهُ اللَّهُ) پکې په دورو ووهل شو په دې مسئله کې دوه مذهبه دي.

(۱):- قال عبدالرّزاق : انبأنا معمر عن ابن طاؤس عن ابیه قال: کان ابن عبّاس یقرأ وما یعلم تأویله الّاالله ویقول الرّاسخون امنّا به ، المصنّف لعبدالرّزاق وکذا رواه ابن جریر عن عمربن العزیز ورواه قرائت ابن مسعود ایضًا.

(۲) واو په دوه قسمه دی واو اسمي او واو حرفي واو اسمي هغه ضمیر دجمعي دی چې دجمعو په صیغو کې راځي بیا واو حرفي په شپږ قسمه ده (۱) واو عطف (۲) واو معیة (۳) واو اشباع (٤) واو قسم (٥) واو حال (٦) واو استناف او دیته واو ابتداء هم وایي دا هغه واو دی چې له دې څخه د وروسته جملې له ماقبل سره معناً او اعراباً هیڅ تعلق نه وي.

## د اهل السنّة مذهب

اهل السنة والجماعة وائي چې قرآن قديم دی.

## د معتزله مذهب

معتزله وائي چې کلام (قرآن) حادث دی.

دمعتزله د خپلې دعوې لپاره دوه دليله وايي:

**لومړی دليل:** قال الله تعالى : (الله خَالِقُ كُلِّ شيءٍ)(١)

**ترجمه:** الله جل جلاله د هر شي خالق دی، او په هرشي کې قرآن هم شامل دي نو الله جل جلاله د قران خالق هم شو او قران مخلوق شو.

**دويم دليل:** دا دی چې کلام مرکب دی له اصواتو او حروفو او له يو خاص ترتيب او داصفات نه وي مګر په حادث کې وي ځکه اصوات،حروف او دا خاص ترتيب حادث دی نو مرکب له حادث نه حادث وي.

**قياس:** لانّ الكلام مركّب من الاصوات والحروف فيها ترتيب وكلّ ماهذا شأنه يكون حادثًا.

**نتيجه:** فالكلام حادث.

**داهل السنة دليل:** دوی کلام په دوه قسمه کوي (١) کلام نفسي (٢) کلام لفظي کلام نفسي قديم دی او کلام لفظي حادث دی اصل اختلاف په وجود د کلام نفسي کې دی اهل السنّة په وجود د کلام نفسي قول کوي او معتزله په وجود د کلام نفسي قول نه کوي.

اهل السنّة په وجود د کلام نفسي څو قسمه دلائل وائي:

---

(١) سورت الرعد :اية ١٦

(١) **قرآني دلائل**:

(١) قال الله تعالى: فَاَسَرَّهَا يُوسُفُ فِيْ نَفْسِه وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ قَالَ اَنْتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا(١)

(٢) قال الله تعالى: وَاذْكُرْ رَبَّک فِي نَفْسِک(٢)

(٣) قال الله تعالى: مَاتَعْلَمُ مَافِي نَفْسِي وَلَا اَعْلَمُ مَافِي نَفْسِک.﴿٣﴾

(۴) قال الله تعالى: وَيَقُوْلُوْنَ فِي اَنْفُسِهِمْ.(۴)

(٢) **احاديث نبوية**:

(١) حديث امّ سلمة: فى الطبرانى فى رجل سأل النّبى صلّى الله عليه وسلّم قائِلًا انّى لاحدث نفسى بالشئ لوتكلّمت به لاحبطت اجري فقال النّبى صلّى الله عليه وسلّم لايلقى ذالک الّا مؤمنٌ.(٥)

**ترجمه**: ام سلمه (رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) د يو سړي په باره کې فرمايي چې نبي (عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته يې وويل ماته په نفس (زړه) کې يو څه خبرې راځي که په ژبه يې ووايم نو ټول اعمال به مې باطل شي رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ورته وويل دا ته پېښيږي مګر مؤمن ته.

(٢) عن ابى هريرة: رضى الله عنه قال: قال النّبى صلّى الله عليه وسلّم يقول الله تعالى آنا عند ظنّ عبدى بى وآنا معه اذا ذكرنى فانْ ذكرنِى فى نفسه ذكرته فى نفسى.(٦)

**ترجمه**: ابوهريرة (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) وايي چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمايلي چې الله (جَلَّ جَلَالُهُ) وايي زه د خپل بنده په ګمان يم او چې کله مې يادوي زه له خپل بنده سره يم او که په نفس (زړه) کې مې يادوي زه يې هم په نفس کې يادوم.

---

(١):- سورة يوسف: آية ٧٧ ،

(٢):- سورة اعراف: آية ٢٠٥ ،

(٣):- سورة المائدة: آية ١١٦ ،

(٤):- سورة المجادلة: آية ٨ ،

(٥):- المعجم الطبرانى: ١/ ٢٢٢ رقم الحديث ٢٥٦ ،

(٦):- صحيح البخارى ٢/ ١٢١ رقم الحديث ٧٤٠٥ .

(۳) **دليل**: قال عمر رضي الله عنه اني زورت فى نفسى مقالة وكثيرًا مَا تقول لصاحبك انّي فى نفسى كلامًا اريدان اذكره لك[۱].

(۲) **دليل: البداهة**:

فانّ الوجدان شاهد بوجودالتصوّر الجمالى قبل الكلام.

**ترجمه**: بيشكه وجدان شاهد دی په وجود د تصوّر اجمالي مخکې له کلام نه.

(٤) **دليل**: انّ الكلام لفى الفؤاد وانّماجعل اللّسان على الفؤاد دليلًا:[۲]

**ترجمه**: په تحقيق سره کلام په زړه کې وي او ژبه په هغه دليل دی.

د معتزله و له لومړي دليل نه ځواب داسې کوي چې (كل شيء) کې له شی څخه شیء محدث وغير الله مخلوق.

او له ديم دليل څخه يې داسې جواب کوي چې کوم کَلام له حروفو او اصواتو څخه جوړ دی هغه کلام لفظي دی او کلام لفظي ته موږ هم مخلوق وايو.

(۴) **ضرورت علم تفسيرته**:

علم تفسير ته دضرورت بعض وجوهات دادي.

(۱).. قرآن کريم د ژوند قانون او دستور دي او د قانون تعميل لومړی بنه وضاحت او تفسير غواړي.

(۲).. قرآن د الله جل جلاله الفاظ دي او ددې په اسرارو پوهه غير له تفسيره شونې نه ده.

(۳) د قرآن حقائق او دقائق د کمال بلاغت اختصار په وجه وضاحت ته اړتيا لري.

(۴) کله بعض شرائط او مکمّلات دظهور له وجې پرېږدي نو د اخفي شي په غير باندې.

(۵) کله يو لفظ ډيرو معانيو احتمال لري نو له دې وجې علم تفسير ته اړتيا ده.

(۱):- شرح العقائد النّسفية ۹۳ ومثله فى صحيح البخارى بلفظ وكنت قد زورت مقالة اعجبتنى اردت ان أقدمها بين يدي ابى بكر ۲/ ۵۲۰ رقم الحديث ٦٤٤٢.

(۲):- شرح العقائد النّسفية ۹۳.

(۵) **کیفیت نزول القرآن:**

دقرآن لپاره دوه نزوله دي.

(۱).. نزول له لوح محفوظ نه اسمان ددنیا ته دفعتًا واحدتًا اودا نزول توفیقي دی.

(۲).. نزول له اسمان ددنیا څخه په رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې.

بیا په رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې (۸۲) سورتونه مخکې له هجرت نه او (۳۱) سورتونه روسته له هجرت نه په (۲۳) کالو کې نازل شوي دي.

په مکه مکرّمه کې اول اقرأ (سورت علق) نازل شو او آخري سورت عنکبوت یاسورت مؤمنین یاسورت مطفّفین نازل شو.

بعضې وائې چې سورت فاتحه په مکه مکرّمه کې نازل شوی او بعضې وائې چې په مدینه منوّره کې نازل شوی خو راجح قول دادی چې دا مکرّر نازل شوی دی یوځل په مکه مکرّمه کې او بل ځل په مدینه منوّره کې[۱].

## سورتونه په اعتبار دناسخ او منسوخ

سورتونه په اعتبار د ناسخ او منسوخ سره په څلور قسمه دي.

(۱).. هغه سورتونه دي چې په هغې کې ناسخ او منسوخ دواړه وی اودا (۲۵) سورتونه دي.

(۲).. هغه سورتونه دي چې په هغې کې فقط منسوخ وي اودا (۴۳) سورتونه دي.

(۳).. هغه سورتونه دي چې په هغې کې فقط ناسخ وي اودا (۶) سورتونه دي.

(۴).. هغه سورتونه دي چې په هغې کې نه ناسخ وي او نه منسوخ اودا (۴۰) سورتونه دي.[۲]

---

(۱):- الاتقان فی علوم القرآن للامام السیوطی: ۱ /۵٤،

(۲):- دناسخ او منسوخ په تعداد کې دعلماء اختلاف دی خو مونږ دلته په لنډ ډول دومره یادونه کوو چې امام جلال الدّین السیوطی رحمه الله په خپل کتاب الاتقان فی علوم القرآن : ۲ / ۲۲ / ۲۳ - کې ښه وضاحت کړی او امام شاولي الله الدّهلوي رحمه الله په لفوزالکبیر فی اصول التفسیر کې ناسخ او منسوخ آیاتونه له (٤٠) نه تر (٤٦) پورې رانقل کړي د لا ښه وضاحت لپاره هلته لاړ شئ!.

## بحث د اعجاز القرآن

قرآن د الله جلّ جلاله يو معجزه ده او معجزه صيغه د اسم فاعل ده په معنى د عاجز كونكي.

او په اصطلاح كې امر خارق للعادات صادر بيد المدّعى النّبوت.

**ترجمه**: دا يو امر دى چې خارق العادات (مخالف العادت) صادر شوى د داسې كس په لاس چې هغه د نبوّت دعوه كړي وي.

**خوارق**: خوارق په شپږ قسمه دي (۱) معجزه(۲) ارهاص (۳) كرامت (۴) معونت(۵) استدراج (۶) اهانت.

**وجه د حصر**: وجه د حصر په شپږو اقسامو كې داده چې دا امرخارق العادات به خالي نه وي يا به له لاس د مسلمان نه صادر شوى وي ياد كافر نه كه لاس د مسلمان نه صادر شوى وي بيابه خالي نه وي يابه دا مسلمان مدّعى د نبوّت وي يابه نه وي كه مدّعى د نبوّت وه بيابه خالي نه ئې يابه قبل النّبوت ترينه صادر شوى وي يابعد نبوت كه قبل النّبوت وه ديته ارهاص وائې اوكه بعدالنّبوت وه بيا ديته معجزه وائې اوكه دامسلمان مدّعى د نبوّت نه وه بيابه خالي نه وي يابه مؤمن كامل وي يابه نفس مؤمن وي كه د مؤمن كامل د لاس نه صادر شوى وي ديته كرامت وائې اوكه د نفس مؤمن د لاس نه صادر شوى وي ديته معونت او اعانت وائې اوكه د لاس د كافر نه صادرشوى وي دا به بيا خالي نه ئې يابه دا امرخارق العادت دده دعوې سره موافق وي يابه مخالف وي كه دده دعوې سره موافق وه ديته استدراج وائې اوكه دده له عوې سره مخالف وه نو ديته اهانت وائې د استدراج مثال لكه دجال به خلكو ته وايي چې په تاسو باران راوروم نو اسمان طرف ته به اشاره وكړي په خلكو به باران راوريږي داسې ډير كارونه به كوي لكه جادوګران چې كوم كارونه كوي.

داهانت مثال لكه مسيلمة الكذّاب چې د نبوّت دعوه كړي وه يو كس ورته راغى ورته ئې وويل چې زما دا يوه ستركه ړنده ده دعا راته وكړه چې الله جل جلاله ئې جوړه كړي كله چې ده ورته دعا وكړه نو دا روغه ستركه ئې هم ړنده شوه.

## معجزات، عاديات او عجائبات

**عاديات**: هغه دي چې دداسي اسبابو او امورو سره تعلق لري چې خواص اوعوام ئې ټول پيژني لکه مړيدل داده ډوډۍ دخوړلو پوري تعلق لري.

**عجائبات**: هغه دي چې دداسې امورو اواسبابو سره تعلق لري چې خواص پرې پوهيږي او عوام پرې نه پوهيږي لکه طياره په هوا الوتل له داسي اسبابو سره ئې تعلق دي چې عوام پرې نه پوهيږي غير له خواصو نه.

**معجزات**: هغه دي چې له اسبابو سره تعلق نه لري لکه ټول معجزات د رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او دکومو شيانو تعلق چې له اسبابو سره دي دهغې مقابله کيدی شي ځکه دا مصنوعات د بنده ګانو دي اوکوم چې داسبابو سره تعلق نه لري دهغې مقابله نشي کيدی ځکه دا خالص قدرت الهي وي نو قرآن هم يوه معجزه چې ترقيامته ئې مقابله نشي کيدی.

## وجوه د اعجاز (دلائل اعجاز)

وجهې داعجاز دقرآن ډيرې زياتې دي هر څوک يوه وجه بيانوي مونږ ئې هم دلته يو څو دلائل او وجهې بيانوو.

(۱) **بلاغت**: قرآن له داسي الفاظو او جملو څخه جوړ دی چې ددنيا ټول بلغاء او فصحاء ئې حيران کړی اودمقابلې نه ئې عاجز کړي.

توهم: بعضې خلک دا توهم کوي چې کيدی شي دقرآن مقابله به کيدی شي خو چابه ضروري نه وي ګڼلي ځکه پاتې شوې دی خو دا خبره بيخي غلطه ده ددي داسي مثال دي لکه يوکس له تندې نه مړدی اوبل وائې چې اوبه وې خو ده ضروري نه ګڼلی ضرورت ئې ورته نه وو، هغه له تندې مړدی او ته وائې اوبو ته ئې ضرورت نه وو ، نو کفارو هم دمسلمانانو سره هلته جنګ ته غاړه ګيښوده چې کله دقرآن دمقابلې نه عاجزه شول ورنه دقرآن مقابله خو له جنګ نه اسانه ده کړې به ئې وائی ؟ او ډير دې مقابلې ته راوتلي هم وه خو دمقابلې توان ئې نه لرلو چې يو له دغې جملې څخه مسيلمةالکذاب وه چې څه جملې ئې له ځانه جوړي کړي وې د وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا په مقابله کې

چې څه الفاظ ئې دادي وَالْمبزرات زَرعًا والحاصداة حصدًا وَالزاريات قمحًا والطّاحنات طحنًا والعاجنات عجنًا والخابزات حبزًا والثاردات ثردًا والّا قماة لقمًا اهالة وسمنًا.[۱]

**ترجمه**: قسم دی په هغه ښځو چې تخونه شيندي لپاره دفصل اوقسم ده په هغه ښځو چې لوونه کوي لو کول دوی راوباسي ورو لره او قسم په هغه ښځو چې داوړه لمدوی الخ چې کله ئې دالفاظ جوړ کړل اوقرآن سره ئې مقايسه کړل نو خپله ئې ورپورې وخندل چې په دې سره چيرته دقرآن مقابله کيږي هغه خو دفصاحت اوبلاغت نه ډک کلام دی.

(۲) انباءالغيب: دوهم دليل د اعجاز القرآن انباء اوخبر ورکول دي له غيبونه، په دنياکې داسې کتاب نشته چې هغه دغيبو خبرورکړی وي اوهغه بلکل ريښتيا او ددې خبر سره مطابق وي سوا دقرآن نه چې څومره اخبارات ئې له غيبونه ورکړي ترقيامته پورې ټول سل په سله ريښتيادي لکه يو اخبار بالغيب الله جلّ جلاله رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ) ته ورکه ( انّ الّذی فرض عليه القرآن لرآدّوک الی مَعَادٍ)[۲].

**ترجمه**: بيشکه کوم ذات چې په تا قرآن نازل کړی دی هغه به تا خامخا مکې ته واپس کوي داخبره مخکې دفتحې دمکې نه وه همغسې وشول چې په اتم کال دهجرت ئې مکه فتحه کړه همدغه رنګ الله تعالی فرمائي (انّا اعطينک الکوثرفصلّ لربّک وانحر انّ شانِئک هوالابتر)[۳].

مفسرين فرمائي چې په دې سورت کې څلور مغيبات دي.

(۱) (انّ اعطينک الکوثر ) په ديکې کثرت داتباعو ته اشاره ده يعنې اخبار دی دکثرت امت نه اوپه ټولو امتونو کې درسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ) امت زيات هم شو.

---

(۱):- دغسې ئې د الحاقّة په مقابل کې الفيل ماالفيل وَمَا اَدراک ماالفيل له ذنب وبيل وخرطوم طويل.. علوم القرآن ص ٤٦ مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله.

(۲):- سورة القصص: آية ۸۵ ،

(۳):- سورة الکوثر،

(۲) ( وانحر) کې اشاره اواخبار دی مال داري ته چې ته به په قرباني باندې قادرشي همدغسې وشول دابوبکر صدیق (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)او خدیجه (رَضِيَ اللهُ عَنهَا)په مال باندې مالداره شو چې هرکال به ئې قرباني کوله.

(۳) (انّ شانئک هو الابتر) کې اشاره او اخبار دی چې ستا دښمن میرات دی اولادونه به ئې نه وي همدغسې وشوه چې اوس دابوجهل اولاد نشته.

(٤) (انّ شانئک هوالابتر) کې اشاره ده چې ته میرات نه ئې ستا اولادونه به ډیر وي او همد غسې وشول چې په مخ دځمکه ځومره مسلمانان دي دټولو روحاني پلار دی.

(۳) اعجاز سیاسي: بل دلیل داعجاز القرآن هغه سیاست دی عربان مخکې له نزول دقرآن نه په مخ دځمکه ذلیل ترین قوم وو یوظالم او بې علمه قوم وه حتّی چې خپلې لونړه به ئې ژوندی خښولې اوهمدارنګه نارینه اولادونه به ئې درزق دتنګ والي او ډار له وجې نه ژوندي خښول داسې کارونه به ئې کول چې انسان ئې تصوّر نشی کولې په ټولو عربو کې دیولس (۱۱) کسانو خط یادوه اسباب دتسلط ورسره نه وو لکه تعلیم صنعت اتفاق زراعت هیڅ ورسره نه وو خو چې کله قرآن نازل شو په هغه وخت په ټوله دنیا دوه (۲) سپرطاقتونه (امپراطوری )وو یو دقیصر او بله دکسری دغه دواړه سپرطاقتونه دغو عربو رانسکور کړل اوپه هغو طاقتورو خلکو ئې حکومت کولو دقرآن په برکت په دوی کې داسې خلک پیداشول چې ټوله نړۍ ئې سیاست او حکومت ته حیرانه شوه او اوس هم حیرانه ده لکه خلفاءالرّاشدین امیر معاویه (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) سعدبن ابی وقاص (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) حضرت زیاد (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) وغیره د عربو وتلې سیاسي او بابصیرتّها څهرې وې حتّی چې خلافت عمري (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) نورو سیاستونو اوحکومتونو ته دمتن مثال لري.

(۴) **اعجاز حفظي**: قرآن یوه معجزه داهم ده چې دانسانانو په تاریخ کې بل دومره غټ کتاب ندې تیر شوی چې هغه دې ماشومانو ته هم یادوي زنانه و ته هم یاد وي اونارینه وو ته دي هم یادوي سوا دقرآن نه چې داهرڅوک یادولی شي.

(۵) **اعجاز باعتبار العلم**: هغه دا چې په قرآن کې څومره علوم دي دومره علوم په نورو کتابونو کې نشته.

(۶) **اعجاز تأثیري**: او بل اعجاز دقرآن تأثیري ده دانسانانو په کتابونو کې دومره تأثیر او جاذبیت نشته څومره چې په قرآن کې موجود ده داسې ډېرې پېښې رامنځته شوي چې یوازې دقرآن په اورېدلو سره د خلکو په ژوند کې انقلاب راغلی.

(۷) **اعجاز قانوني**: بل اعجاز دقرآن قانوني دی انساني قانون که څومره ماهرینو هم جوړ کړی وي خو اوږده موده په یو ملک کې نشي پاتې کېدلی ضرور پکې داسې خامۍ ظاهرېږي چې تغیر او تبدیل ته پکې ضرورت وي خو قرآن یو داسې قانون دی چې دسونو کلونو په تیرېدو پکې نه دتغیر او نه تبدیل ضرورت پېښ شو.

شاه ولی الله (رَحِمَهُ اللَّهُ): فرمائي چې دقرآن دعلومو رجع پینځو علومو ته کېږي.

(۱) علم العقاید (۲) علم الاحکام (۳) علم التذکیر بالاء الله (۴) علم التذکیر بایّام الله (۵) علم التذکیر بما بعد الموت.

علّامه سیوطی [1](رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائي: چې په قرأن کې اتیا (۸۰) علوم دي:

شیخ الاکبر ابن عربي[2](رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائي چې اویازره (۷۰۰۰۰) علوم پکې دي خو داخبره هرچا دخپل فهم اوعلم مطابق کړیده دقرآن علوم غیر متناهي دې ډېري اوږدې زمانې نه پرې تفسیرونه لیکل کېږي حتّی چې محمّد انورشاه کشمیري[3](رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائي چې زما تر زمانې پورې دوه لاکه (۲۰۰۰۰۰) تفسیرونه لیکل شوي دي تقریبًا اولنی تفسیر ابو عبیده معمر بن صباح (رَحِمَهُ اللَّهُ) لیکلی چې نوم ئې اعجاز القرآن دی له دې زمانې نه د تفاسیرو سلسله شروع شوه امام غزالي (رَحِمَهُ اللَّهُ) یو تفسیر په پنځه سوه (۵۰۰) جلدو کې لیکلی چې نوم ئې دی یاقوت التأویل فی اسرار التّنزیل.

---

(۱) عبد الرحمن بن کمال الدین ابي بکر بن محمد سابق الدین حضر الحضیري السیوطي المشهور بجلال الدین ولد سنة ۸۶۹ هـ وتوفی ۹۱۱هـ

(۲) محمد بن علي بن محمد بن عربي الحاتمي الطائي الاندلسي الشهیر بمحی الدین ابن عربي ولقبه شیخ الاکبر ولد سنة ۵۵۸هـ قبل عامین من وفات شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله وتوفی في دمشق شنة ۶۳۸هـ

(۳) محمد انور شاه بن معظم شاه الحسیني الحنفي الکشمیري ولد سنة ۱۲۹۲هـ وتوفی ۱۳۵۲هـ

او ابي یوسف عبد السلام القزویني خپل تفسیر حدائق ذات بهجة په درې سوه جلدونو کې لیکل شوی چې نوم ئې دی چې پنځه (۵) جلده یوازې په بسم الله لیکل شوي او شل (۲۰) جلده په الحمد لله لیکل شوي او حافظ ابن شاهین په زرو (۱۰۰۰) جلدونو تفسیر لیکل شوی او قاضي ابو بکر بن العربي خپل تفسیر «انوار الفجر» په اته زره ورقو کې لیکلی.[1]

یوه ورځ ابن عربي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) په خره باندې سپور وه چې ناڅاپه له خره نه راوغورځیده شاګردانو پورته کولو ده ورته وویل چې ماپریدئ لږ وخت پس ئې ورته وویل چې پورته مې کړئ شاګردانو ورته وویل چې اول دې ولې له پرته کولو منع کولو ده ورته وویل چې په قرآن کې دهرڅه خبره شته جزي وي او که کلي ما دابن عربي دخره نه راغورځیدل پکې کتل چې دا پکې شته که نه نو په سورت فاتحه کې مې پیدا کړل.

دغسې دفیضي په نوم یو مفسّر تیر شوی چې دقرآن ټول تفسیر ئې په حروفو مهمله ( هغه حروف چې ټکي نلري لکه الف ، حا، دال، سین، وغیره ) سره کړی چې خطبه ئې داده کَلَامُ اللهِ لَاحَدّ لِحَامِدِه وَلَاعدّ لِمكارمه واماءٌ لاساحل له.[2].

**تفسیربیضاوي**: (أَلحَمْدُ لله الّذِی نَزّل الفُرقانَ عَلی عبْده لِیکونَ ).

ترجمه: ثنا اوصفت هغه ذات لره دی چې نازل کړیدی فرقان په بنده خپل.

د «الحمد لله» تفصیل په سورت فاتحه کې راروان دی دلته ئې نه کوو (الّذی نزّل) نزّلَ له تنزیل څخه ده او تنزیل په لغت کې(تحریک الشئ من الاعلی الي الاسفل) حرکت د یو شئ له پاس نه لاندې طرف ته.

---

(۱) قیمة الزمن عند العلماء صـ ۱۵۷ لشیخ الاسلام عبد الفتاح ابوغدة رحمه الله . دغسې تفسیر «مختزن» امام ابو الحسن الاشعري رحمه الله په (٤٥٠) جلده کې لیکل و یوه ورځ صاحب ابن عباد المعتزلي په بغداد کې تیریده په یوه مکتبه کې یې دغه تفسیر ولیده د ډیر تعصب له امله یې د مکتبې مالک ته یې وویل زه به د دې مکتبې څو چنده قیمت درکړم ته مکتبه وسوزوه تر څو دغه تفسیر له منځه لاړ شي د مکتبې مالک خپله مکتبه وسوزوله نو تفسیر مختزن هم تر ننه ختم شو (القواصم والعواصم)

(۲):- علوم القرآن ص ٤٥ مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله

**تشریح**: مصنف (رَحِمَهُ اَللَّهُ) دلته دري بحثونه ذکر کوي: (۱) متحیز او اقسام يې (۲) د کا تقسیم نفسي او لفظي ته (۳) د صیغې د نزّل متعلق تحقیق.

**لومړی بحث**: په طریقې دتمهید داخبره زده کړه چې متحیز په دوه (۲) قسمه دی یو متح بالذّات دی او بل متحیز بالعرض دی متحیز بالذّات هغه ته وائې چې دا قابل د اشارې حسي و بالذّات لکه قلم،کتاب وغیره اومتحیز بالعرض هغه ته وائې چې قابل د اشارې حسې نه و بالذّات بلکې بالتّبع وي لکه اعراض (رنګونه)[۱].

متحیز بالعرض بیاپه دوه (۲) قسمه دی اول مشاهد[۲] کالسواد والبیاض لکه توروالی سپین والی دوهم غیرمشاهد لکه علم.

اوحرکت هم په دوه (۲) قسمه دی اول حرکت بالاصالة دوهم حرکت بالتّبع حرکت بالاصالة متحیز بالذّات کې وي او حرکت بالتّبع په متحیز بالعرض کې وي.

**دویم بحث**: بیا کلام (قرآن) په دوه قسمه ده اول کلام نفسي دوهم کلام لفظي په کلام نفس کې نه حرکت بالاصالة راتللی شي او نه حرکت بالتّبع راتللی شي حرکت بالذّات ځکه نشي راتلل چې هغه په متحیز بالذّات کې راځې لکه جوهر اوکلام نفسي جوهر نه دې اوحرکت بالتّبع ځک نشي راتللی چې په دې سره حرکت دواجب لازمیږي ځکه کلام نفسي صفت د واجب دی اوپه کلا لفظي کې حرکت بالتّبع راځې په تبع دحضرت جبرائیل (عَلَيْهِ اَلسَّلَامُ) اصلًا متحرک جبرائیل (عَلَيْهِ اَلسَّلَامُ) دی دده په تبع حرکت په کلام لفظي کې موجودیږي.

نومعنی دا شوه ثنا اوصفت هغه ذات لره ده چې نازل کړی ئې دی قرآن لفظي ځکه په قرآن کې هم حرکت دی له اسمان نه په واسطه د جبرائیل (عَلَيْهِ اَلسَّلَامُ) په رسول الله (صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې.

**(الفرقان)** قرآن ته ئې فرقان وویل فرقان له فرق څخه دی او فرق جدا والي ته وایي نو قرآن هم فارق دی په مابین دحق اوباطل کې.

---

(۱) :- دمتحیز مثال لکه موږ کتاب ته اشاره کوو نو دکتاب ذات ته اشاره کوو او متحیز بالعرض مثال لکه موږ دکتاب سپین رنګ ته اشاره کوو نو دا اشاره په ضمن او تبع کتاب کې کیږي.

(۲):- مشاهد هغه شئ ته وائي چې په سترګو ښکاري.

**دریم بحث**: **سوال**: ولې قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اللَّهُ) صیغه دنزل مختاره کړه په صیغې د انزل
4 باندې داسې به یې ویلي و انزل الفرقان په ځای د نزّل الفرقان.

**جواب**: تنزیل وائي تحریک الشئ تدریجًا ته او انزال وائي تحریک الشئ دفعةً واحدةً ته نو په دیکې دې خبرې ته اشاره ده چې په قرآن کې دواړه حرکتونه شته هم تنزیل او هم انزال ځکه قرآن اول نازل شوی له لوح محفوظ نه اسمان د دنیا ته په شپه د لیلة القدر دفعةً واحدةً بیا په تدریجي دول سره له اسمان د دنیا څخه په درویشت (۲۳) کالو کې په رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې نازل شو نو اکمال د نعمت ئې په نزول ثاني سره په مونږ وکړ نو له دې وجې نه یې نزّل مختاره کړه په ځای د انزل.

(عبده).

**سوال**: د رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په اوصافو کې یې ولې وصف د عبودیت غوره او ذکر کړ پکار ده چې وصف د رسالت ئې ذکر کړې وای ؟

**جواب**: د رسول الله علیه وسلم په اوصافو کې تر ټولو غوره او اولی وصف هغه وصف د عبودیت دی او له وصف د رسالت څخه ځکه غوره دی چې په وصف د عبودیت کې انصراف وي له خلق څخه حق ته او په وصف د رسالت کې انصراف وي له حق څخه خلق ته نو د عبودیت انتهاء حق ده[۱] او د رسالت انتهاء خلق ده او حق له خلق څخه غوره دی.[۲]

**تفسیر بیضاوي**: (لِيَكُونَ لِلعَالَمِينَ[۳] نَذِيرًا).

**ترجمه**: چې شي لپاره د ټول عالم نذیر او ویرونکی.

**تشریح**: به دې عبارت سره درې بحثونه ذکر کوي (۱) په ضمیر د «یکون» احتمالات (۲) په لام د «یکون» احتمالات (۳) د «نزیرًا» تحقیق.

---

(۱):- رسالت معنی دا چې دالله (حق) پیغام ته راوړي نو انتهاء ئې خلق ته شوه اودعبودیت معنی داچې دمخلوق (بندگی) پیغام الله ته وروړي نو انتهاء ئې حق ته شوه.

(۲):- وصف دعبودیة په اوصافو دبندگانو کې تر ټولو غوره صفت دی ځکه الله جلّ جلاله چې کله هم رسول الله صلّی الله علیه وسلّم عظیمو ځایونو کې ذکر کوي په وصف دعبدیت سره ئې یادوي لکه مقام د تحدي فرمائي ( وان کنتم فی ریبٍ ممّا نزّلنا علی عبدنا فأتو بسورة من مّثله ... سورة البقرة آیة ۲۳ ) همدارنګې سبحان الذی اسری بعبده لیلًا مّن المسجد الحرام .. سورة الاسراء آیة ۱،

(۳):- عالمین جمع دعالم ده ماسوا دالله نه هرڅه ته وائي مراد ترینه پیریان او انسانان دي .

**لومړی بحث**: په اسم (ضمير) د «يکون» کې درې احتماله دي.

(۱) اول دا چې اسم ديکون ضمير دعبد شي (ضمير ديکون عبد ته راجع شي)

(۲) دوهم دا چې اسم ديکون ضمير دفرقان شي (ضمير ديکون فرقان ته راجع شي).

(۳) دريم دا چې اسم ديکون ضمير دلفظ د الله جلّ جلاله شي (ضمير ديکون لفظ دالله جلّ جلاله ته راجع شي) خو دا دريم احتمال غلط دی وجه د غلطی يې داده چې صفات دالله جلّ جلاله توقيفي دي [۱] اونذير په صفاتو دالله جلّ جلاله کې نشته (شرعه پرې نه ده وارده شوې) او اولنی احتمال راجح دی او دويم احتمال صحيح دی وجه درجحان داولني احتمال دادی چې اول کې قرب او نزديکت دی ځکه وائي الحقّ للقريب ثمّ للبعيد دوهمه وجه د رجحان ئې داده چې اسناد دضمير عبد ته اسناد حقيقي دی په خلاف داحتمال ثاني چې نه قريب دی او نه هم اسناد حقيقي شته.

**دويم بحث**: په «لام» د (ليکون) کې دوه احتماله دي اول دا چې دا لام لپاره دعاقبت (انجام) شي لکه «لدوا للموت» بچې وزيږوئ لپاره د مرګ. د مرګ لپاره خو څوک بچي نه زيږوي خو عاقبت ئې مرګ دی يا لکه «وابنوا للخراب» کورونه جوړ کړئ لپاره دنړيدو ،دنړيدو لپاره خو څوک کورونه نه جوړوي خو عاقبت ئې نړيدل دي دلته هم داعاقبت لپاره د نازل دی يعنې قرآن ئې په خپل بنده نازل کړ عاقبت ئې څه دی ليکون للعالمين نذيرًا چې شي لپاره دټول عالم ويرونکی.

**دوهم احتمال**: داچې دا لام لپاره دتعليل شي.

**سوال**: په دې احتمال اعتراض واردېږي چې نزول خو فعل دالله جلّ جلاله دی او افعال دالله جلّ جلاله خو معلل بالاغراض نه وي نو څنګه به د رسول الله (صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ) نذير کيدل لپاره دعالمينو علت دنزول د قرآن.

---

(۱):- توقيفي معنی دا چې ثبوت د صفاتو د الله موقوف ده ترشرعي بوري کوم صفات چې په شريعت کې الله جل جلاله لره ثابت وي هغه به يې صفات وي او په کوموصفاتو چې شرعه نه وي وارده په هغې سره نشي موصوف کېدلی.

**جواب**: دا لام لپاره د تعليل دی خو چې افعال دالله جلّ جلاله معلل بالاعراض نه وي نو بيا د د عالمينو د مصلحت لپاره نزير دي او قائم مقام د علت دي عين علت نه دي هركله چې قائم مقام دعلت شو نو بيا ددې لپاره هم لام دتعليل استعماليږي.

**دريم بحث**:(نذيرًا) صيغه دمصدر ده په معنی دمنذِر سره او منذر صيغه د اسم فاعل دی په معنی ويرونکي ياپه خپل حقيقت ورحمل دی چې عين ويرول دائې ورته له وجې دمبالغې نه وويل لکه «زيد عدلٌ».

**تفسير بيضاوي**:( فَتحدّى بأقصر سُورة من سُورِه)

**ترجمه**: نو طلب دمقابلې او معارضې ئې وکړ په يولنډ سورت دسورتونو دقرآن څخه.

**تشريح**: دلته دوه بحثونه ذکر کولي (١) په ضمير د «تحدّی» کې (٢) په قران سره کفارو ته د تحدّی قسمونه.

**لومړی بحث**: (تحدّی) له باب دتفعيل څخه دی په معنی دطلب دمقابلې(چلنج) په ضمير دتحدّی کې دوه احتماله دي يو دا چې داضمير به راجع شي لفظ دالله جلّ جلاله ته په دې هيڅ اعتراض نه واردیږي دوهم احتمال دا چې ضمير دتحدّی راجع شي عبد ته نو په دې احتمال بيا اعتراض واردیږي.

**سوال**: دا قول چې تحدّی دی دا معطوف دی په قول د «نزّل» باندې يعنې نزّل ورته معطوف عليه ده اوضمير په نزّل کې راجع دی لفظ دالله جلّ جلاله ته (اوتحدّی) کې ضمير راجع دی عبد ته نو لازم شو مخالفت له قاعدې نه هغه داچې مرجع دضميرنو معطوفتينو واحده وي او همدارنګه لازم شوه خلوه دجملې معطوفې له ضمير دموصول نه.

**جواب**: دلته عطف په فاء سره شوی دی اوجمله معطوفه په کلمې دفاء سره دا په منزله د جملې واحدې وي . . . اوجمله واحده په افعالو باندې مشتمله وي نو جائز ده اکتفاء په ارجاع د ضمير واحد سره موصول ته.

## په قرآن سره تحدّی ( چلنج ):

**دويم بحث**: اوس په دې خبره ځان پوهول پكار دی چې په قرآن كريم كې په درې طريقو سره طلب د معارض شوی.

(۱)**لومړی**: په مثل د ټول قرآن راوړئ (فَلْيَأْتُوا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهِ[۱]) كله چې دټول قرآن د معارض څخه عاجزه شول نو الله جلّ جلاله بل چلنج وركړ.

(۲) **دوهم**: دوهم ځل طلب د معارض په مثل دلسو سورتو اوشو(قُلْ فأتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثله مُفتَرياتٍ[۲])نو د لسو سورتونو (۱۰) دمقابلې څخه هم عاجزه شول نو الله جلّ جلاله بل چلنج وركړ.

(۳) **دريم**: دريم ځل طلب د معارضې وشو په اندازه دېنو سورت (اِنْ كنتُم فِي رَيبٍ مِّمَّا نزّلنا على عبدنَا فَأتُوا بسُورةٍ منْ مّثله)[۳] مراد له سورت نه اقصر وړوكى سورت دى او د اقصريت د سورت له نكارت د لفظ د سورت نه معلوميږي.

سورت: سورت عبارت دى له هغه كلام نه چې هغه لره عنوان وي اومشتمل وي په درې آياتونو يا زياتو باندې.

اوپه سورت سره احتراز اوشو له كتب غير سماويه وو څخه ځكه سورة خاصه د كتب سماويه و دى.

**تفسير بيضاوي**: (مَصاقِع الخُطَباء منْ العَربِ العَربَاء فَلمْ يَجِد بِه قَدِيرا وَ أَفحَم منْ تَصدّى لِمُعارضَته مِن فُصحاء عَدنَان وبَلغاء قَحطَان).

**ترجمه**: د فصيحو او بليغ خطباء وو نه د اصل او خالص عربو نه طلب د معارضې اوشو ،نو الله جل جلاله په معارضه قدرت لرونكي او نه موندل، اوقرآن ساكت (چپ) كړل هغه څوک چې د معارضې لپاره راوړاندې (مخامخ) شول د فصحاء د عدنان او له بلغاء وو د قحطان نه.

---

(۱):- سورة الطور آية ۳٤ ،

(۲):- سورة هود آية ۱۳ ،

(۳):- سورة البقرة آية ۲۳ ،

**تشریح**: (مصاقع) جمع د مصقع ده اودا مصدر میمي ده مأخوذ دي صقع الدیک (اواز دچرگ) نه ای صاح په معنی داسم فاعل دی مراد ترینه مکبّر الصوت( اوچت اواز کونکی) دی (والخطباء) جمع دخطیب دی په معنی دمقرّر او اضاقت دمصاقع الخطباء ته اضافت له قبیلې د غیر معروف دی معروف ته لکه اضافت دلیث اسد ته.

(العرباء العرب) العرباء تاکید دی لپاره دعرب لکه لیل لیلًا ځکه داقاعده دی چې کله اراده دتاکید دیو لفظ وکړې نو له همدې لفظ نه به صیغه په وزن فعلاء راوړې لکه لیل لیلاء او بیض بیضاء مراد ترینه خالص او اصل عرب دي [1]

(فلم یجد) فاء د «فلم یجد» په معنی د «علی» سره دی او عدم وجدان دمعارض کنایه دی له عدم وجود دمعارض نه ځکه (لانّ عدم وجدان الله جلّ جلاله للشئ لازم لعدم الوجود الشئ).

(قدیرًا)

**سوال**: قدیر په وزن دفعیل دی صیغه دمبالغې دی یعنې القادر الکامل معنی دا چې الله جلّ جلاله له کفارو څخه قادر کامل په معارض دقرآن پیدا نه کړ اوعدم وجود قادر کامل خو مستلزم نه دی عدم وجود دنفس قادر ته یعنې نفس قادر دې په معارض باندې وي اگر که قادر کامل نه وي؟

**جواب**: فعیل وزن خو هرچیرته لپاره د مبالغې نه وي ځکه فعیل وزن کله له باب دکرُم څخه وي اوکله غیر له کرُم نه وي خو کله چې له باب دکرُم څخه وي بیا لپاره دمبالغې وي او که له بل باب څخه وي بیا لپاره دمبالغې نه وي ځکه کله چې له باب دکرُم څخه وي نو داصیغه دصفته مشبه وي اوصیغه دصفت مشبه مشتق وي له لازمي باب نه او دا دلالت په مبالغې کوي اودلته له باب د کرم څخه نه ده بلکې له ضرب څخه دی په معنی دمطلق قادر.

(افحم) افحام وائې الاسوداد (تور والي) ته وائې مراد ترینه دلته اسکات الخصم عجزًا دی ځکه دعاجز من الخصم هم مخ له وجې درسوائي نه توروي.

---

(۱):- العرب العرباء صرحاء خلص: معجم الوسیط،

(والفصحاء والبلغاء) دلته دواړه په معنی واحدې سره دي اضافت د اول عدنان ته او دوهم قحطان ته تفنّن في العبارات دي[1].

(عدنان والقحطان) دا دوه قبيلې دي اولې ته عرب مستعربه وائي او دوهمې ته عرب العاربه وائي دواړه يې ځکه ذکر کړې چې چلنج ټولو عربو لره دی.

**تفسير بيضاوي**: (حتّی حَسبُوا أَنّهم سَحر تسحيرًا)

ترجمه: تردې چې دقرآن په معارضه کې داسې چپ پاتې شول چې ګومان کيده ګويا چې په دوی باندې سحر (جادو) شوی دی.

**د سحر تعريف**:

**تشريح**: سحر په لغت کې «كُلُّ مَا لَطُفَ وَدَقَّ، وَمِنْهُ قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا [2] وَسَحَرَهُ أَيْ خَدَعَهُ، وَمِنْهُ قَوْله تَعَالَى: {قَالُوا إِنَّمَا أَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ}[3] أَيِ الْمَخْدُوعِينَ».

هرلطيف او باريک شي ته سحر وايي يعنې دچا ادراک چې انتهائي باريک وي او له دې ځخه دا قول د نبي (عَلَيْهِ السَّلَامُ) چې بعضې له بيان ځخه سحر دی او په همدا رنګه په معنی د دوکې سره راځي.

يبا مسلک داحنافو په سحر کې دادی که چېر ته په سحر کې ردّ د رکن شرعي او يا دشرط شرعي وي( يعنې دشريعت مخالف وي) نو دا سحر بيا حرام دی او که داسې نه وي نو بيا جائز

---

(۱):- قحطان بن عود اصل عرب وه دمديني منورې اودشام او د يمن وه چې کله په قوم سباء باندې داوبو بندر راخلاص شو نو خلک ئې دغو درې (۳) خايونو ته وتښتيدل اوهغه قبيله چې جرهم نوميده چې له يمن نه راغله او د اسماعيل عليه السّلام په زمانه کې ئې د زم زم خواته خيمې ووهلې د قحطان اولاد وو،

(۲):-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا أَوْ إِنَّ بَعْضَ الْبَيَانِ لَسِحْرٌ أخرجه البخاري ( الفتح ۹ / ۲۰۱- ط السلفية )

(۳):-سورة الشعراء / ۱۵۳

دی[۱] دوی هم دقرآن په معارضه کې داسې چپ اوساکت پاتې شول لکه په کوم انسان چې سحر شوی وي او هیڅ نشي کولی.

**تفسیر بیضاوي**: (ثُمّ بَيَّن لِلنّاس مَانَزَّل اليهِم حَسْبَما).

ترجمه: بیا رسول الله (صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) هغه کتاب (مسائل) په همغه اندازه خلکو ته بیان کړ چې دوی ته نازلیدل.

**تشریح**: دلته ئې دخطبې انداز بدل کړ دبیّن ضمیر نبی (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) ته راجع دی او حسبما له دوه کلمو څخه جوړ دی یو حسب په معنی دمقدار او اندازې دی او بل کلمه د (ما) ده چې موصوله ده (حسبما) ای قدر ما.

**تفسیر بیضاوي**: (عَن لهُم منْ مَصالحِهِم)

ترجمه: ظاهر یدل به آیتونه دقرآن په مقدار د مصالحو دخلکو.

**تشریح**: په مخکې عبارت کې چې حسب ده دوه تقدیره ده.

اول تقدیر دعبارت داچې حسب دبین سره ولګیږي (بین قدر ما ظهر لهم ای مقدار شئ عنّ لهم) یعني په مقدار د هغه شي څومره به چې ورته ضرورت ظاهرې ده نو هغومره به رسول الله (صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) بیانولو.

---

(۱):- ځیني علماء د سحر تعریف داسې کوي: اظهار خارق اللعادة من نفس شريرة خبيثة بما شرة الاعمال مخصوصة فيها التعلم والتلمذ. بیا فقهاء دساحر په حکم کې مختلف دي ځنې وائې چې د ساحر وژل واجب دي داهغه مهال چې سحر په داسې الفاظو وکړي چې هغه ڪفری وي دا قول دامام ابوحنیفة امام مالک او دامام احمد دی تفسیر قرطبي :۲ / ٤٨ ، او ځیني بیا ساحر ته کافر وائې خو دقتل خبره ئې نه ده کړې امام شافعي رحمه الله فرمائي که ساحر په خپله اقرار وکړ چې ما په سحر باندې کوم کس قتل کړی بیا قتل کولی شي.

دمعجزی اوکرامت له سحر سره څو فرقونه دي (۱) سحر له شریر اوخبیث نفس څخه ظاهریږي اوکرامت له نفس کریمه اوپاک نه ظاهریږي(۲) دسحر لپاره خاص ځای ، وخت او شرائط وي اوکرامت تر دغو شیانو خاص نه وي (۳) ساحر تل په خلاف دشرعي امر کوي اوصاحب دکرامت دغسې نه وي. دستورالعلماء: ۲ / ۱۲۰ ،

**دوهم تقدیر**: داچې حسب دنزول سره ولګیږي معنی به داشي چې نبی علیه الصّلاة والسّلام ورته بیان کړل هغه آیتونه چې کوم نازلیدل دخلکو دفائدې لپاره په مقدار دهغه حاجت چې کوم به ورته ظاهرېږي شو (من مصالحهم) دابیان ده دکلمې «ما» لپاره.

**تفسیر بیضاوي**: (لیتدبّروا آیاته ولیتذکّر اولوالالباب تذکیرًا)

**ترجمه**: د دې لپاره چې سوچ او فکر وکړي په آیاتونو دقرآن کې او د دې لپاره چې پند حاصل کړي صاحبان دعقل په پند حاصلولو سره.

**تفسیر بیضاوي**: (فَکشفَ قِناعَ الانْغِلاق عَن آیاتِ مُحکماتِ)

نو لرې (ظاهر) یې کړې پردې دسختی له آیاتونو ظاهرالمراد څخه.

**تشریح**: دلته دوه بحثونه دي (١) استعارې (٢) په محکمات باندې وارد سوال ته جوابونه.

**لومړی بحث**: قناع لوپټې ته وائي.

(عن آیات مُحکمات) محکم ظاهرالمراد ته وائي دلته اُوس دریم قسم دخطبې ذکر کوي اضافت دآیات محکمات ته اضافت دمشبه به ده مشبه ته اصل عبارت داسې دی.

(فکشف عن انغلاق الآیات کالقناع) یعنې ظاهر ئې کړه هغه سخت دآیاتونو پشان دپردې چې لرې ئې کړې له ناوې نه.

**استعاره**: په دې عبارت کې څو استعارې دي.

استعاره په لغت کې طلب العاریة ته وائي اوپه اصطلاح کې هغه لفظ ته وائي چې دمشابهت او ورته والي له امله له معنی موضوع له نه په بله معنی کې استعمال شي.

استعاره په څلور قسمه ده (١) مصرحه(٢) بالکنایة(٣) تخلیة(۴) مطلقة یا ترشیحیة او استعاره په اعتبار دلفظ مستعار په دوه ډوله ده (١) استعاره اصلیة (٢) استعاره تبعیة استعاره اصلیة هغه ده چې لفظ مستعار اسم جنس وي بیا برابره خبره ده چې اسم جنس حقیقتًا وي اوکه تأویلًا لکه لفظ د اسد چې استعاره شي لپاره درجل شجاع تأویلًا مثال لکه حاتم چې استعاره شي لپاره د سخي دغه ډول هر عَلَم چې مشهور وی په وصف سره هغه هم تأویلًا اسم جنس وي لکه

موسى او فرعون او استعاره تبعية هغه دى چې لفظ مستعار اسم جنس نه وي لكه حرف او فعل او مشتقات د فعل (اسم فاعل اسم مفعول)[1]

بيا په استعاره كې اختلاف دى چې دا مجاز لغوي دى او كه مجاز عقلي ؟

جمهور وائې چې استعاره مجاز لغوي دى په دې معنى چې دا استعمال دلفظ دى په غير معنى موضوع له كې له وجهې د علاقې دتشبيه نه.

او بعضې وائې چې استعاره مجاز عقلي دى په دې معنى چې په دې كې تصرف په امر عقلي سره شوى دى نه په لغوي سره.[2]

راځو دعبارت استعارو ته اول دا چې تا مشابه كړه آيات محكمات له ناوې سره دا استعاره مصرحه[3] دى او ذكر دقناع استعاره تخيلية دى[4].

همدغه راز مشابه ئې كړه آيات محكمات له اشياو عاليه و سره دا استعاره بالكناية دى[5] او ذكر د انغلاق دا استعاره ترشيحيه دى[6].

**دويم بحث**: **سوال**: محكم خو عبارت دى له معروف (ظاهر المراد) نه او معروف خو محتاج كشف ته نه وي او كشف خو عبارت دى له ازالې د ستر نه او ازاله دستر مخكې ستر غواړي او په محكم كې خو ستر وي نه.

**لومړى جواب**: دلته چې كومه خفاء منفي دى هغه داسې خفاء دى كومه چې ناشې عن دليل نه وي او داسې خفاء په محكم كې وي هغه خفاء په محكم كې نه وي كومه چې ناشې عن دليل وي.

**دوهم جواب**: مراد له كشف نه كشف په معنى دازالة الستر سره نه دى بلكې په معنى دازالة متكشفة دى يعنې اول الامر نه هغه په متكشفې طريقې سره نازول لكه: ضيق فم الركية يعنې د

---

(۱):- دستورالعلماء: ۱/ ۷۰ ،

(۲):- دستورالعلماء: ۱/ ۷٤ ،

(۳) - مصرحه هغه استعاره دى چې ذكر دمشبه ترک د مشبه به مراد هم مشبه.

(٤):- هغه دى چې دمشبه به لوازم مشبه ته ثابت شي.

(٥):- استعاره بالكناية هغه دى چې ذكر دمشبه ترک دمشبه به مراد هم مشبه به.

(٦):- استعاره ترشيحيه هغه دى چې دشبه به مناسب مشبه ته ثابت وي.

کوهي خوله يې تنګه کړه يعني له شروع نه يې تنګه کړي ده داسې نه چې مخکې فراخه وه روسته يې تنګه کړه.

## حلّ اللغات

| لغات | معنى | لغات | معنى |
|---|---|---|---|
| عنّ | ظهر | تدبّر | سوچ او فکر |
| مصالح | جمع دمصلح ده په معنى دلائق | تذكير | پند او نصيحت |
| مصاقع | عالي الصوت (اوچت اواز | انغلاق | سخت |
| تحدى | چلنج | قناع | ټيکرى (لوپټه) |



**تفسیر بیضاوي**: (هُنّ امّ الکتاب واُخرُ مُتَشابِهات هُنَّ رُموزُ الخِطَاب تأویلًا وتفسیرًا)

**ترجمه**: هغه آیاتونه اصل دکتاب و او نور متشابهات (مستتر المراد) چې هغه (متشابهات) اشارات (رازونه) دخطاب د الله جلّ جلاله دي له جهته دتأویل او تفسیر.

**تشریح**: دا معنی دمحکم او متشابه مولوي حسامي کړې ده او اُخَرُ جمع د اُخرٰی دی (رموز) جمع د رمز ده په معنی رامز، او رامز اشاري بالشفة (شونډې) ته وائې یا اشارې بالهاجب (په وروزو سره اشاره کولو) ته وائې.

خطاب وائې «توجیه الکلام نحو الحاضر» توجه دکلام دی طرف د حاضر ته یعنې متشابهات دالله دخطاب رازونه دي.(تأویل وتفسیرًا) په ترکیب کې له کشف نه تمیز واقع دي مراد دادی چې په جهت دتأویل یعنې قیاس عقلي او په جهت دتفسیر ئې کشف دمعنی مرادې کړي دی.

**تفسیر بیضاوي**: (وَ أَبْرَزَ غَوامِضَ الحَقَائق وَلَطَائِف الدَّقَائِق لِیَتجَلّٰی لهُم خَفایا المَلک والمَلَکوتِ وَخَبایَا القُدْسِ والجَبَرُوتِ لِیَتَفکَّرُوا فِیها تَفْکیرًا)

**ترجمه**: راڅرګند ئې کړل پټ حقائق او پټ باریکات د دې لپاره چې ظاهر شي خلکو ته هغه پټ اشیاء د ملکوتیت او سلطنت کامله دالله جلّ جلاله او ظاهر شي پټ صفات جمالیه او صفات جلالیه دالله جلّ جلاله د دې لپاره چې دوی فکر وکړي په دې کې په پوره فکر کولو سره.

**تشریح**: الغوامض جمع غامضة او یا جمع دغامض دی په معنی دمخفي او پټ سره فاعل اسمي جمع کیږي په فواعل او همدارنګه فاعل صفتي هم جمعه کیږي په غیر ذوی العقول کې.

(الحقائق) جمع دحقیقة دی په معنی د «ما به الشّئ هُو هُوَ» او اضافت دغوامض حقائق ته اضافت له قبیلې دصفت دی موصوف ته ای وابرزالحقائق الغامضة.

په(لَطَائِف الدَّقَائِق) کې هم اضافت دصفت دی موصوف خپل ته اي وابرز الدّقائق اللطیفة.

خفایا جمع دخفیفة دی په معنی دپټ سره او ملک نه مراد عالم الشّهود دی او ملکوت نه مراد عالم الغیب دی ځکه د فعلوت په وزن د مبالغې صیغې راځي نو د ملکوت معنی به کامل سلطنت وي خبایا جمع دخبیة دی په معنی دخفیت سره (پټ) قدس صفات جمالیه جبروت صفات جلالیو ته وایي.

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معنی | شمېره | لغات | معنی |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | رمز | اشاره | ۴ | تجلّی | ظهور معنی (کشف) |
| ۲ | غوامض | پټ | ۵ | خبايا | جمعه د خيبة (پټ) |
| ۳ | متشابهات | هغه اياتونه چې مراد يې پټ وي | | | |

**تفسير بيضاوي**: (وَمهَّد لهُمْ قَواعِدَ الاحكامِ و أَو ضَاعَهَا مِنْ نُصوصِ ألآياتِ وَ ألمَاعِهَا لِيَذْهَب عَنْهُم الرِّجْس ويُطهِّرهُم تطهيرًا)

**ترجمه**: او تياريې کړل خلکو ته قواعد او علتونه د احکامو له صريحو او اشارات د آياتونو څخه د دې لپاره چې زائله کړي الله جلّ جلاله له خلکو نه پليتي د فسق ، کفر او الحاد او پ کيزه کړې دوی لره په پاکيزه کولو سره.

**تشريح**: (مهّد) له باب د تفعيل څخه دی په معنی د اماده او تيار (قواعد) جمع د قاعدې دی او عبارت دی «عن قانون کليّ يستنبط منها احکام الجزيات».

**ترجمه**: دا يو قانون کلي دی چې راوځي له دې نه احکام د جزياتو (احکام) جمع د حکم دی دا عبارت دی له «خطاب متعلق بافعال المکلّفين» څخه او کله عبارت وي له «اثرهذا الخطاب» څخه چې وجوب او حرمت دی.

اوضاع جمع د وضع دی او له اوضاع د احکامو نه څلور احکام وضعية مراد دي اول علت الحکم لکه طواف علت لپاره دسقوط دنجاست دپيشو دی، نبي (عَلَيْهِ السَّلَامُ) فرمايي: (انّها منَ الطوّافين عليکم والطوافات[1] دوهم اسباب دي دريم شروط دي څلورم امارات دي.

---

(۱):- عن کبشة بنت کعب بن مالک وکانت تحت ابن ابی قتادة أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ، دَخَلَ فَسَكَبْتُ لَهُ وَضُوءًا، فَجَاءَتْ هِرَّةٌ فَشَرِبَتْ مِنْهُ، فَأَصْغَى لَهَا الْإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ، قَالَتْ كَبْشَةُ: فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَتَعْجَبِينَ يَا ابْنَةَ أَخِي؟ فَقُلْتُ: نَعَمْ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ وَالطَّوَّافَاتِ رواه سنن ابي داود باب السور الهرة و رواه احمد والترمذی ومالک وغيره»

دا (مِن نُصوصِ ألآياتِ...) يا حال دی له «قواعد او اوضاعها» نه او يا بيان دی د له اوضاع څخه او متعلق دی تر مهد پورې (والنصوص) جمع دنص دی عبارت دی له كلام الظاهر الدلالت على المعنى څخه. دالماع نه مراد اشارت النص [1] دلالة النص [2] او اقتضاء النص دی [3].

(ليذهب عنهم) دا علت دی لپاره د (مهّد).

**تفسير بيضاوي:** (فَمنْ كَان لهُ قَلبٌ أو الْقى السّمْعَ وَهوَ شَهِيْد)

**ترجمه:** نو چې چا لره بيدار زړه وي لپاره دمعرفت (حق) او كيږدي غوږ او دی حاضروي (خپله زيركتيا حاضره كړي).

**تشريح:** دا له دې آيت نه ( كانَ لَهُ قَلبٌ اوْ اَلقَى السّمعَ وَهُوَ شَهِيد [4] ) اقتباس دی اقتباس ديته وايي چې متكلم په خپل كلام كې د ايت يا د حديث څه حصه ذكر كړي په داسې طريقې سره چې څوک په دې پوهه نه كړي چې دا ايت يا حديث دی [5].

(القى السمع) په معنى امال السّمع يعنې طاقت د اوريدلو يې وي اوغوږونه نصيحت كونكي ته مائل كړي.

(وهو شهيد) اى حاضر فطنًا [6] ياحاضر الفطنة [7] يعنې خپله تولوه قوت مدركه متوجه كړي او دا صفت دطالب العلم دی علماؤ دطالب العلم دعلم دحصول لپاره داصفت شرط گرځولی چې طالب به له استاذ څخه سمع هم كوي او بيدار او زيرک به هم ورته ناست وي.

---

(١):- ماثبت بالنص ولكن لم يسق الكلام لاجله فلايكون ظاهرًا من كلّ وجه،

(٢):- ماثبت بعلة النص لغةً لاجتهادًا

(٣):- مالا يمكن العمل بالنص الّا بشرط تقدّمه عليه.

(٤):- سورة القاف آية ٣٧ .

(٥):--الاقْتِبَاسُ فِي اللُّغَةِ : هُوَ طَلَبُ الْقَبَسِ ، وَهُوَ الشُّعْلَةُ مِنَ النَّارِ ، وَيُسْتَعَارُ لِطلبِ العِلْمِ ، قَال الجوهرِيُ فِي الصَّحَاحِ : اقْتَبَسْتُ مِنْهُ عِلْمًا : أي اسْتَفَدْتُهُ وفِي الاصطِلاحِ : تَضْمِينُ الْمُتَكَلِّمِ كَلامَهُ - شِعْرًا كَانَ أَوْ نَثْرًا - شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ أَوِ الْحَدِيثِ ، عَلَى وَجْهٍ لا يَكُونُ فِيهِ إِشْعَارٌ بِأَنَّهُ مِنَ الْقُرْآنِ أَوِ الْحَدِيثِ (موسوعة الاصطلاحات العلوم الاسلامية للتهانوي :١١٨٧/٥ والكليات لابي البقاء الكفوي :٢٥٣/١ وفي الاتقان في علوم القرأن للسيوطي :١١١/١ والادب الشرعية لابن مفلح ج٢/٣٠٠ بحواله موسوعة الفقهية .

(٦):- تفسير نسفي

(٧):- تفسير خازن،

او له قلب نه قلب یقظان مراد دی ورنه زړه خو هر چاسره شته خو هغه په منزله د «من لا قلب له» کې دی ځکه هر زړه معرفت دحق نشي کولي.

**تفسیر بیضاوي**: (فَهُو فِى الدَّارَينِ حَمِيدٌ وسَعِيدٌ ومَن لَّم يَرفَعْ اِلَيهِ رَأسَه وأطْفَاءَ نِبرَاسَهُ يَعِيشُ ذَمِيْمًا وَسَيَصْلىٰ سَعِيرًا).

**ترجمه**: نو هغه به په دواړو جهانو نو کې لائق دصفت اونیک بختی وي او څوک چې دحق طرف ته خپل سر پورته نه کړي او مړ کړي چراغ خپل ژوند به تیروي هغه رټلي شوی او زردی چې ورداخل به شي اور سوزونکي ته..

**تشریح**: دلته درې بحثونه دي (۱) دفعه د یو اعتراض دی (۲) د مکلفینو درې اوصاف ذکر کوي (۳) په ,, یصلی کې دوه نسخې بیانوي.

**لومړی بحث**: (فهو فی الدّارین) سوال دلته مطابقت په مابین د راجع اومرجع کې نشته ځکه ضمیر د (هو) راجع دی مطیع کامل او نفس مطیع ته او دا دوه دي اوضمیر ورته دمفرد راجع شوی.

**جواب**: دا دواړه مذکور دي په کلیمې د (او) سره اوهغه امران چې ذکر شوي وي په کلمې د (او) هغې ته د مفرد ضمیر هم راجع کول جائز دي.

(نبراسه) نه مراد دلته قابلیت د قبولیت داسلام دی کوم چې پیدایشي و د هغه ضایعه کول مراد دي ځکه الله جلّ جلاله فرمائي (فَاَقِمْ وَجهک للدّین حنیفًا فطرة الله الّتی فطر النّاس علیها [1]).

**دویم بحث**: هر کله چې مصنف له اوصافو د الله تعالی نه فارغ شو اوس د بندګانو صفات ذکر کوي د الله تعالی په صفاتو کې یو صفت د منزِل (په کسرې د زاء) هم و ؛نو الله تعالیٰ منزل شو، اوس د منزَل علیهم یعنې بندګانو اوصاف ذکر کوي نو منزّل دمکلفینو په اعتبار د اوصافو په درې قسمه دی لکه نبی (عَلَیهِ السَّلَامُ) فرمائي: او همدارنګه مخکې آیات کې تیر شو

(۱):- سورة الرّوم: آیة (۳).

(کلّ مولودٍ یولدُ علی الفطرة [1]) هر ماشوم په اسلامي فطرت سره پیدا کیږي بیا روسته له بلوغ نه چې کله ورته دعوت رسول ورسیږي هغه قبول کړي او په اسلام کې داخل شي او یا دغه ماشوم د خپل فطرت نور مړ کړي او د رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) له دعوت څخه اعراض وکړي.

**لومړی**: ضایعه کی دغه فطرت نو انکار وکړي له دعوت درسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)او له احکامو څخه.

**دوهم**: اوحفاظت وکړي ددغه فطرت او قبول کړي دعوت درسول الله اواحکام نو مصنّف تعبیر له اول قسم نه په دې عبارت سره کړی (له یرفع الیه رأسه) ځکه داپه معنی داعراض سره ده اوپه دې عبارت سره چې (واطفاء نبراسه).

بیا دوهم قسم لره دوه صورتونه دي (۱) یابه تابع درسول وي کاملًا اوپاک به کړي زړه خپل تر دې چې ادراک دحقائقو او دقائقو دقرآن وکړی (۲) یابه زړه خپل کامل پاک نه کړی تردې چې ادراک دحقائقو اودقائقو کاملًا دقرآن ونه کړي خو سره له دې چې بیا هم کوشش کوي په فهم داحکامو وکړي نو له اول تعبیر څخه یې په دې قول باندې وکړ(یعیش ذمیمًا وسیصلّی سعیرًا) اوله دوهم نه یې تعبیر وکړ په (من کان له قلب) اوله دریم ئې تعبیر په دې قول وکړ(او القی السّمع وَهُو شهید) بیا ئې په حق دفریقینو کې وویل (فهو فی الدّارین حمید وسعید) نو خلاصه دا شوه چې مولود علی فطرة په دوه قسمه دی اول مطیع بیا مطیع په دوه قسمه دی یو مطیع کامل (من کان له قلب) بل نفس مطیع (او القی السّمع وهو شهید) د دې دواړو په باره کې فرمائې (هما فی الدّارین حمید سعید) او دوهم معرض (اعراض کونکی) دی (لم یرفع رأسه واطفاء نبراسه) ددې باره کې فرمائې ( یعیش ذمیما وسیصلی سعیرًا) او یو قول داهم دی چې فطرت نه مراد

(۱):- حدّثنا آدم . . . عن ابی هُریرة رضی الله عنه قال النّبی صلّ الله علیه وسلّم کلّ مولودٍ یولد علی الفطرة فابواه یهودانه وینصرانه او یجسمانه کمثل البهیمة تنتج البهیمة هل تری فیها جدعاء. صحیح البخاری: ۱ / ۳۱۵ .کتاب الجنائز رقم الحدیث ۱۳۸۵ .وصحیح مسلم کتاب القدر رقم الحدیث ۲۶۵۸ .

هغه وعده دعالم ارواح دی چې ټول انسانان ئې دسرو میږو په شکل کې مجسم کړي و: الله جل جلاله ورته وویل «اَلَسْتُ بربّکم» نو ټولو ورته وویل (بلی) ونې نه [1].

**دریم بحث:** (یصل) کې دوه نسخې دي اول یَصل په کسرې لام سره په دې هیڅ اشکال نشته ځکه داعطف دی په یعش اودواړه جزاګانې دی د «مَنْ» شرطیه لپاره او دواړه مجزوم دي.

**دوهم نسخه:** سیصلی سعیرًا په رفعې لام سره نو په دې اعتراض واریدیږي.

**سوال:** یعش فعل معطوف علیه مجزوم دی او سیصلی معطوف مرفوع دی او معطوف خو به حکم د معطوف علیه کې وي.

**جواب:** په نسخې درفعې کې داعطف نه دی په یعش باندې بلکه داجمله مستأنفه ده مصنف دوعید لپاره استعمال کړې دی.

او «سین» په سیصلی کي لپاره د استقبال نه دی بلکې لپاره دقطعیت دوقوع دی په استقبال کې

**سوال:** ولې دي سین په جزءثاني سیصلی داخل کړاوحال دادی چې په جزء اوّله (یعش) کې نشته

**جواب:** ځکه چې مذهب په دنیا کې یقیني نه دی ځکه معرض (اعراض کونکی له اوامر دالله او رسول الله (ﷺ) په دنیا کې خاوند دجاه او مال وی اودخول په نار کې یقیني دی نو ځکه ئې سین په یصلی داخل کړ او یعش یې داخل نه کړ.

**تفسیر بیضاوي:** (فَیَاواجِبُ الوُجُودِ ویَافَائِضَ الجُودِ وَ غَایَةَ لِکُلِّ مَقصودِ)

**ترجمه:** اې هغه ذاته چې ستا وجود ضروري دی او اې هغه ذاته چې خپله مهرباني ،سخا او کرم نازلوونکې ئې او اې هغه ذاته چې ته نهایت دهر مقصود ئې.

**تشریح:** دا التفات دی ځکه چې مصنف (رَحِمَهُ اللهُ) وویلې نزّل نو تعین ددې خبرې اوشو چې الله جلّ جلاله فیاض دی او هر کله چې تعین ددې اوشو چې الله تعالی مبدءالفیاض دی نو خطاب اوکړی شو په خطاب دالتفات.

(الواجب الوجود) عبارت دی له «الّذی لایقبل العدم لذاته».

---

(۱):- قال الله تعالی: واذ أخذ ربّک من بنی آدم من ظُهُورهم ذرّیتهم واشهدهم علی انفسهم الست بربّکم قالوا بلی. سورة الاعراف آیة ۱۷۲.

(فائض) له فاض یفیض څخه اسم فاعل دی او فیض وائې د اوبو دومره ډیرو اړولو ته چې دلوښي په اطرافو واوړي اوپه اصطلاح کې عبارت دی «المفید للشئ بلاعوض» (والجود) عبارت دی «عن افادة الشئ النّافع بلاعوض».

**تفسیر بیضاوي:** (وَصلِّ عَلَیْه صلوةً تُوازِی غَناءَهُ وتُجازِی عَناءَهُ وَعَلی مَن أعَانَه وَقَدر تِبیَانِه تقریرًا)

**ترجمه:** نزول د خیر کثیر اوکړه په رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ) باندې هسې خیر کثیر چې د رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ) لائق اومساوي د منفعت اوګرځي او درسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ) د مشقت عوض وګرځي اوپه هغه چا باندې(خیر کثیر نازل کړه) چې د رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ) مدد او مرسته ئې کړې وي اوچا چې ثابت کړې وي بیانات دنبی (عَلَیهِ السَّلَامُ) په ثابتولو سره.

**تشریح:** هغه زحمتونه او مشقتونه چې رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ)ګاللي لکه هیواد نه هجرت جهادونه شهیدان زخمیان وغیره. څومره تکالیف چې نورو تمامو انبیاو تېر کړي له هغې زیات تکلیفو یوازې رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ) تېر کړي دي .

(اعانه) نه مراد صحابه کرام(مهاجرین او انصار) اوتابعین دي او اعانت اعانت قولًا او فعلًا دواړه مراد دي.

(تبیان) مراد بیان داحکامو دی.

## حلّ اللغات

| شمېره | لغات | معنی | شمېره | لغات | معنی |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | غایة | انتهاء | ۳ | غناء | نفع |
| ۲ | توازی | مساوات(برابر) | ۴ | عناء | مشقت |

**تفسیر بیضاوي**: (وَافْضِ عَلَينَا مِن بَركاتِهِمْ وَاسْلُك بِنا مَسَالِك كَراماتِهِم وَسَلِّم عَلَيهِمْ وَعلَينا تَسْلِيمًا كثيرًا)

**ترجمه**: او راتوی کړې پرموږ برکتونه د دغې خلکو اوموږ روان کړې په لارو دکراماتو ددغې مخکینو خلکو سلامتیا نازله کړې په مونږ اوپه دوی سلامتیا ډیره.

**تشریح**: دلته مصنفین چې په خپلو خطبو ګې درود شریف ذکر کوي د هغې متعلق بحث کوي. مسالک جمع د مسلک دی لارې ته وائي. مصنفین چې د خپلو کتابونو په ابتداء کې صلوة او سلام ذکر کوي د دوه دلیلونو له وجه اول دلیل نقلي دوهم دلیل عقلي.

## (په صلوة (درود) دلیل نقلي)

الله جلّ جلاله په قرآن کې فرمائي: (وَرَفَعنا لک ذِکرَک [1])

**سوال**: د «رفع ذکر» نه مراد څه شئ دی ؟

**جواب**: داسلام راوړلو په وخت کې شهادتینو کې درسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ذکر دی چې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په رسالت دشهادت ورکولو نه بغیر څوک نشي مسلمانیدی دغسې پنځه وخته اذانونو کې .اقامت کې او د ماشومانو په غوږونو کې په اذان کولو کې دلمانځه په تشهد کې دا ټول درفع الذکر مثالونه دي اوداسې نورو ځایونو کې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ذکر راغلی دی نړیوالو چې کوم تحقیق کړی هغوی دا خبره معلومه کړي چې په دنیا کې په شپه او ورځ کې داسې سحنه نه تیریږي چې په هغې کې د محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نوم نه یادیږي هغه په دې طریقې سره چې لومړی په کومو هیوادونو سحار راوخیژ نو هلته د سحار اذان شروع شي نو دغسې سحار په قرار قرار په نورو ښارونو او هیوادونو را خیژي او هلته اذانونه کیږي تر بل سحار پورې یعنې په دنیا کې په شپه او ورځ کې داسې سحنه نه تیریږي چې اذان پکې نه کیږي او په هر اذان کې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نو یادیږي .

---

(۱):- سورة الانشراح.

خو من جمله د رفع الذکر نه مراد د حمد نه روسته تصلیه دی [1] نو مصنّف هم په «ورفعنا لک ذکرک» باندې د عمل کولو لپاره د صلوة ذکر وکړو.

## (په صلوة (درود) دلیل عقلي)

داچې موږ د اسلام او هدایت له ستر نعمت نه برخمن یو او د شریعت کوم علم او عمل مو په نصیب دي داموږ ته د محمّد (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په واسطه حاصل شوی دی او الله جلّ جلاله زموږ د هر څه مالک حقیقي دی چې کله الله جلّ جلاله خپلو بندګانو ته اراده د تعلیم وکړه نو د الله جلّ جلاله او د بندګانو په منځ کې هیڅ مناسبت نه وه؛ ځکه الله تعالی په کمال تقدّس کې وه او بنده ګان په کمال کدورت کې وه د غسې الله جلّ جلاله نور دی او بندګان عبادي «مادي» دي نو د تقدس او نور د کدورت او مادي په منځ کې کمال انقطاع ده نو د دوی په منځ کې یو داسې امر ته ضرورت وو چې من وجه ئې مناسبت له الله جلّ جلاله سره وي او من وجه له عباد سره نو الله جلّ جلاله انبیاء او رسولان علیهم السلّام پیدا کړل چې دوی لره دوه (۲) جهته دي یو جهت د نورانیت دی او بل جهت د بشریت (مادي) دی په جهت د نور ئې له الله جلّ جلاله سره مناسبت دی او په جهت د مادې کې یې له عبادو سره مناسبت دی.

نو د نور د جهت په وجه ئې کسب د علومو له الله جلّ جلاله نه کولو او د جهت مادې په وجه ئې خپل امت ته تعلیم ورکولو نو هر مصنّف چې تصنیف کوي د علم په واسطه ئې کوي او د علم تر ټولو ستره واسطه نبي علیه السلام دی نو رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) یو عظیم محسن دی نو په موږ د دې احساناتو شکریه اداکول

---

(۱):- نومیالی مفسر او محدّث امام بغوي رحمه الله په خپل تفسیر کې د دې آیت لاندې لیکي چې کله د آیت نازل شو نو رسول الله صلّی الله علیه وسلّم له جبرائل علیه الصّلوة والسّلام نه پوښتنه وکړه چې له ورفعنا لک ذکرک نه څه مراد دي هغه ورته وویل چې د عرش والا وائي اذ ذکرت ذکر معي چېر ته زما ذکر کیږي هلته به ستا ذکر کیږي (تفسیر بغوي) نو مصنّف هم ځکه له حمد نه روسته صلوة په رسول الله صلّی الله علیه وسلّم باندې وړایه.

هم واجب او ضروري دي نو مونږ ددې شکر ئې د اداکولو لپاره په محمّد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې درود وويلې[1].

## په کلمه د «بَعَدُ» کې تحقیق

**تفسیر بیضاوي**: (وبعد).

**تشریح**: دلته درې بحثونه په (بعد) کې کوي (۱) د بعد اعراب او بناء (۲) د بعد ترکیبي حیثیت (۳) په بعد لومړی قول چاکړی.

**لومړی بحث**: بعدُ له هغو ظروفو څخه دی کومو ته چې غایات وایی غایات جمعه د غایت دی په معنی د «انتهاءالشیء»

د اعراب په اعتبار سره «بعد» درې حالته لري : د بعد مضاف الیه به یا مذکر وي او یا محذوف، که محذوف وي دا به بیا خالي نه وي یابه نسیاً منسیاً وي او یا به محذوف منوي وي، په اولنیو دارو حالاتو کې معرب ذی او په دریم صورت کې مبني دی.

مصنفین د خطبو په اخر کې «بعد» سره له اما شرطیه ذکر کوي او په جواب کې یې «فاء»جزائیه را وړي د دې مطلب دا وي چې یوه خبره ختمه شوه او بله شروع کیږي خو دلته له «بعد» سره امّا شرطیه نشته سره له دینه چې په جواب کې یې «فاء»جزائیه راوړې دی ؟

علماء د دې لپاره دوه وجې بیانوي

(۱) توهم د امّا : د توهم د امّا له وجې یعنې مصنف دا وهم وکړ چې په اکثره خطبو کې له بعد سره امّا ذکر کیږي نو دلته به هم ذکر وي نو په جواب کې یې «فاء» جزائیه راوړه.

---

(۱):- دغه مسئله چي رسول الله صلّ الله علیه وسلّم نور دی که بشر ددیوبندي اوبریلوي علماء تر منځ یو مشهور اختلافي مسئله ده هر جانب خپل دلائل وائي خو دومره ده چي له نورانیت څخه ئي یو جانب هم انکار نه کوي دیوبندي علماء ئي په نورانیت قول کوي په اعتبار دهدایت او بریلوي علماء ئي په نورانیت قول کوي په اعتبار د ذات سره چي ذات رسول الله صلّ الله علیه وسلّم نور وو خو په هیئت دبشر کي.

(۲)تقدير د امّا: يعني لفظ د اما په كلام كې مقدر دى قرينه په حذف روسته ذكر د «فاء» جزائيه دى. او قاعده دى «المقدّر كالملفوظ» نو چې كله امّا ملفوظ وي فاء يې په جواب كې راوړل كيږي نو د مقدّرې په جواب كې يې هم راوړه.

خو دا دواړه وجې علماو كمزورې كڼلي لومړى دا چې د توهم د امّا قاعده يو نحوي عالم هم نه دى بيان كې دويم د امّا مقدّرې جه ځكه ناسمه ده چې امّا هغه ځاى مقدره وي چې فاء څخه ورسته د امر يا نهي صيغه وي.

د «فاء» د راوړلو لپاره بهترينه وجه دادى چې شارح د كافيه علامه رضي الدين وايي دلته ظرف(بعد)په خپله قائم مقام د شرط دى او د شرط په جواب كې فاء راوړلى شي لكه قرأن كې الله جل جلاله فرمايي:(اِذ لَم يَهتَدُوا بِهِ فَسَيَقُولُون هذا اِفک قَديمٌ) دلته په فسَيَقُولُون فاء جزائيه دى او مخكې شرط نشته بلكې دلته د اِن حرف شرط قايم مقام «اذ» ظرف دى نو دغسې بعد هم د اما شرطيه قائم مقام دى.[1]

## په «امّا بعد» كې تركيبونه

دويم بحث: په امّا بعد باندې د وخت ستر محدث مولانا موسى خان بازي الغزنوي (رَحِمَهُ اللَّهُ) د «النجم السعد في مباحث امابعد» په نوم يو نادر او ناياب كتاب ليكلى نو موړي په خپل كتاب كې د موضوع متعلق بهترين بحثونه كړي او په امّا بعد كې يې (۱۳۳۹۷۴۰) د اعراب وجوهات او تركيبونه بيان كړي دي د زياتو معلومات لپاره هلته مراجعه وكړئ!

## د امّا بعد كلمه لومړى چا استعمال كړې دى

**دريم بحث:** په امّا بعد باندې لومړى چا تلفظ كړى په دې اړه هم علماء بيلا بيل نظرونه لري مولانا موسى خان (رَحِمَهُ اللَّهُ) زيات اقوال رانقل كړي دي.

(۱) امّا بعد كلمه لومړى د نبي عليه السلام په نيكونو كې يو كس دى د «كعب بن لوئ» په نوم هغه استعمال كړې دى.

---

(۱) رضي شرح الكافية :لعلامه رضي الدين استر ابادي

(۲).. سحبان بن وايل استعمال کړې دی خو دا قول ځکه ضعيف دی چې سحبان بن وايل په تابعينو کې دی له ده نه مخکې رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) استعمال کړی دی.

(۳).. علامه زمحشري په خپل تفسير کشاف کې د دې ايت (وَاٰتينه الحِكمَةَ وَفَصلَ الخِطَابِ)[1] لاندې ليکي چې له «فصل الخطاب» نه مراد امّا بعد دی يعنې داؤد عليه السلام به چې کله خطبه ختمه کړه بيا به يې امابعد ويلې خلاصه دا چې امّا بعد تر ټولو مخکې حضرت داؤد عليه السلام استعمال کړی[2]

## دعلم تفسير عظمت

**تفسير بيضاوي**: (فَإِنَّ أَعْظَمَ العُلُومِ مِقدارًا وَارْفَعَهَا شَرَفا وَمَنارًا)

**ترجمه**: په تحقيق سره لوي دی (علم التفسير) له علومو نه په اعتبار د قدر او منزلت او اچت دی له علومو ښخه په اعتبار د شرافت او ظهور.

**تشريح**: اعظم العلوم مبتداء او علم تفسير ئې خبر دی دا عبارت جواب د يو سوال مقدره دی.

**سوال**: مصنّف لره څه باعث وو چې په علم تفسير کې ئې تصنيف وکړ ولې يې په نورو علومو کې تصنيف نه کولو لکه علم حديث علم فقه او اصول فقه وغيره؟

**جواب**: ځکه ئې تصنيف په علم تفسير کې وکړ فانّ اعظم العلوم مقدارًا.

(منار) صيغه دظرف ده موضع النّار ته وائې او لازمي معنی ئې تشهير دی هغه داسې چې پخوا ابادي کمه وه څوک به چې په دښتو کې اوسيده نو څه لرکي به ئې راټول کړل يا به ئې يو لوی (اوږد) لرګی ته اور واچولو هغه به ټوله شپه بليده ددې لپاره چې هسې نه دچا نه لار ورکه وي او هلاک شي نو مسافرو به په دې سره لار معلوموله نو موضع النّار ئې حقيقي معنی ده.

**تفسير بيضاوي**: (عِلمُ التَّفسِيرِ الَّذى هُو رَئِيسُ العُلومِ الدِّينِيَّةِ و رَأْسُها وَمَبْنَى قَواعِد الشَّرعِ وَأساسُها).

---

(۱) سورة ص اية ۲۰.

(۲) تفسير كشاف لعلامة جار الله الزمخشري بحواله النجم السعد في مباحث اما بعد

**ترجمه**: هغه علم تفسیر چې رئیس او اصل دټولو علومو دینیه و دی او ځای دبناء دقواعدو دشرعیه و دی او بنیاد دقواعدو دشرعیه دی.

**تشریح**: دلته دوه بحثه کوي (۱) علم التفسیر رئیس العلوم دی او وجوهات یې (۲) د مفسر لپاره شرائط.

**لومړی بحث**: رئیس د رأس نه دی او رأس په معنی داصل سره دی اعظم العلوم اسم د انّ دی او هو رئیس العلوم خبر د انّ دی[1]. قواعد جمع دقاعدې دی او څومره قواعد چې دي داټول له قرآن څخه راوتلي دي.

## (علم تفسير ولې رئيس العلوم دی)

علم تفسیر ته ئې رئیس دعلومو وویل ځکه شرافت دعلومو په څلورو وجهو سره دی.

(۱)لومړی: شرافت دعلم په اعتبار موضوع سره وي او موضوع دعلم تفسیر اشرفه ده چې کلام الله دی نو ځکه رئیس العلوم دی.

(۲)دوهم: شرافت دعلم په اعتبار دغایې سره وي اوغایه دعلم تفسیر هغه سعادت الدّارین دی.

(۳) دریم: شرافت د علم په اعتبار دمعلوم ددې علم سره وي اومعلوم دعلم تفسیر مراد دباري تعالی دی.

(۴) څلورم: شرافت دعلم په اعتبار داحتیاج سره وي اوعلم تفسیر ته شدةالاحتیاج دی ځکه دا مدار داحکامو دینیه و دی.

**تفسیر بیضاوي**: (لَايَليقُ لِتعَاطِيهِ والتَّصدِّي لِلتَّكلُمِ فيهِ ألّا مَن بَرُعَ فى الْعلُوم الدِّينيَّةِ كُلِّها أُصولِها وَفُروعِهَا وفاقَ فِى الصَّناعَاتِ العَربِيَّة، وَالفُنُونِ ألاَدبِيَّةِ، بِأنْواعِها).

**ترجمه**: ندی لائق ددغې علم اخیستل اوځان په دغه علم کې دتکلّم دپاره پیش کول مګر دهغه چا لپاره چې په ټولو علومو دینیه وکې فوقیت او مهارت لري په وصولو اوفروعو دعلومو دینیه کې اوپه صناعات دعربیة اوپه فنون د ادبیت کې اوچت والي لري سره له ټولو انواعو.

---

[1]:- کلمه د انّ حرف ده له حروفو مشبّه بالفعل څخه اسم منصوب خبر مرفوع غواړي.

**تشريح**: اصول نه مراد كلام الله جلّ جلاله سنّت الرّسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او اصول فقه ده او له فروعو نه مراد علم فقه او اخلاق دي.

## صناعات او علوم عربية

**دريم بحث**: داعلم به خالي نه وي يابه تعلق لري تر كيفيت العمل پورې او يا به يې نه لري كه تعلق تر كيفيت العمل پورې نه لاره داعلم الصّرف شو او كه متعلق وي تر كيفيت العمل پوري دا به بيا خالي نه وي يابه موقوف وي تر كيفيت العمل پوري او يا به نه وي بلكې حا صليږي به له محض نظر او استدلال څخه اول (موقوف تركيفيت پوري) باندې اطلاق دصنعت محضه كيږي او په دوهم باندې اطلاق دعلم او صنعت كيږي او مراد له صناعات عربيه و نه هغه علوم دي چې موقوف تر كيفيت العمل پورې نه وي لكه منطق او فلسفه وغيره. او مراد له فنون ادبيه و نه فنون عربيه دي.

(والعلوم العربية) علوم عربية دولس دي اته علوم اصليه دي (۱) لغة (۲) صرف (۳) اشتقاق(۴) نحو(۵) معاني (۶) بيان(۷) عروض(۸) قوافي او څلور علوم فرعيه دي (۱) خط (۲) شعر(۳) انشاء(۴) محاضرات.

مراد له انواع نه انواع معتبره دي ځكه بعض انواع دعلم ادب لكه علم عروض او قافيه (شعر) نه په علم تفسير كې بحث نه كيږي له دينه داخبره معلومه شوه چې هرچا ته دتفسير كولو اجازت نشته ترڅو چې په دغو علومو كې ښه ملكه او اتقان ونلري ورنه ځان به هم گمراه كړي او نور به هم گمراه كړي لكه نن صبا په بعضې ځايونو كې چې دوه يا درې كاله په روژه كې دتفسير دوره وكړي نور به په يو حرف هم نه وي ككړ ځان ته به شيخ القرآن وائي دا خو لا څه چې اوس دښځو دتفسير درسونه هم شروع دي ښځې هم مفسرې شوې الله به له دغو علماء و نه پوښتنه وكړي چې هرڅوک دقرآن په درس وركولو تيزوي[1].

---

(۱):- علماء داصول القرآن دتفسير لپاره څوارلس (۱٤) علوم ضروري گڼلي (۱) علم حديث (۲) علم اصول فقه (۳) علم الفقه(٤) علم كلام (٥) علم صرف (٦) علم النحو(۷) علم المعانيْ (۸) علم البيان (۹) علم البديع (۱۰) علم الفرائض (۱۱) علم التاريخ (۱۲) علم اللّغة (۱۳) علم الادب (۱٤) علم المنطق. ئر دې چې داصول التفسير علماء وائي دقرآن كريم مترجمين اومفسرين بايد داسې و نه وائي چې دقرآن كريم ژباړه ياترجمه كوم ځكه دقرآن دالفاظو ژباړه دعربي ژبې دپراخوالي او بلاغت سر بيره داعجازه له امله ناشوني ده علماء چې دقرآن ترجمې كړې دا دقرآنْ دالفاظو ترجمه نه بلكې دمعانيو ترجمه ده ځكه دالله جلّ جلاله دكلام مستقيمه ترجمه دمخلوق لپاره ناشوني ده (اسان تفسير)

# د مفسر لپاره شرائط

مولانا زکریا (رَحِمَهُ اللّٰهُ) وايي چې علماو د مفسر لپاره پنځلس علوم شرط ګرځولي دي (۱) علم اللغة : امام مجاهد (رَحِمَهُ اللّٰهُ) فرمايي چې څوک د قيامت په ورځ ايمان لري هغه ته جائز نه دي چې د علم لغت له مهارت پرته د قرآن تفسير وکړي . (۲) علم الصرف : ځکه ابن فارس (رَحِمَهُ اللّٰهُ) وايي چې له چانه چې علم العصرف پاتې شو له ده څخه ډېر څه پاتې شول او علامه زمحشري رجمه الله په «اعجوبات» نومي تفسير کې فرمايي چې يو سړي د دې ايت (يَوْمَ نَدْعُوْا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ) تفسير داسې وکړ: په ورځ چې موږ را اوبلو هر څوک په خپلو ميندو سره.

امام يې جمع د أُمْ وګرځولو نو که چېرته له علم الصرف څخه خبر وای امام به يې جمع د ام نه وه ګرځولې (۳) علم النحو (۴) علم اشتقاق (۵) علم المعاني (۶) علم بيان (۷) علم بديع (۸) علم القرآت (۹) علم العقائد (۱۰) علم اصول فقه (۱۱) اسباب نزول (۱۲) ناسخ او منسوخ (۱۳) علم الفقه (۱۴) علم الحديث (۱۵) علم الوهبي (۱)

**تفسير بيضاوي:** (وَلَطَالَ مَا اَحدثَ نَفْسى بِاَنَّ اُصنِّف فى هَذالْفنِّ كتابًا).

**ترجمه:** ډير ځله ماته نفس وسوسه کوله چې په دې فن دتفسير کې يو کتاب وليکم.

**تشريح:** په (لطال ما) کې لام موطئة للقسم دی او «ما» مصدريه دی ځکه په کثرو نسخو کې ميم جلا ليکل کيږي . او تحديث النّفس وائې نفس سره دخبرې کول.

## (داسې کتاب چې په درې صفاتو مشتمل وي)

**لومړی صفت:**

**تفسير بيضاوي:** (يَحْتوِى على صَفْوَةِ مابَلغنِي مِنْ عُظَماءِ الصُّحابةِ وَعلماءِ التَّابعيْنَ وَمِن دُونِهم مِن السَّلف الصَّالِحِينَ ).

**ترجمه:** چې هغه مشتمل وي په غوره کړی شو او خلاصه کړی شو تفاسيرو کوم چې ما ته دلويو صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين ،علماء و او تابعينو نه رارسيدالي وي.

---

(۱) فضائل اعمال صـ ۳۱۱،۳۱۰،۳۰۹

**دوهم صفت:**

**تفسير بيضاوي:** ( وَيَنْطوِى عَلى نُكتٍ بارِعةٍ).

**ترجمه:** چې مشتمل وي په اوچتو نکتو باندې.

**تشريح:** نکت جمع د «نکتة» دی نکته په لرګي يا په نوک باندې ځمکه ګرولو ته وائې مجتهدينو به چې کله په يوه مسئله کې سوچ او فکر کولو نو ځمکه به يې په نوک يا لرګي ګروله او په ديکې خاص اثروي.

**دريم صفت:**

**تفسير بيضاوي:** (وَلَطائِفِ رائِقةٍ اِستنبَطْتَها اَنا وَمن قبْلِي مِن أَفَاضلِ المُتأخِّرِيْنَ وَاماثِل المُحقِّقِينَ) .

**ترجمه:** او مشتمل وي په صفا، خالصو او عجيبه باريکاتو چې ددې باريکو مسائلو استنباط ما کړی دی او که له مانه مخکې متأخرينو علماء و او بهترين محققين و کړی دی:

## دقرأت اته امامان

**تفسير بيضاوي:** (وَيعْرب عَن وُجوهِ القِراءَاتِ المَشْهورةِ المَعزيَّة الى الائِمَّة الثَّمانِيةِ المَشهُورينَ و الشّواذ المَروِيَّة عن القُراءِ المُعتبَرِينَ).

**ترجمه:** او دا کتاب اظهار دقرائت د مشهورو اقسامو کوي کوم منسوب دي هغه اته (۸) معتبر او مشهورو امامانو ته او دا کتار مشتمل دی په قرائتو شاذه وو باندې چې د معتبره قاريانو نه ئې روايت کړی شوی وي.

**تشريح:** دقرأت اته مشهور امامان دادي (۱) نافع (۲) ابن کثير (۳) ابو عمرو (۴) ابن عامر (۵) عاصم (۶) حمزه (۷) کسائي (۸) يعقوب خضرمي).[1]

---

(۱):- دغو اته (۸) قاريانو دا قرائت له هغو اووه (۷) قاريانو څخه بالذّات او يا بالواسطه زده کړی کوم چې د رسول الله صلّی الله عليه وسلّم په زمانه کې په قرائت سره مشهور و لکه (۱) عثمان رضی الله تعالی عنه (۲) علي رضی الله تعالی عنه (۳) ابی بن کعب رضی الله عنه (٤) زيد بن ثابت رضی الله عنه (٥) عبدالله بن مسعود رضی الله عنه (٦) ابو درداء رضی الله عنه (٧) ابوموسی اشعری رضی الله عنه (مناهل العرفان ج ۱ ص ٤٠٧ )

اوله اور (۷) قاريانو څخه څکه روايت شوی چې قرآن دعربو د اووه (۷) قبائلو په ژبه نازل شوی چې ديته سبعة احرف وائې هغه اوو قبيلې دادې (۱) قريش (۲) هذيل(۳) تميم (٤) ازو (٥) ربيعه (٦) هوازن(۷) سعد بن بکر: (اتقان ج۱ ص ٤٧ .)

**تفسیر بیضاوي**: (اِلَّا أَنَّ قُصورَ بِضاعتِي يُثَبِّطُنِي عن الاِقْدَامِ وَيَمنَعُنِي عن الانْتصَاب فِي هذا المَقامِ حَتّى سَنحَ لِي بَعد اِلاستِخارةِ مَاصَمَّمَ بِهِ عَزمِي علىٰ الشُّروعِ فِيما أردْتُه والاِتيَانُ بمَا قَصَدتُه)

**ترجمه**: لکن د علمي پانګي کمښت زه منع کولم په مقام دتفسیر کې له دریدو او وړاندې کیدو څخه تردې چې روسته له استخارې راته ظاهره شوه چې مضبوط شو قصد او اراده زما په شروع دهغه کار کې او راتلل په هغه شي چې ما ئې قصد کړی وو.

**تشریح**: کلمه د(ما) فاعل دی لپاره د مخکې «سنحّ» فعل دا په ما قبل لفظ د «شروع» باندې عطف دی، اصل عبارت داسې وو(صمم به عزمی علی شروع فیما ارادته وعلی الاتیان بما قصدته.

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معنی | لغات | معنی |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | صفوة | خلاصه | یعرب | ظاهر شو (یظهر) |
| ۲ | بارعة | اوچت (فائقه) | معزیة | منسوبه |
| ۳ | رائقة | خالص (عجیبه) | یثبطنی | منع کولم |
| ۴ | امائل | افاضل او اکابر | سنح | ظهر |

**تفسیر بیضاوي**: (نَاوِيًا أنْ اُسمِّيهُ بَعدَ أنْ اُتمِّمُهُ بِانوارِ التَّنْزِيلِ وَاَسرارِ التأويلِ فَها أنَا اَلآن اَشرعُ وبِحسنِ تَوفِيقِه اقُولُ وَهوَ المُوَفِق لِكلِّ خير والمُعطِي كلِّ مَسْؤولٍ).

**ترجمه**: نیت کوونکی وم په دې حال کې چې زه به نوم ګدم روسته له اتمام نه انوارات د قرآن او رازونه د تأویلاتو ته دي خبرشي چې زه اوس په دې کې شروع کوم او په ښه توفیق دالله جلّ جلاله دا وایم او هغه الله جلّ جلاله د هر خیر توفیق ورکونکی دی او د هر سوال او حاجت پوره کونکی دی.

**تشریح**: انوارالتّنزیل واسرارالتأویل دا دتفسیر بیضاوي خپل نوم دی.

(فها) کې دا (ها) لپاره دتنبیه دی مطلب دا چې تاسو ته دې خبرداری وي [1].

---

[1] حروف تنبیه دري (۳) دي (۱) ألا (۲) أمّا (۳) ها.

## سورة الفاتحة

**تفسیر بیضاوي**: (سُورةُ الفَاتحة الكتاب).

**تشریح**: دلته درې بحثونه کوي (۱) د سورت تشريح (۲) د سورت اضافت فاتحې ته (۳) د سورت فاتحې نومونه.

**لومړی بحث**: (سورة) د سئَر يسئَرُ نه مهموز العين دی په معنی د ما بقي دشي.

سورة الفاتحه اولنی هغه سورة دی چې کامل او پوره سورة نازل شوی دی په خلاف دباقي سورتونو هغه نجما نجما نازل شوي او په دي اتفاق دی چې دا په مکه مکرمه کې نازل شو خو اختلاف په دیکې دی چې دا نازل شوی په مدینه منوره کې روسته ددتحويل دقبلې نه دابحث مخکې راروان دی، سورة نوم دی لپاره هغه کلام چې دهغې لپاره مستقل نوم وي او مشتمل وي په درې آیاتونو یا زیاتو.

**سوال**: آیت کرسي خو هم مستقل نوم دی ، مستقل عنوان دی اومشتمل دی په درې آیاتونو اوسره له دې چې سورة نه دی؟

**جواب**: آیت کرسې اسم نه دی اضافت دی لکه ماء البير (اوبه دکوهي).

سورت مأخوذ دی له «سؤر البلد» څخه ځکه سؤرالبلد مشتمل وي په بلد (ښار) اوسورت مشتمل وي په آیاتونو خپلو او یا سورت وائې فوقیت ته او دا هم په ټولو انساني کلامونو اوخبرو فوقیت لري او یاسورت مأخوذ دی له سؤر نه او سؤر جوتې ته وائې یعنې مابقیه دشي اوهر سورت دنورو سورتونو مابقیه وي.

او آیة مأخوذ دی له (ايي يئايي آيةً) نه په معنی دتشخص لکه اَيَي زيد ای تشخص زيد، دوه (۲) یا ګانې یو ځای راغلی اوله یاء په الف سره بدله شوه آیة شو نو هر آیة هم جدًا جدًا مضمون دی او یا اية مأخوذ دی له (اوی يأوی اوية) څخه اجوف واوي اوناقص يايي دې په معنی د رجوع نو واو په الف بدل شو آیت شو نو قاري چې تلاوت کوي هر آیت دلوستونکی مرجع دی.

## (اضافت دسورة فاتحې ته)

**دویم بحث**: اضافت دسورت فاتحې ته اضافت په معنی دلام سره دی لکه اضافت دفاتحې کتاب ته چې په معنی دلام سره دی بیا اضافت په درې قسمه دی لومړی په تقدیر د «لام» دویم په تقدیر د «فی» دریم په تقدیر د «مِن».

وجه دحصر : دامضاف الیه به خالي نه وي یابه کلي وي محمول به وي په مضاف اویا به نه وي اول قسم اضافت په تقدیر د مِن سره دی او دا دوهم به بیا خالي نه وي یا به مضاف الیه ظرف وي لپاره دمضاف اویا به نه وي اول قسم (چې ظرف وي) اضافت په تقدیر د فِی سره دی او دوهم (چې ظرف نه وي) اضافت په تقدیر د لام سره دی نو فاتحه هم نه ظرف دی لپاره د مضاف او نه محمول دی په مضاف .

**فاتحه**: په وزن د اسم فاعل دی په معنی دخلاصونکي یا په معنی د آلې دی په معنی دمایفتح به القرآن یا مراد ورنه جزء اول دی او (ة) دا فاتحة لپاره دنقل دی له وصفیت څخه اسمیت ته .

## د فاتحې نومونه

**دریم بحث**: قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اَللّٰهُ) دفاتحې لپاره څوارلس (۱۴) نومونه ذکر کړي لکه (۱)فاتحة الکتاب دا ورته په دې اعتبار وائې چې دا مبداء دی (۲) امّ القرآن دا ورته په دې اعتبار وائې چې اصل دی (۳) اساس القرآن په دې اعتبار ورته وائې چې دا منشأ دی.

**سوال**: تا وویل چې فاتحې ته اساس القرأن په دې اعتبار سره وایي چې دا منشأ دی او منشأ خو مصدر وي لپاره دغیر او فاتحه خو مصدر لپاره دغیر نه ده ؟

**جواب**: فاتحه منشأ حقیقي نه دی بلکه کالمنشأ دی (لکه منشأ دی)

**تفسیر بیضاوي**: (وَتُسَمَّی أُمّ القُرآنَ لِانّهَا مَفتحَه ومَبدَءهُ)

**ترجمه**: او دیته امّ القرآن هم وائې ځکه چې دا شروع او مبدأ دقرآن دی.

**تشریح**: عربي کې «ام» مور ته وائي دلته ترینه اصل مراد دی مجازاً. «مفتحه» یا ظرف دی په معنی دځای دشروع کولو یا مصدر میمي دی په معنی دافتتاح او مبداء : ځکه ابتداء د قرآن هم له فاتحې کیږي.

**تفسیر بیضاوي**: (فَکَأَنَّها أَصْلُهُ ومَنْشَأُهُ ولِذالِک تُسَمَّی اسَاسًا اَو لِاَنَّها تَشتَمِلُ عَلٰی ما فیهِ من الثَّناءِ علَی اللّٰه عزّ وجلّ وَالتَّعبُّد بأَمْرِهِ ونَهیِهِ وبَیانه وَعدَهِ وَ وَعِیدهِ).

**ترجمه**: نو ګویا دا فاتحه د قرآن کریم اصل او ځای دپیدا کیدو دی او له همدې وجهې دیته اساس (بنیاد) هم وائې او یا ورته ام القرآن ځکه وائې چې دا مشتمله دی په هغه څه چې په هغې کې په الله جلّ جلاله ثناء دی او د هغه ذات په اوامرو او نواهیو سره بندګي کول دي او دوعد او وعید بیان دی.

**تشریح**: غرض د قاضی بیضاوي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) په عبارت «او لانّها تشتمل» سره بیان د وجې ثاني دی په تسمیی د امّ القرآن سره.

## (اعظم مقاصد دقرآن)

په قرآن کې اوه (۷) مقاصد ذکر کیږي(۱) امر(۲) نهي (۳) وعد (۴) وعید (۵) قصص (۶) امثال (۷) احکام خو اعظم مقاصد دقرآن یا څلور دي: (۱) ثناء (۲) تعبد بأمره ونهیه (۳) بیان وعید (۴) بیان وعد او دا ځکه اعظم دي چې مقصد دنزول دقرآن هغه معرفت دمبدأ او معاد دی نو په ثناء او تعبد باندې معرفت دمبدأ حاصلیږي او په وعد او وعید باندې معرفت د معاد حاصلیږي او فاتحه په څلورو وارو مقاصدو مشتمله ده (۱) تر مَالِکِ یَومِ الدّین پورې ثناء دی (۲) او په اِیّاکَ نَعبُدُ کې تعبّد دی (۳) او په انعمت علیهم کې وعد دی (۴) او په غیر المغضوب علیهم کې وعید دی.

**سوال**: په ایّاک نعبد کې بیان دعبادت دی دا خو مستلزم لپاره تعبد بالامر ونهی نه دی ؟

**جواب**: عبادت عبارت دی له امتثال د اوامرو او نواهیو نه.

**سوال**: قاضی صیب (رَحِمَهُ اللّٰهُ) ولې دلته څلور مقاصد ذکر کړل او نور ئې پریښودل؟

**جواب**: ځکه چې دا څلور مقاصد متبوع او اهم دي او باقي د دې تابع دي.

**تفسير بيضاوي**: (اَوعَلى جُملةِ معَانيهِ مِن الحِكَمِ النَظريَّة والاحْكامِ العَمليَّة الّتى هِىَ سُلوكِ الطَّريقِ المسْتقيمِ والاِطّلاعِ عَلى مَراتبِ السُّعَداء وَمنازِلِ الأشقِياءِ)

**ترجمه**: او يا امّ القرآن ورته ځکه وائي چې داپه اجمالي نظري حکمتونه او احکام عمليه باندې مشتمل سورة دی چې هغه حکمتونه او احکام په سمه برابره لاره باندې تلل دي او د نيک بختو خلکو مرتبې او د بدبختو خلکو آخري منزلو باندې خبريدل دي.

**تشريح**: (اوعلى جملة الخ) دا دريمه وجه دتسميې دی په ام القرآن سره. حاصل دا چې ټول شيان په قرآن کې په تفصيل سره ذکر کيږي.

**الاحكام العملية**: عبارت دي له هغو احکامو څخه چې مقصود له دينه معرفت وي.

**احكام نظرية**: عبارت دي له هغو احکامو څخه چې مقصود له دينه عمل وي او دا موجود دي په قرآن کې. تر مَالِک يَومِ الدّين پورې ذکر داحکام عمليه وو دی تر اِيّاکَ نَعبدُ واِيّاکَ نستَعِين پورې ذکر داحکام نظريه وو دی او په اِهْدِنَا الصّراط المُسْتَقيم پورې ذکر دسلوک دی او په اَنْعمتَ عليهم کې مراتب دسعداءو ذکر دي اوپه غيرالمغضوب الخ کې منازل داشقياءوو ذکر دي نو دا امور په فاتحه کې اجمالًا موجود دي نو معلومه شوه چې ټول قرآن اجمالًا په فاتحه کې موجود دی.

**تفسير بيضاوي**: (وسُورةُ الكَنز وَالوَافيَة والكَافيَة لذَالِك و سورةُ الحَمدِ والشُّكر والدُّعاءِ وتَعليمُ المَسئلَةِ لاِشتِمالهَا علَيهَا والصّلوةُ لوجوبِ قِرآئتِها اَو اسْتحبَابها فِيها والشَّافية والشِّفاء لقوله صلّى الله عليه وسلّم هِىَ شِفاء مِّن كُلِّ داءٍ)

**ترجمه**: او د دې سورت بل نوم سورت الکنز، سورت وافية، اوسورت کافية هم دی او سورت حمد، سورت شکر، سورت دعا او سورت تعليم المسئله هم ورته وايي ځکه چې داپه حمد، شکر، دعا اوپه تعليم دمسئلې مشتمل دی اوسورت صلوة هم ورته وائي ځکه په لمونځ کې د دې لوستل يا واجب دي يا مستحب دي سورت شافيه او سورت شفاء هم ورته وائي له دې وجهې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وائي چې دا سورت د هر مرض دوآء دی.

**تشريح:** دي سورت کنز هم وايي ځکه ده هم د قرآن د تمامو مضامينو خزانه ده علي رضي الله عنه فرمايي (الفاتحة نزلت من کنز تحت العرش[1]) وافيه او کافيه هم له دې وجې ورته وايي چې داسورت د قرآن ټولو معاني او مضامين پکې موجود دي او سورت حمد ورته ځکه وايي چې دالحمد تذکره ده پکې او سورت شکر ورته ځکه وايي چې د الله تعالى صفات پکې ذکر دي او صفات د الله تعالى په منعم کيدو دلالت کوي او د منعم صفات د تعظيم په ډول ذکر کول هم شکر دى او دعا ورته ځکه وايي چې دعا پکې ذکر ده او تعْليم المسئله هم له دې امله ورته وايي چې بندګانو ته يې پکې د غوښتلو او سوال طريقه ښودلې ده

## مسئله د قرأت خلف الامام

قرآئت دسورت فاتحې په لمانځه کې واجب دى په اولنيو رکعتونو کې اومستحب دى په آخرينو رکعتونو کې په نزد داحنافو اوشوافعو د دواړو مذاهبو په وجوب کې اختلاف نشته احناف اوشوافع دواړه وائي چې دفاتحې نه غير لمونځ نه کيږي بلکه اختلاف په دې کې دى چې قرائت دامام کافي دى لپاره د مقتدي اوکه نه ؟ داحنافو په نزد د امام قرأت مقتدي لره کافي دى او دَ شوافعو په نزد کافي نه دى[2] .

---

(۱) حدثنا عبّاس ، نا أبو غسان مالك بن إسماعيل النهدي ، نا موسى بن محمد الأنصاري ، عن العلاء بن المسيب ، عن الفضيل بن عمرو قال : سئل علي عن فاتحة الكتاب ، فقال : حدثنا نبي الله صلى الله عليه وسلم . ثم تغير لونه وردّدها عليه ساعة : أنها نزلت من كنز تحت العرش ، فقال له رجل : إن أخي مريض ، فقال : تحب أن يبرأ أخوك ؟ قال : نعم . قال : قل يا حليم يا كريم اشف فلانا* معجم ابن الأعرابي - باب الدال رقم الحديث:١٧٦٤

حدثنا محمد بن محمد الجذوعي القاضي ، ثنا عقبة بن مكرم ، ثنا أبو بكر الحنفي ، ثنا عبيد الله بن أبي حميد الهذلي ، ثنا أبو المليح الهذلي ، حدثني معقل بن يسار قال : سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول : " اعملوا بالقرآن ، وأحلوا حلاله ، وحرموا حرامه ، واقتدوا به ، ولا تكفروا بشيء منه ، وما تشابه عليكم فردوه إلى الله أو إلى الأمير من بعدي كيما يخبروكم ، وآمنوا بالتوراة والإنجيل والزبور ، وما أوتي النبيون من ربهم ، وليشفكم القرآن وما فيه من البيان ، فإنه شافع مشفع ، وما حل مصدق ، ولكل آية منه نور إلى يوم القيامة ، أما إني أعطيت سورة البقرة من الذكر ، وأعطيت طه والطور من ألواح موسى ، وأعطيت فاتحة الكتاب وخواتيم البقرة من كنز تحت العرش ، وأعطيت المفصل نافلة" المعجم الكبير للطبراني - بقية الميم

ما أسند معقل بن يسار - أبو المليح بن أسامة الهذلي رقم الحديث:١٧٣٢١

(۲):- دېته مسئله د قرائت خلف الامام والې چې زمونږ اودشوافعو ترمنځ يوه مختلف فيها مسئله ده خو لله الحمد موږ په خپله دعوه باندې قرآني آيات نبوي احاديث او ګڼ شمير دصحابه کرامو آثار او اقوال لرو لکه الله جلّ جلاله فرمائي : وَاِذَا قرء القرآن فاستمعوا له

## روحاني علاج

(شفاء لکلّ دآء)[1] سورت فاتحه د هر مرض لپاره شفاء او علاج دی که هغه مرض روحاني وي که جسماني څوک پرې دم ولی هم شي او تعویذ هم ورته ترې جوړولی شي.

دم او تعویذ هم د عام علاج غوندې یو علاج دی چې ولي او فاسق دواړه ئې کولی شي د دې لپاره ولایت او بزرګي شرط نه دی یو سړی به لمونځ نه کوي خو دم به ئې ښه کار کوي داده د ولایت نښه نه ده بلکه دا د عام ډاکټري علاج غندې علاج دی چې جائز غیر او جائز دواړه پکې شته که د شریعت موافق وي کفري الفاظ پکې نه وي نو جائز دی او که د شریعت موافق نه وي یعنې استعانت له غیر الله پکې غوښتل شوی وي یا کفري الفاظ پکې وي بیا حرام دی.

**تفسیر بیضاوي**: (وَالسَّبعُ المَثَانِي لِاَنها سَبع آیاتٍ بالاتِفاق اِلّا أنّ مِنهم مَن عَدَّ التَّسمیَة آیةً دُونَ انعمت عَلیهم وَمِنهم مَنْ عَکَسَ)

**ترجمه**: او دې سورت ته سبع المثاني هم وائې ځکه دا اووه (۷) آیاتونه دي په اتفاق سره.

**تشریح**: دلته دوه بحثه کوي (۱) د (السّبع المثاني) دوه کلمې دي مصنف لومړی د (السبع) بحث کوي بیا د (المثاني) (۲) د مکي او مدني سورتونو ترمینځ توفیر بیانوي.

---

وانصتوا لعلّکم تُرحَمُون. سورة الاعراف آیة ۲۰٤ ، دټولو سلفو اوخلفو اتفاقي فیصله ده چې په دې آیت کې دقرائت خلف الامام مسئله پوره واضحه شویده یعنی دامام او مقتدي کارونه او وظیفې ئې سره جلا کړي دي دامام وظیفه قرائت کول دي اود مقتدي وظیفه چپ دریدل اوتوجه کول دي. ځینې له دغو سلفو ځخه مشهور صحابه کرام لکه عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس، مقداد بن اسود، ابو موسی اشعری ، حضرت جابر، ابودردآء ، زیدبن ثابت، ابوبکر ، معاذ بن جبل ، رضوان الله علیهم اجمعین. ټولو دقرائت خلف الامام نه منع کړې او له تابعینو ځخه حسن بصری، سعیدبن جبیر، سعیدبن مسیب ، امام مجاهد ، عبیدبن عمیر، عطاءبن ابی رباح ، امام ضحاک، قتادة، ابراهیم نخعي، شعبي، امام ابوحنیفة ، عبدالرحمن بن زید بن اسلم، او امام سد رحمهم الله ټول په یوه خوله وائي چې قرائت خلف الامام ناروا دي همدارنګې نبوي احادیث هم له قرائت خلف الامام ځخه منع کوي لکه عن ابی موسی اشعری رضی الله تعالی عنه قال انّ رسول الله صلّی الله علیهم وسلّم خطبنا فبین لنا سنّتان وعلّمنا صلوتنا فقال اقیموا صفوفکم ثمّ لیؤمّکم احدکم فاذا کبّر فکبّروا واذا قرء فانصتوا واذا قال غیرالمغضوب علیهم ولاالضآلّین فقولوا امین. رواه مسلم. ۱ / ۱۷٤ .وابوداود: ۱ / ۱٤۰ . وابن ماجه: ٦۱ ،

دلازیات معلومات لپاره دشیخ صیب بې نظیر تألیف «احقاق الحق» ته رجوع وکړئ هلته شیخ صیب په لسګونو احادیث او دصحابه کرامو فتوې راجمع کړی هیله ده چې تنده به مو پرې ماته شي.

(۱):- اخبرنا قبیصة انا سفیان ، بن عبدالملک بن عمیر قال: قال رسول الله صلّی الله علیه وسلّم فی فاتحة الکتاب شفاء مَن کلّ داْءٍ سنن الدّارمي رقم الحَدیث ۳۲٤۷ وکذا رواه البیهقي.

**لومړی بحث**: السّبع نه مراد اووه (۷) آیاته دي او مثاني وائي مکرّر ته نو دا سورت هم مکرر نازل شوی دی یو ځلې په مکه مکرّمه کې او بل ځلې په مدینه منوره کې نازل شوی، مگر دومره خبره دی چې بعضې «بسم الله» آیات شماري او «انعمت علیهم» آیات نه شماري او بعضې عکس کوي یعنې بسم الله آیات نه شماري او انعمت علیهم آیات شماري.

دا (الّا أنّ منهم...) دلیل دی لپاره د (السّبع) یعنې اووه (۷) آیاته دې په اتفاق داحنافو اوشوافعو؛ خو شوافع بسم الله ته آیات وائي او انعمت علیهم ته نې نه وائي او احناف انعمت علیهم ته آیات وائي خو بسم الله ته آیات نه وائي امام حسن بصري (رحمه الله) وايي چې فاتحه شپږ ایاته دی نوموړی بسم الله هم ایت نه گڼي او انعمت علیهم هم ځانته ایت نه گڼي له صراط الذین څخه تر اخره ټول ایت گڼي او امام حسین جعفي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) یې اته ایاته منې هغه بسم الله او انعمت علیهم جلا جلا ایتونه شميري خو مصنف دلته د جمهورو رایه را نقل کړې ده.

**تفسیر بیضاوي**: (وتُثنَى فى الصّلوةِ اَو الاِنْزالِ اِنْ صحّ انّها نزلتْ بِمكّةَ حينَ فُرِضَتِ الصّلوةُ وبِالمدينَة حين حوّلتِ الصَّلوةُ القِبلةَ وَقدْ صحَّ انّها مَكيّةٌ لقوله تعالى وَلقدْ آتَينک سَبعًا مِّن المثانِي [1] وَهُو مكيٌّ بالنّصِ).

**ترجمه**: او دا مکرّر کولی شي په لمانځه کې او یا مکرّر دی په انزال (نازلیدو کې) که دا خبره صحیح شي چې دا سورت هغه وخت کې نازل شوی چې په مکه مکرّمه کې لمونځ فرض شو او په مدینه منوره کې روسته له تحویل د قبلې نه دا صحیح دی چې دا سورت مکي دی ځکه الله جلّ جلاله فرمائي په تحقیق سره ما تاته درکړي اووه (۷) آیاتونه مثاني (مکرّر) او دا مکي دی.

**تشریح**: دلته د (المثاني) بحث کوي فرمايي مثاني جمع د مثنی ده او د سم مفعول صیغه ده لکه مناهي جمع د منهي ده په معنا د تکرار شوي سره او دا سورت هم بیا بیا تکراریږي نو ځکه ورته مثاني وايي او بل دا چې دا سورت دوه ځله نازل شوی دی یو ځل په مکه مکرمه او بل ځل په مدینه

(۱):- سورة الحجر: آية ۸۷ ، او مثاني جمع د مثنی ده صیغه د ظرف یا اسم مفعول ده د تثنیه نه مأخوذ ده.

منوره کې خو روایت دنزول دسورت فاتحې په مکه کې کله چې لمونځ فرض شو اتفاقي دی په
6 مدینه کې اختلافي دی.

**سوال**: کله چې دا سورت دوه ځله مستقل نازل شو نو پکار ده چې دوه سورتونه ورته وویل شي او دا خو یو سورت دی؟

**جواب**: دا به هغه وخت دوه سورتونه شمېرل کیده چې چې دویم ځل د یو مستقل سورت کیدو په حیث نازل شوی وای او د اهمیت نه وچې دوباره نازل شوی دی.

دا (وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي) دلیل د دې خبرې دی چې دا سورت مکې دی ځکه الله تعالی په دې ایت کې نبي علیه السلام ته خپل انعام وریاد کړی او دغه انعام یې په مکه کې وریاد کړی نو لازمه شوه چې دا سورت(انعام) به هم مکه کې نازل شوی وي او بل دا چې د دې نزول هم د اهل مکه په اړه شوی.

دریم دلیل دا چې لمونځ په مکه مکرمه کې فرض شوی نو که فاتحه مدني سورت شي هغه یو نیم کال مکې لمنځونه به تړول بې فاتحې ادا شوي وي او دا خبره باطله ده ځکه فاتحه ترلمانځه خاصه شوې ده.

## مکي او مدني سورتونه

**دویم بحث**: په دې اړه علماء کرام درې قوله بیانوي.

**لومړی**: کوم سورتونه چې له هجرت مخکې نازل شوي دي هغه مکي او کوم چې وروسته له هجرت څخه نازل شوي هغه مدني دي.

**دویم**: په کومو سورتونو کې چې خطاب اهل مکه ته شوی که هر ځای نازل شوي هغه مکي بللی شي او په کومو کې چې اهل مدینه ته خطاب شوی هغه مدني دي بیا که هر ځای نازل شوي وي.

**دریم**: کوم چې په مکه کې نازل شوي دي هغه مکې دي خوله مکې څخه خپله مکه او د دې مضافات او اطراف دي لکه منا، عرفات او حدیبیه او کوم چې په مدینه کې نازل شوي هغه مدني سوتونه دي له دې څخه هم خپله مدینه او اطراف د مدینې مراد دي لکه بدر، احد وغیره خو د دې

قول به بنا چې کوم سورتونه چې په سفرونو کې نازل شوي يعنې له مکې او مدينه علاوه بل ځاى کې هغه نه مکي دي او نه مدني، خو مشهور يکې لو مړى قول دى[1].

ابوبکر ابن العربي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) وايي چې د مکي او مدني په اړه له رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څخه کوم قول نه دى منقول دا به د صحابه کرامو او تابعينو څخه معلوم ولى شي[2].

ابوالحسن بن الحصار (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) وايي چې شل سورتونه اتفاقي مدني او دولس مختلف فيها دى او باقي ټول مکي دي او د ابى بن کعب رضي الله عنه په نزد اوه ويست (٢٧) سورتونه مدني دي او باقي ټول مکې دي[3].

## بحث دبسم الله

**تفسير بيضاوي:** (بسم الله الرَّحمنِ الرَّحيْم منَ الْفَاتحةِ ومن كلّ سورةٍ وَعليهِ قُرآءُ مَكَّة والكُوفَة وَفقهَاءهمَا و ابنُ مُبارك والشَّافعى وخالَفَهم قُرَّآء المَدينَة وَالبَصرَة والشَّام وفُقهائِها وَمَالِك وَالاوْزَاعى ولَمْ يَنُصَّ ابوحنِيفةَ رحمه الله فِيه بِشيءٍ فظُنَّ انّها لَيسَ مِن السُّورَةِ عِندهُ وَ سُئِل مُحمد بن الحسَنِ الشَّيبانى عنها فَقال مَابَين الدُّفتَين كلَامُ)

**ترجمه:** دا (بسم الله) آيت (جز) دى له سورت فاتحې نه اوپه دې خبره چې دا آيت دي له فاتحې نه قرآء د مکې، کوفې، او فقهاؤ دمکې او کوفې، او ابن مبارک (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) او شافعى (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) دي اومخالفت کړى قرآء وو دمدينې، بصرى، شام، او فقهاؤددې دغه رنګ امام مالک (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) او اوزاعي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ).. او تصريح نه دى کړې امام ابوجنيفة (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) په دې کې نو ګمان وکړى شو چې د امام ابوحنيفة (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) په نزد جزء له فاتحې څخه نه دى او پوښتنه وشوه له امام محمد (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) نه د بسم الله په باره کې نو هغه ورته وويل چې په مابين د ګتو کې کلام الله دى.

---

(١) علوم القرآن صـ ١٤٦ لعلامه شمس الحق الافغاني.

(٢) انتصار بحواله علوم القرآن صـ ١٤٦

(٣) الإتقان في علوم القرآن عبد الرحمن بن أبي بكر، جلال الدين السيوطي (المتوفى: ٩١١هـ)

**تشریح**: علامه تفتازاني (رَحِمَهُ اللَّهُ) فرمائي چې د بسم الله لپاره دوه (۲) حیثیته دي اول کونها في اوائل سورة کیدل د دې په اوائیلو دسورتونو کې دوهم کونها في النمل کیدل د دې سورت نمل کې.

هغه بسم الله چې په سورت نمل کې ذکر دی (انه من سلیمان وانه بسم الله الرحمن الرحیم[1]) داپه اتفاق سره جزء دقرآن دی او جزء د سورت نمل دی او هغه بسم الله چې په اوآئیلو دسورتونو کې ذکر کیږي په دې کې اختلاف دی.

## په بسم الله کې اختلاف

**لومړی قول**: د امام مالک (رَحِمَهُ اللَّهُ) او د قدماء احنافو دی.

**دوهم قول**: د شوافعو اومتأخرینو احنافو دی بیا د دوی ترمنځ اختلاف دی.

**اول قول**: امام مالک اوقدماء داحنافو وائې چې داجزء دقرآن څخه نه دی له دې وجهې نه امام مالک (رَحِمَهُ اللَّهُ) بسم الله نه په سري (خفیه) او نه په جهري لمانځه کې وائې اوقدماء د احنافو وائي چې قرآن عبارت دی له (منقول عن النبی صلی الله علیه وسلم متواتر مابین دفتین بلاشبهة) یعنې قرآن هغه دی چې په تواتر سره منقول دی په مابین ددوه کتو کې لیکلی شوی چې هیڅ شک او شبه پکې نشته. او د بسم الله په باره کې اختلاف دی نو دا منقول په تواتر سره نشو نو په دې کې شبهه راغله ځکه له قرآن څخه خارج دی.

**دویم قول**: شوافع اومتأخرین داحنافو وائي چې داجزء د قرآن څخه دی بیا د دوی په مابین کې اختلاف دی.

**متأخرین داحنافو وائي**: چې بسم الله نه له فاتحې او نه له هرسورت څخه جزء دی.

**اوشوافع وائي**: چې بسم الله جزء له فاتحې دی بیا بعضې شوافع وائي چې له باقي سورتونو څخه هم جزء دی اوځینې وائي چې له باقي له سورتونو څخه جزء نه دی له دې وجهې نه حنفي قاریان په ختم د تراویحو یوځل بسم الله وائي اوشوافع ئې نه وائي.

---

(۱) سورت النمل ایة ۳۰

## دا حنافو دلایل

**دمتأخرينو احنافو دلايل**: متأخرينو دوه دعوې کړې وې اوله دا چې بسم الله جزء له قرآن څخه دی او دیمه دعوه دا وه چې نه جزء له فاتحې دی او نـه له هر سورت څخه جر دی.

**لومړی دعوې دليل**: داحنافو دليل په دې خبره چې بسم الله جزء له قرآن څخه دی اوجزء له فاتحې نه دی روايت د ابو هريرة (رضي الله عنه) دی چې دا حديث قدسي دی.

(عن ابي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: قَسَمْتُ الصَّلَاةَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي نِصْفَيْنِ، فَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ: { الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: حَمِدَنِي عَبْدِي، فَإِذَا قَالَ: { الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى : مَجَّدَنِي عَبْدِي، وَإِذَا قَالَ: {مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ}، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى : أَثْنَى عَلَيَّ عَبْدِي ، وَإِذَا قَالَ : { إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ }، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: هَذَا بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي نِصْفَيْنِ ، وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ)[1]

**ترجمه**: له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبي عليه السلام فرمايلي چې الله تعالى فرمايي: ماتقسيم کړې فاتحه په مابين زما او زما دبنده کې کله چې بنده ووائي الحمد لله ربّ العالمين . نو الله پاک ووائي حمدني عبدي زما بنده زما حمد ويلو. داحديث په فضائلو دفاتحې کې ذکردی.

**دويم دليل**: عَنِ ابْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعَنِي أَبِي، وَأَنَا أَقُولُ: {بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} [الفاتحة:] ، فَقَالَ: أَيْ بُنَيَّ، إِيَّاكَ - قَالَ: وَلَمْ أَرَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَبْغَضَ إِلَيْهِ حَدَثًا فِي الْإِسْلَامِ مِنْهُ - " فَإِنِّي قَدْ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَمَعَ عُثْمَانَ، فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقُولُهَا، فَلَا تَقُلْهَا، إِذَا أَنْتَ قَرَأْتَ فَقُلْ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.[2]

---

(١) أخرجه صحيح مسلم (١ / ٢٩٦ ط عيسى البابي الحلبي ).
حَدَّثَنَا إِسْحَقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ الْعَلَاءِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
(٢) مسند أحمد (٢٧/ ٣٤٢)رقم الحديث١٦٧٨٧ - حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، قَالَ: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ إِيَاسٍ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عَبَايَةَ،

عبد الله بن مغفل (رضي الله عنه) فرمايي ما نه زما پلار په مانځه کې له الحمد لله نه مخکې بسم الله واورېده کله چې له لمانځه فارغ شوم نو راته يې وفرمايل بچيه په اسلام کې له نوي کار پيدا کولو ځان وساته ځکه ما له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) .ابوبکر الصديق.عمر فاروق (رضي الله عنهما) پسې لمونځ کړي هغوی به فاتحه له بسم الله څخه نه شروع کوله . نو له دې حديث څخه ثرگند شوه چې بسم الله د فاتحې جز نه دی

**دريم دليل**: حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ قَتَادَةُ، حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ: " صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، فَكَانُوا يَسْتَفْتِحُونَ بِـ {الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} [الفاتحة: ٢] ، لَا يَذْكُرُونَ {بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} [الفاتحة: ١] فِي أَوَّلِ الْقِرَاءَةِ، وَلَا فِي آخِرِهَا[(١)]

انس رضي الله عنه فرمايي چې ما له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ابوبکر ، عمر او عثمان رضي الله عنهم پسې لمونځ وکړ له يو مې هم د الحمد لله شروع او يا ی په بسم الله وا نه ورېده

**څلورم دليل**: (وَ سُئِل محمد بن الحسَنِ الشِّيبانى) له امام محمّد بن حسن الشيباني (رحمه الله) نه يو ورځ چا پوښتنه وکړه چې قرآن څه ته وائي هغه ورته وويل «مابين الدّفتين كلام الله» يعنې د دې دوه گټو مابين کې چې څه دي دا کلام الله دی او دا قول اوفتوی دامام صيب (رحمه الله) هم دی ځکه چې کله امام محمّد (رحمه الله) او امام ابويوسف (رحمه الله) چې يوه خبره ذکر کړي او ځان ته ئې منسوب نه کړي نو دا دامام ابو حنيفة (رحمه الله) قول وي.

**د دويمې دعوې دليل**: (ولَمْ يَنصّ ابوحنِيفةَ فِيه بِشيءٍ) هغه دا چې بسم الله د فاتحې نه هم جزء نه دی او له هرسورت څخه هم جزء نه دی دليل دا دی چې کوفه کې په دې خبره کې ډير اختلاف وه دامسئله ډير مختلف فيها وه او امام ابوحنيفه (رحمه الله) ساکت (چپ) وه او کله چې خلک

---

(١) مسند أحمد (٢١/ ٥٠)رقم الحديث ١٣٣٣٧ – وايضاً في مسند أحمد (٢١/ ٣٦٠)رقم الحديث ١٣٨٩٢ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، وَحَجَّاجٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي شُعْبَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ قَتَادَةَ،... عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ، فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقُولُ: {بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} [الفاتحة: ] "

رائي پيش کوي او امام موجود وي نو دا دليل دانکار دی نو دامام صاحب هم دا قول دی چې دا نه جزء له فاتحې دی او نه جزء له هر سورت دی او قاضی بیضاوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) وائي چې جزء له قرآن هم دی او همدارنګه جزء له فاتحې هم دی؛ ځکه دا شافعي مسلکی دی نو دلته قاضی (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) دوه (۲) دعوې وکړې یوه دا چې بسم الله جزء دی له قرآن څخه، بله دعوه دا چې جزء دی له فاتحې څخه.

په اوله دعوه کې دمدینې منورې، دبصرې او شام، قاریانو او امام اوزاعي او امام مالک (رَحِمَهُمَاٱللَّهُ) اختلاف کړی، او په دعوه ثاني کې اختلاف کړی امام ابو حنيفة (رَحِمَهُ ٱللَّهُ).

## د شوافعو دلايل

**تفسير بيضاوي**: ( لَنا احادِيث كثيرة مِنها: مارَوَى ابو هريرةَ رضى الله عنه انّه عَليه الصَلوة والسّلام قَال فَاتحةُ الكتَابِ سَبع آياتٍ أُولاهُنّ بسم الله الرّحمنِ الرّحيم).

**ترجمه**: زموږ لپاره ډیر احادیث دي یو له هغې نه هغه حديث دی چې روايت کړی ابوهريرة (رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ) چې رسول الله (صَلَّىٱللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) فرمائي فاتحة الكتاب (سورت فاتحه) اووه (۷) آياتونه دي چې اول آيت ئې بسم الله الرّحمن الرّحيم دی.

**تشريح**: له دې څخه روسته مصنف د شوافعو دلايل ذکر کوي

شوافع دخپلې دعوې لپاره څلور دلائل بيانوي (۱) حديث دابو هريرة (رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ) (۲) حديث دامّ سلمه (رَضِيَٱللَّهُعَنْهَا) (۳) اجماع (۴) وفاق.

(لنا) نه مراد شوافع دي ځکه مصنّف (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) شافعي دی

**لومړی دليل**: دا حديث د ابوهريرة (رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ) د حديث يوه ټوټه ده مکمل حديث داسې دی:

**(عن ابى هريرة رضى الله عنه عن النّبى صلّى الله عليه وسلّم انّه كان يقول الحمدلله ربّ العالمين سبع آيات احداهنّ بسم الله الرّحمن الرّحيم وهى السّبع من المثانى والقرآن العظيم وهى امّ القرآن وهى فاتحة الكتاب)[1].**

---

(۱):- رواه سنن البيهقى بسند: اخبرنا ابوعبدالله الحافظ و ابوبكر احمدبن الحسن القاضي قالا حدّثنا ابو العباس محمّد بن يعقوب حدثنا العباس بن محمد الدّوري حدثنا سعد بن عبدالحميد بن جعفرالانصارى حدثناعلى بن ثابت عن عبدالحميد بن جعفرحدثنى نوح بن ابى بلال عن سعيد المقبورى عن ابى هريرة رضى الله عنه.

**تفسير بيضاوي**: (وَ قَولُ اُمّ سلَمَة رضي الله عنها قَرءَ رسُول الله صلّى الله عليه وسلّم الفَاتحَة وعَدَّ بِسم الله الرّحمن الرّحيم الحمد لله ربِّ العالمين آيةً وَمن أَجْلِهما اختَلفَ في انّها آيةٌ بِرأسِها اَم بِما بَعدها).

**ترجمه**: او قول د امّ سلمة (رضي الله عنها) دی چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) فاتحه ولوستله اوبسم الله الرّحمن الرّحيم ئې يو آيات وشميره ، له دې وجهې نه اختلاف دی په دې کې چې دا آيت برأسها (مستقل) دی او که مابعد آيت سره يوځای دی

**تشريح**: دويم دليل دا د شوافعو دويم دليل دی او دا هم د امّ سلمى (رضي الله عنها) د حديث يوه ټوټه دی مکمل حديث داسې دی (وعن امّ سلمة رضى الله عنها انّ النّبى صلّى الله عليه وسلّم كان يقرء بسم الله الرّحمن الرّحيم الحمدلله ربّ العالمين الرّحمن الرّحيم مَالِك يوم الدّين ايّاک نعبد وايّاک نستعين اهدنا الصّراط المستقيم صراط الّذين انعمت عليهم غيرالمغضوب عليهم ولاالضّآلين فقطعها آية وعدّدها عدالاعراب وعدّ بسم الله الرّحمن الرّحيم ولم يعد عليهم[1].

**تفسير بيضاوي**: (وَالاجمَاعُ عَلى اَنّ مابَينَ الدُّفتَين كَلامُ اللهِ سبحانه وتعالى )

**ترجمه**: او اجماع دی [2] په دې باندې چې په مابين د دوه ګتو (وقاية) کې کلام الله دی.

**تشريح: دريم دليل** : د شوافعو دريم دليل اجماع ده هغه دا چې په مابين د ګتو (وقايو) کې کلام الله دی نو بسم الله هم جز له قرآن شو ځکه دا هم مابين الدفتين دی.

**تفسيربيضاوي**: (وَالوِفاقُ على اثْباتِها فِي المَصاحِف معَ المُبالَغةِ فى تجْريْدِ القُرآن حتّى لمْ تَكتُب آمِين )

(۱):- رواه الدر المنثور: ۱ / ۳۵ لامام جلال الدين السيوطى رحمه الله بسند: اخرج ابوعبيد و ابن فى الطبقات وابن ابى شيبة واحمد وابوداود وابن خزيمة وابن الانبار فى المصاحف والدار القطنى والحاكم وصححه والبيهقى والخطيب وابن عبدالبرّ كلاهما فى كتاب المسئلة عن امّ سلمة.

(۲):- الاجماع لغة: العزم والاتفاق واصطلاحًا: اتفاق المجتهدين هذه الامّة بعدالنّبى صلّى الله عليه وسلّم على حكمٍ شرعىٍ ، والاجماع د اصل و دليل من دلائل الشرع.

**ترجمه**: اوبل وفاق دی په ثابت ساتلو د بسم الله په قرآن کې سره له ډير مبالغې نه په خالي ساتلو د قرآن کې له غير قرآن نه حتی چې امين پکې ونه ليکلي شو.

**تشريح**: څلورم دليل: دعلماؤ اتفاق دی په دې خبره چې بسم الله دې په قرآن کې وليکل شي اوحال دا چې صحابه کرامو اوتابعينو ډيرکوشش کولو په دې خبره کې چې غير قرآن دې له قرآن څخه وويستلی شي خو چې بسم الله پکې ثابته پاتې شوه نو هم دا دليل دجزئيت دی.

**سوال**: اجماع خو دلالت په دې کوي چې دابسم الله جزء له قرآن څخه دی نه په دې چې داجزء له فاتحې دی اوستا دعوه خو داده چې دا جزء له فاتحې څخه دی؟

**لومړی جواب**: مقصد دقاضی (رَحِمَهُ اللَّهُ) دوه امره دي اول ذکر د دليل په اثبات د دعوې دوهم ردّ په مخالفينو؛ نو د اثبات د دعوي لپاره ئې احاديث ذکر کړل او په مخالفينو د ردّ لپاره ئې اجماع اوقياس ذکر کړل چې په دې خبره اجماع ده چې مابين د فتين کې کلام الله دی په دی کې ئې ردّ وکړو په امام مالک (رَحِمَهُ اللَّهُ) اوقدماؤ د احنافو څکه هغوئ جزئيت دبسم الله نه مني.

**دويم جواب**: يا دا وايو چې څلور واړه دلائل لپاره د دې خبرې او دعوې دي چې داجزء له قرآن څخه دی لکن جزئيت ئې له احاديثو څخه ضمنا ثابت دی او له اجماع او وفاق څخه صراحتًا.

## دشوافعو له دلائلو نه جواب:

**لومړی**: کوم احاديث چې قاضی (رَحِمَهُ اللَّهُ) په دليل کې پيش کړل د ام سلمه (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا) د روايت مقصد دا دی چې بسم الله يې په قصد د تبرک لوستلې نه په قصد تلاوت او روايت ابو هريرة (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) متعارض دی او په متعارض روايت استدلال نشي کولی.

**دويم**: اجماع او وفاق خو په جزئيت دفاتحې دلالت نه کوي بلکې په جزئيت د قرآن دلالت کوي او دا زمونږ دعوه دی.

## په قرآن کې د سورتونو د نومونو او اياتونو تذکره

**سوال**: تا وویل چې د قرآن په تجرید کې نه غیر القرآن څخه مبالغه شوې ده، نو بیا ولې د سورتونو نومونه اود حروفو له ذکر کولو څخه سورتونو نه دي خالي شوی چې د هر سورت په سرکې د سورت نوم او د آیتونو تعداد لیکل شوی دي.

**لومړی جواب**: مراد له مصحف نه هغه مصحف(قرآن) دصحابه وو اوتابعینو دی اودهغوئ په مصحف کې د سورت نوم او د اياتونو د تعداد تذکره نه وه.

**دویم جواب**: یو دا وایو چې مراد له کلمې د (ما) نه په دې قول کې چې «مابین دفتین» دي هر هغه شئ دی چې احتمال د دې لري چې دا له قرآن څخه دی (من شانه ان یعد من القرآن).

## د بسم الله بحث :

**تفسیر بیضاوي**: (وَالبَاءُ مُتعلّقةٌ بِمحذُوفٍ تَقديرُهُ بِسم اللهِ أَقرأُ لأنَ الَذِى يَتلُوه مَقرُوٌّ).

**ترجمه**: کلمه د «باء» په بسم الله کې تر محذوف پورې متعلق دی چې تقدیر یې بسم الله اقرأ دی ځکه هغه څه چې له قبیلې د متلو څخه وي هغه به مقروٌ وي.

**تشریح**: په بسم الله کې دقاضی بیضاوي (رَحِمَهُ اللهُ) غرض پنځه مباحث دي (۱) نحوي (۲) بلاغتي (۳) کلامي (۴) لغوي (۵) رسم الخطي.

## نحوي بحث

دا باء حرف جر دی او حروف جاره وضعه شوي دي لپاره درسولو (راکاګلو) دمعانیو دافعالو اوشبهه الافعال اسمآءوو ته نو له دې وجهې نه به دا متعلق هم تر فعل او شبه فعل پورې وي.

بیا دا فعل یا شبه فعل که په لفظ کې ذکر شوي وي دیته ظرف لغوه وائي اوکه په لفظ کې نه وي ذکر بیا دیته ظرف مستقر وائي [1] بیا که فعل محذوف وي کله به فعل باندې قرینه مخصوصه دلالت کوي سوا د حرف جر نه اوکله وربانده قرینه مخصوصه دلالت نه کوي که چیر ته په دې فعل

(۱) ظرف مستقر ته ځکه مستقر وایې چې دا د خپل متعلق (عامل) په ځای مستقر او قایم وي، ظرف لغوه ته ځکه لغوه وایې چې د ده مستقرار د خپل متعلق پر ځای لغوه شوی وي یعنې عامل اومتعلق یې په خپله ذکر وي، تحفه شاهجهاني حاشیة شرح التهذیب.

باندې قرينې مخصوصې دلالت کولو دلته به فعل خاص مقدروي اوکه مخصوصې قرينه وربانديې دلالت نه کولو نو دلته به بيا فعل عام مقدروي نو باء په بسم الله کې حرف جردی داهم د فعل اوشبه فعل معنی اسم ته راکاږي چې لفظ د الله جلّ جلاله دی نو متعلق به هم وي تر فعل اوشبه فعل پورې نو د دې په متعلق کې دوه احتماله دي:

(۱) چې متعلق شي تر فعل پورې (۲) چې متعلق شي تر شبه فعل پورې.

چې متعلق ئې فعل شي بيا په دې کې دوه احتماله دي (۱) يا به يې متعلق فعل خاص وي (۲) يا به ئې متعلق فعل عام وي.

## په متعلق د باء کې مذاهب

په متعلق دباء کې درې (۳) مذاهب دي

**اول مذهب**: بعض وائي چې متعلق ئې عام دی (فعل عام مقدر کوي) چې ابداء دی د دې لپاره دوی دوه دلائل وائې:

(۱) دليل دادی چې فعل عام (ابداء) ځکه مقدر کوو چې دا فعل عام (ابداء) متعلق دی لپاره د ډېرو افعالو.

(۲) دليل دادی چې په فعل عام (ابداء) سره موافقت له حديث سره حاصليږي لکه دا قول دنبی (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) كلّ امرٍ ذی بالٍ لم يبدأ فيه بسم الله[1] الخ) نو په حديث کې هم فعل عام ذکر دی.

**دوهم مذهب**: بعضې وائې چې دلته اسم مقدر دی چې «ابتدائي» دی او د دی لپاره دليل دا وائي چې په تقدير داسم سره چې (ابتدائي)دی دا جمله اسميه ګرځي اوجمله اسميه په دوام او استمرار دلالت کوي.

**دريم مذهب**: دا قول د قاضي بيضاوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) دی او دا فعل خاص مقدركوي چې «اتلو» دی د دې لپاره دليل دا وائي چې دا روسته جمله له کومې قبيلې څخه وي نو مخکې فعل

(۱):- رواه حبان انّ النبي صلّى الله عليه وسلّم قال: كلّ امرٍ ذى بال لايبدء باسم الله الرّحمن الرّحيم فهو ابتر كذا فى دار قطنى ومسند احمد: ۱٤ / ۳۲۹ ، رقم الحديث ۸۷۱۲، واللفظ (لم يبدأ) رواه حافظ عبدالقادر الرهاروى فى اربعينه وكذا العينى فى شرحه.

به ورته له هغې قبیلې مقدر کولی شي نو بسم الله له قبیلې دمتلو او مقروء څخه دی نو حکې به هم ورته فعل اتلو یا اقرء مقدر کولی شي.

**تفسیر بیضاوي**: (وَكَذَالِكَ يضْمرُ كُلُّ فَاعِلٍ مَايجْعلُ التَّسْمِية مَبدَأً لَهُ )

**ترجمه**: دارنګه به مقدر کوي هر فاعل دهغه فعل چې تسمیة دهغې لپاره مبدأ ګرځوي.

**تشریح**: په عبارت سره قاضي صیب پهاول مذهب دري رد ونه (څوک چې ابدء مقدر کوي)

لومړی رد: دا قانون کلي بیانوي هغه داسې چې دروستني فعل لپاره به مخکې هغه فعل مقدر کوي کوم چې درستني فعل له جنسه وي لکه بسم الله موږ لولو نو مخکې به ورته اتلو او اقرأ فعل مقدر کوو یا که د څښلو له قبیلې څخه وي هغې ته به اشرب فعل مقدر کوو یا له قبیلې د سوریدنو وي هغې ته به ارکب فعل مقدر (متعلق) کوو وغیره.

**سوال**: ته وائې چې فعل مقدر به دروستني فعل له جنسه وي (هغه فعل کوم چې د بسم الله لپاره مبدأ وګرځي) نو کله چې خوراک یا څښاک کوم نو بسم الله ته به اکل او شرب څنګه مقدرکوم ځکه دا خو فعل حقیقي دی او فعل حقیقي خو نه مقدر کیږي.

**لومړی جواب**: په عبارت کې یوه نوعه مساهله ده یعنې عبارت مخذوف دی معنی دا «یضمر اللفظ الدّال علی ماتجعل التّسمیة مبدأ له» یعنې مقدر به کړي هغه لفظ چې دلالت کوي په هغه فعل کوم چې ته مبدأ لپاره د بسم الله ګرځوې لکه په خوراک او څښاک کې به لفظ د اکل او شرب مقدر کوی نه فعل حقیقي کما زعمت.

**دویم جواب**: په لفظ د ما کې سنعت استخدام دی هغه داسې چې کله یې لفظ صراحتا ذکرو نو د دې نه مراد دال دی او کله چې مرجع د ضمیر وګرځي بیا ترینه مراد مدلول وي

**تفسیر بیضاوي**: (وَذَالِك اَولٰى مِنْ أَن يُّضمرَ أَبدأ لِعدمِ مايُطابِقُه وَمايَدُلُّ علَيهِ)

**ترجمه**: او دا اولی دی له هغه نه چې مقدر کوي ابتدأ (ابدأ) له وجهې دعدم مطابقت اوله وجهې دعدم قرینې نه چې دلالت پرې وکړي.

**تشریح**: په دی عبارت سره مصنف دویم او دریم رده کوي دویم رد په «العدم مایطابقه» سره کوي او دریم په «مایدل علیه» سره کوي

**دویم رد**: که چیرته ابدأ مقدر کړای شی نو داسې فعل حقیقي نشته چې مطابق له ابد سره وي یاصادق په ابدأ وي ځکه فعل حقیقي له قبیلې مقرؤ څخه دی او مقرؤ په «ابدأ» نه دی ورصادقیږي.

**دوهم رد**: که چیرته ابدأ مقدر اومحذوف کړی شي نو د مقدر لپاره خو قرینه پکارده اوپه تقدیر ابدأ دلته هیڅ قرینه نشته.

**تفسیر بیضاوي**: (اَوْ اِبتِدَائِي لِزِيَادَتِ اِضْمَارٍ فِيهِ)

**ترجمه**: او تقدیر د اقرأ اولی دی له تقدیر د «ابتدائی» څخه ځکه په دیکې زیادت اضمار دی.

**تشریح**: داعطف دی په «ابدأ» باندې یعني تقدیر د ابتدائي نه تقدیر د اقرأ اولی دی او په دې سره په دویم مذهب رد کوي.

هغه داسې که چیرته ابتدائی مقدر او متعلق کړای شي نو زیادت د اضمار راځي او قلت د اضمار اولی دی له زیادت د اضمار څخه نو تقدیر به داسې شي ابتدائی ثابت بسم الله الرحمن الرحیم.

## د مذاهبو له دلائلو څخه جوابونه

لومړي مذهب ته **جواب**: لومړي مذهب په خپله دعوه باندې دوه دلایل وړاندې کړي و.

لومړی دلیل دا و چې ابدأ (فعل عام) مقدر او متعلق دی ځکه دا د اکثرو د افعالو متعلق دی.

نو دا ورته جواب کوي چې فعل عام مقدر کول خو قاعده کلیه نه دی بلکه تقدیر د فعل عام به هلته کیږي چې قرینه دخصوص نه وي موجود ده او که چیرته قرینه دخصوص موجود ده وه نو بیا لابدي ده له تقدیر د فعل خاص نه لپاره عمل په مقتضی دقرینې د خصوص او که چیرته قرینه دخصوص موجوده نه وه بیا لابدې ده له تقدیر د فعل عام نه لپاره د عمل په مقتضی دقرینې د عموم نو دلته قرینه د خصوص موجوده ده ځکه به فعل خاص مقدر کولی شي.

**دوهم جواب**: دوهم دلیل یې داوه چې د فعل عام په تقدیر سره مطابقت له حدیث سره راځي.

دا ورته جواب کوي چې په حدیث کې له ابدأ نه مراد هغه اثبات په ابتدأ کې دی چې بسم الله په اول او ابتداء کې راوړلی شي نه تلفظ په لفظ د ابدأ.

**تفسیر بیضاوي**: (وَتَقدِيم المَعْمُولِ ههُنَا أَوقعَ كَما فى قوله (بِسمِ الله مَجْرِهَا[1]) )

**ترجمه**: او تقدیم (وړاندې والی) د معمول دلته ډیر اوقع دی لکه الله جلّ جلاله په دې قول کې فرمائلي دي په نوم د الله جلّ جلاله روانیدل د دې کشتۍ دي.

**تشریح**: دا عبارت د یو سوال مقدر جواب دی.

**سوال**: تاسو خو د بسم الله لپاره متعلق لفظ د «اقراءُ» وګرځولو نو لفظ د اقراء عامل شو او بسم الله معمول شو او قاعده چې عامل په معمول مقدم وي ځکه چې عامل مقتضي دی او معمول مقتضَی دی او مقتضي مقدّم وي په مقتضَی باندې او دلته معمول مقدّم دی چې جار او مجرور دی ؟

**جواب**: مصنّف په دې عبارت سره ورته جواب کوي چې تقدیم المعمول اوقع ههنا دلته د معمول مقدم کول زیات صحیح دي لکه په دې قول د الله تعالی کې (بسم الله مجرها) چې معمول مقدم شوی.

**سوال**: مثال دې له ممثل سره مطابق نه دی هغه داسې چې لفظ د «مجرها» یا ظرف دی او یا مصدر میمي دی که ظرف وي بیا خو عامل نه معمول دی خو که مصدر میمي شي بیا عامل دی خو تقدیم د معمول پرې نه شي راتللی ځکه ځکه مصدر په ماقبل کې عمل نشي کولی؟[2]

**جواب**: دا تمثیل په تقدیم د معمول کې نه دی یلکې په مطلق تقدیم کې دی قطع نظرله دې چې مقدم معمول دی لپاره د مؤخّر او که نه دی.

بسم الله مجرها په دې کې دوه (۲) ترکیبه دي.

**لومړی**: دا چې بسم الله حال شي له ضمیر د «ارکبوا» ځکه معنی دا اي ارکبوا متلبّسین بسم الله وقت جریانها.

---

(۱):- سورة الهود: آية ٤١

(۲) قوله: (ولا يتقدم معموله)،(اى معمول المصدر) قيل: لأنه عند العمل مؤول بحرف مصدري مع الفعل، والحرف المصدري موصول، ومعمول المصدر في الحقيقة: معمول الفعل الذي هو صلة الحرف ومعمول الصلة لا يتقدم على الموصول، كما مر في باب الموصولات. شرح الرضي على الكافية لابن الحاجب (٣/ ٤٠٦) كذا في هداية النحو لاندلسى و فوائد الضيائية للجامي في مبحث المصدر وعمله

**دویم**: دا چې بسم الله خبرمقدم شي اومجریها مبتدأ مؤخره شي نو تقدیر به داشي بسم الله اجراها.

**تفسیربیضاوي**: (وَقَوْلُهُ اِیَّاکَ نَعْبُدُ لِأَنَهُ أَهمُّ وَ أَدلُّ عَلٰی الأَخْتِصَاصِ وَ أَدْخَلُ فِی التَّعْظِیمِ وَ أَوفق لِلوجودِ فَانَّ اِسْمَه سُبحانَهُ وتعالی مُقدَّمٌ علی الْقِرآءَةِ کیفَ لَا وَقدْ جَعلَ آلة لهَا مِن حَیثُ أَنَّ الفِعْل لَایتِمُّ ولَایعتَدُّ بِهِ شرْعًا مَالمْ یَصدِر بِاسْمِهِ تعالی)

**ترجمه**: او دغسې دا قول لکه الله جل جلاله فرمایي: خاص تالره عبادت کوو ځکه اسم د الله جلّ جلاله اهم او زیات دلالت کوونکی په اختصاص او زیات دخل لري په تعظیم کې او ډېر موافق دی له وجود سره ځکه اسم د الله تعالیٰ په قرائت کې مقدم دی، څنګه به اسم د الله جلّ جلاله نه مقدم کیږي او حال دا چې اسم د الله جلّ جلاله آله ګرځولی شوې ده لپاره د قرآئت په دې حیثیت چې نه تمامیږي یو فعل او نه ورباندې شرعاً اعتبار کولی شي تر څو چې په اسم د الله جلّ جلاله سره مصدّر نشي.

**تشریح**: دلته هم تقدیم د معمول دی په عامل، اصل عبارت داسې دی نعبدک او دا تقدیم لپاره د تخصیص دی ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) فرمائی نَخُصّک بالعبادة.

قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اللهُ) د تقدیم د معمول د «اوقعیت» لپاره څلور وجهې ذکر کړي.

**لومړی**: شرافت د اسم الله تعالیٰ تقاضا د اهتمام د خپل تقدیم کوي.

**دوهم**: له وجهې د دلالت نه په اختصاص.

**دریم**: دا چې په تقدیم د اسم د الله جلّ جلاله کې زیات دخل دی تعظیم لره.

**څلورم**: دا چې تقدیم د بسم الله موافق دی له وجود د اسم د الله جلّ جلاله سره ځکه اسم د الله جلّ جلاله مقدّم دی په هر شي له دوه وجهونه اول (۱) دا چې مسمّا د دې اسم مقدم دی نو اسم به ئې هم مقدم وي دوهم (۲) دا چې اسم د ده آله دی لپاره د هر شي او آله مقدمه وي.

**سوال**: اسم د الله جلّ جلاله څنګه آله دی او آله خو تابع او غیر مقصود وي؟

**جواب**: (مِن حَيثُ أنَّ الفعْل لايتِمُّ ولَايَعتَدُّ بِهِ شرْعًا)مراد دلته له آلې نه دا نه دی چې دا تابع او غير مقصود بالذات دی بلکه مراد دلته دا دی چې فعل ترهغه پورې معتدبه شرعًا (په حسب د شرع وربانديې اعتبار نشي کيدی) نه وي ترڅو چې په بسم الله بانديې مصدّر نه شي.

**سوال**: لفظ د ادل، اتم، اوفق، او ادخل صيغې داسم تفضيل دي او داسم تفضيل استعمال خو يو په دريو طريقو سره کيږي[1] او دلته خو په يوه طريقه هم نه دی مستعمل شوی؟

**جواب**: دا قاعده مطلقه نه دی بلکې کله چې صيغه داسم تفضيل خبروي او مفضل عليه معلوم وي نو بيا د دغو دريې طريقو استعمال ته ضرورت نه وي[2].

**سوال**: قول د «ادلّ على الاختصاص» خو دلالت کوي په دې چې صورت د تأخير داسم د الله جل جلاله هم دلالت په اختصاص کوي ځکه د «اَدَلّ» معنى ده زيات دلالت کونکی نو په مخکې والي کې زيات اختصاص دی او په تأخير کې يې هم يوه نوعه اختصاص شته که څه زيات نه دی .

**جواب**: دلته اسم تفضيل په معنى داسم فاعل سره دی.

**تفسير بيضاوي**: (لِقولِهِ عليه الصّلوة والسّلام كُلّ أَمرٍ ذِى بالٍ لَايُبدأُ فِيهِ بِبسمِ الله فَهُو أَبتَر[3])

**ترجمه**: چې دا له دې قول دنبي (عَلَيهِ السَّلَام) نه معلوميږي هر ذی شان نيک کارچې په نوم دالله جل جلاله سره شروع نکړی شي هغه بې برکته وي.

---

(١):- كله په الف لام سره وي لكه زيدن الافضل ياپه اضافت سره لكه زيد افضل الناس ياپه مِنْ سره لكه زيد افضل من عمر. كما في شرح الرضي على الكافية لابن الحاجب (٣/ ٤٥٢) قال ابن الحاجب:(ويستعمل على أحد ثلاثة أوجه. مضافا، أو بمن، أو)(معرفا باللام).

(٢) ... فلو خلا عن الثلاثة، خلا عن ذكر المفضل عليه فلا يتم فهم المقصود الأهم من وضعه، وإذا علم المفضول جاز حذفه غالبا، إن كان (أفعل) خبرا، كما يقال لك: أنت أسن أم أنا، فتجيب بقولك: أنا أسن، ومنه قولنا: الله أكبر، وقوله: - إن الذي سمك السماء بنى لنا - بيتا دعائمه أعز وأطول .وقوله: - ستعلم أينا للموت أدنى ... إذا أدنيت لي الأسل الحرارا . ويجوز أن يقال في مثل هذه المواضع: ان المحذوف هو المضاف إليه، أي أكبر كل شيء، وأعز دعامة، شرح الرضي على الكافية لابن الحاجب.(٣/ ٤٥٣)

(٣):- رواه حبان انّ النّبى صلّى الله عليه وسلّم قال: كلّ امرٍ ذى بال لايبدء باسم الله الرّحمن الرّحيم فهو ابترٌ كذا فى دار قطنى ومسند احمد: ١٤ / ٣٢٩ ، رقم الحديث ٨٧١٢، واللفظ (لم يبدأ) رواه حافظ عبدالقادر الرهاروى فى اربعينه وكذا العينى فى شرحه.

**تشریح**: دا دلیل بیانوي د دې لپاره چې یو کار تر هغه د شریعت له پلوه معتبر کیدنی نشي ترڅو چې په بسم الله مصدر نه ځکه نبي علیه السلام فرمایي: هر فعل او کار به هلته بابرکته او معتبر وي چې په اسم دالله جل جلاله شروع شي.

## الباء للمصاحبة

**تفسیر بیضاوي**: (وَقِيل البَاءُ لِلْمُصاحِبَةِ وَالمَعنى مُتَبَرِّكًا بِاسم اللهِ تعالى أَقْرَأُ)

**ترجمه**: او ویلی شوي چې باء لپاره د مصاحبت دی[۱].

**تشریح**: په معنا د مصاحبت یو اعتراض وارد دي هغه دا:

**سوال**: چې باء لپاره د مصاحبت شي نو معنی به داشي «مصاحبا بسم الله اقرأ» چې زه په مصاحبت داسم د الله لولم او په دې معنا کې خو رائحه د سوء ادب دی؟

**جواب**: معنی د مصاحبت دلته متبرکا دی (متبرکا باسم الله اقرأ) یعنې په حال کون زما کې چې تبرک حاصلوم او په نوم دالله جلّ جلاله زه لولم د مصاحبت د معنی رجع قصد ذ تبرک ته کیږي.

په کلمه د «باء» کې لومړی قول د استعانت و دا دویم قول دی چې لپاره مصاحبة شي او دا قول ضعیف دی له دوه وجو څخه.

**لومړی**: دا چې د استعانت مطلب داد چې زموږ کارونه تر هغه نیمګړي دي تر څو چې شروع په نوم دالله تعالی سره ونشي او د دویم قول مطلب دادی چې د الله جل جلاله نوم یوازې د برکت په خاطر اخلم.

**دویم**: دا چې دویم قول یې په صیغې د قیل سره ذکر کړی او دا علامه د ضعف دی.

**دریم** : د قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اللَّهُ) منهج دا دی چې نو موړی اول قوي قول ذکر کوي روسته ضعیف قول ذکر کوي.

**تفسیر بیضاوي**: (وَهذِهِ وَمابَعدهُ اِلى آخِرالسُّورَةِ مَقُول على أَلْسِنَة العِبادِ لِيعْلمُوا كَيفَ يَتبرَّك بِاسمِهِ ويَحْمدعلى نِعَمِهِ وَيسْئَل مِن فَضْلِهِ)

---

(۱):- باء دځوارلسو معناګانو لپاره راځي لکه الصاق، تبعیض، ظرفیة، اومصاحبة، علامه سیبویه رحمه الله وابی دباء استعمال په الصاق کې اصل ده په نورو کې مجاز ده (معنی اللبیب لابن هشام الانصاري رحمه الله)

**ترجمه**: دا الفاظ او مابعد تر آخر د سورت فاتحې پورې په ژبه د بندګانو ویلی شي د دې لپاره
چې دوی پوهه شي چې څنګه د الله جلّ جلاله په نوم تبرک حاصلیږي او څنګه د الله جلّ جلاله حمد 7
بیانیږي په نعمتونو د الله جلّ جلاله او څنګه به د الله جلّ جلاله مهرباني څخه سوال کیدی شي.

**تشریح**: **سوال**: له بسم الله نه تر اخر د سورت پورې ټول د الله جل جلاله کلام دی او «باء» تاسو د استعانت او مصاحبت لپاره وګرځوله: نو مقصد د دې ایتونو خو دا شو چې الله تعالی په خپل نوم سره استعانت او برکت حاصلوي او خپله د خپل ځان ستاینه کوي او خپله د خپل ځان عبادت کوي ... نو آیا! دا سې معنا د الله تعالی په حق کې محاله نه ده ؟

**اول جواب**: هو دا ټول کلام الله دی خو بیان یې د عبادو په ژبه دی د بسم الله نه تر اخر د سورت پورې چې کوم بیانات دي دا په نسبت سره عبادو ته دي د دې .

**دویم جواب**: د بعضو مفسرینو په نزد لکه امام الرازي (رَحِمَهُ اللَّهُ) دلته کلمه د قولو مقدره کړې ده یعنې د الله جلّ جلاله له طرفه نه حکم دی چې داسې او وائي: قولوا بسم الله الرّحمن الرّحيم وقولوا الحمدلله الخ) نو د امر عبادتو نه دی.

(لِيَعْلَمُوا كَيْفَ يَتَبَرَّكُ بِاسْمِهِ) سره د همدې خبرې حکمت بیانوي چې بندګانو ته دا تعلیم ورکړي چې څنګه به د الله تعالی په نومونو سره برکت حاصلوي او په کومو الفاظو سره به د الله تعالی د نعمتونو شکریه ادا کوي او څنګه د الله تعالی څخه سوال کوي.

**تفسیربیضاوي**: (وَ إِنَّمَا كُسِرَتِ الباءُ ومَن حَقِّ الحُروفَ المُفْردةِ أَنْ تُفتحَ لِاخْتِصاصِهَا باللُّزُومِ الحَرفِيَّة والجرِّ)

**ترجمه**: او «باء» مکسوره کړی شوې ده او حق د حروفو مفرده و خو فتحه دی ځکه باء مکسوره کړی شوې ده چې حرف باء له حرفیت او جر سره لزوم لري.

**تشریح**: دا عبارت اصلاً د سوال مقدر جواب دی.

**سوال**: ولې د «باء» لپاره حرکت د کسرې غوره کړی شو او حال دا چې «باء» له حروف مفرده و څخه دي او حق د حروف مفرده و فتحه ده ؟

**جواب**: ځکه چې حرکت د دې حرف په اثر او عمل د دې حرف باندې دلالت وکړي لکه څنګه چې مصنّف په خپله دا وجه بيان کړې.

## حروف مباني او معاني

**سوال**: حق د حروف مفرده و فتحه ولې دی ؟

**جواب**: ځکه حروف مفرده په دوه (۲) قسمه دي (۱) حروف مباني (۲) حروف معاني ،

حروف مباني: هغه حروفو ته وائي چې د کومو په زريعه کلمه جوړيږي خو خپله کلمه نه وي لکه حروف د اسمونو لکه ز- ی- د- په زيد کې دا حروف ځان ځان له هيڅ معنی نه لري او نه د نحوي علماو کوم غرض ورپورې تړلي دی بل دا چې دا حروف د کلمې له اقسامو څخه هم نه دي او په اعراب او بناء کې هم څه حصه نه لري .

**حروف معاني**: هغه حروف دي چې په طريقې د تعداد او په نوم د عواملو ذکر کيږي لکه حروف جاره حروف ناصبه وغيره دا ټول مبني دي ځکه له دوی سره مقتضي د اعراب نشته او اصل په بنا کې سکون دی.

**سوال**: اصل په بناء کې سکون ولې دی؟

**جواب**: ځکه مبني په يو حال وي او د ساکن حال هم يو وي او په يو حال پاتې کېدو کې ثقل وي او ثقل تقاضا د خفت کوي او د خفت لقب سکون دی نو ځکه اصل په بنا کې سکون دی، د مبني زور، زير او پيښ ته اعراب نشي ويلی دا القاب دي يا دا حروف زياتره وخت په ابتداء کې راتله نو ابتداء په ساکن لازمېده نو نحوي علماو حرکت د فتحې ورته غوره کړ ځکه فتحه اخف الحرکات دی، نو باء ځکه مکسوره کړی شوه چې حروفو مباني وو څخه دی.

**سوال**: قانون خو دادی چې حروف مفرده به مفتوح وي نو خلاف قانون باء ته کسره ولې ورکړی شوه؟

**جواب**: «لاختصاصها بلزوم الحرفيّة والجرّ» ځکه باء مکسوره کړی شوه چې د دې تخصيص جر او حرفيت سره دی جر سره ئې تخصيص ځکه دی چې حرکت د باء او عمل د باء سره موافق شي

او حرفیت سره د جر تخصیص ځکه دی اصل په حروف کې سکون دي او سکون وایي عدم حرکت ته او کسره هم دقلت له وجې په منزله د عدم حرکت دی.

دغه راز حق د باء داو چې ساکنه وائی ځکه چې بناء کې ثقل وي او دا حرف دی او اصل په حروفو کې بناء دی او اصل په بناء کې سکون دی او سکون عدم حرکت ته وائي اوکسره هم په شان عدم دی له وجهې دقلت الوقوع نه ځکه کسره په افعالو، مبنیاتو اوغیر منصرف کې نه راځي.

**سوال**: تا د کسرې د باء لپاره دوه دلیلونه وویل اول د لزوم د حرفیت یعنې دا باء تقاضا د سکون کوي او سکون عدم الحرکت دی اوکسره هم پشان دعدم حرکت دی او دوهم دلیل د لزوم د جر چې موافقت د حرکت او عمل دباء راشي نو لومړی دلیل پد واو او فاء عاطفه سره منقوض دی ځکه له دوی سره هم حرفیت لازم دی خو مکسور نه دي؟

او دویم دلیل دې په کاف تشبیهي سره منقوض دی ځکه دې سره جر لازم دی خو حرف نه دی ځکه دا په معنی د «مثلُ» دی؟

**جواب**: دا دواړه لزومین (لزوم دحرفیت اولزوم د جر) دلیل واحد دي په کسرې دباء باندې هریو مستقل دلیل نه دی. په واو عاطفه اوفاء عاطفه او کاف تشبیه کې دواړه لزومین علی سبیل الاجتماع نشته په واو او فاءکې لزوم ثاني (لزوم جر) نشته اوپه کاف تشبیه کې لزوم اول( لزوم حرفیت )نشته ځکه داکله اسم وي په معنی دمثل.

**سوال**: واو قسم، تاء قسم، اولام جاره چې داخل وي په ضمیر په دیکې لزوم دحرفیت اوجر متحقق دی خو بیا هم مخالف دي له حکم نه مکسور نه دي یعنې مفتوح دي؟

**لومړی جواب**: واو قسم اوتاء قسم نائبان دي له قسمونونه(قسمي) چې مبتداء دی نو په دې کې شائبه د اسم موجود ده نو لزوم دحرفیت په کې منفي شوی دی.

**دویم جواب**: یا داسې وایو چې په دې کې لزوم ثاني نشته ځکه دا دواړه جاري کړی شوي دي لپاره دنیابت مضاف څخه نو په دې سره لزوم دجر منتفی شو.

**دریم جواب:** هغه لام چې په ضمیر داخلیږي سره له دوارو لزومینو ځکه مفتوح وي چې فرق راشي په مابین د هغه لام کې چې په ضمیر داخلیږي او په هغه لام کې چې اسم مظهر داخلیږي.

**سوال:** عکس دې ولې او نه کړ یعني لام د ضمیر به دې مکسور کړی و او هغه لام چې په اسم ظاهر داخلیږي هغه به دې مفتوح کړی و په دې سره هم فرق حاصلیده؟

**جواب:** مکسور کول د هغه لام چې په اسم ظاهر داخلیږي اولی دی له ځکه چې توافق د حرکت د عامل راشي له خپل اثر سره په اسم ظاهر کې.

**تفسیر بیضاوي:** (كَماكُسرتِ لامُ الامْر وَلَامْ الاضَافةِ دَاخِلةً على المُظهَر لِلفَصلِ بَينَهُما وبَين لامِ الإبْتدَاءِ ولامِ التَّاكِيدِ)

**ترجمه:** لکه څنګه چې مکسوره کړی شوي دی لام امر او لام اضافت چې په اسم ظاهر باندې داخل وي لپاره فرق په مابین دلام امر، لام اضافت او لام ابتداء او لام تاکید کې.

**تشریح:** لام الاضافة: له لام جاره څخه ئې تعبیر په لام اضافت سره وکړ ځکه حروف جاره ته حروف اضافت هم وائې او دا ځکه چې دا حروف کش کوي معنی د اسماء و افعالو ته او لام جاره چې داخل په مظهر وي ځکه مکسور دی چې توافق د حرکت او اثر راشي او لام امر په همدې ورحمل دی ځکه هغه عمل د جزم کوي او جزم په افعالو کې په منزله د جر ده په اسماؤ کې.

**سوال:** ولې دې هغه لام جاره چې په ضمیر داخل وي مکسور نه کړ لپاره د فرق په مابین دلام جاره او لام ابتداء کې.

**جواب:** دلته فرق حاصل دی په جوهر د مدخول علیه سره ځکه لام ابتداء په ضمیر نه داخلیږي مګر په ضمیر مرفوع باندې، لکه (لانت) او لام جاره په دې نه داخلیږي.

**تفسیر بیضاوي:** (وَ الاسْمُ عندَالبِصرِيينَ مِن الاسْماءِ الَّتِي حُذفَتْ اَعجازُهَا لِكثْرة اسْتعمَالِ)

**ترجمه:** اسم په نزد بصریینو د هغه اسماؤ څخه دی چې د کثرت استعمال په وجه ئې آخري حرف حذف شوی دی.

## (په اسم کې اختلاف)

**تشريح**: دويم او څلوم بحث: له هغو پنځو بحثونو څخه دا دويم بلاغتي او څلورم لغوي بحث دی.

په لفظ د اسم کې د بصريانو او کوفيانو اختلاف دی.

## د بصريانو مذهب

بصريان وائي اسم مشتق دی له سموٌ څخه او دا ناقص دی بيا د بصريانو په خپل منځ کې اختلاف دی بعض وائي چې دا ناقص واوي دی او بعض وائي چې ناقص يائي [1] دی وجه د اختلاف ئې په فعل ماضي کې دی چې سموت او سمّيت په واو او يا «ياء» سره دی لکه علوت او عليت.

**دليل**: ورته دا وائي چې سموٌ له وجهې د کثرت استعمال او تعاقب د حرکاتو نه تقاضا د خفت کوي او خفت خو په اول او آخر د کلمه کې وي نوله دې وجهې نه مو اول ساکن کړ او په آخر کې مو حذف وکړ په اول کې مو حذف ونه کړ ځکه چې احجاف (ابقا د کلمې په حرف واحد) راتشي نو الف وصلي مو اول کې راوړ اسم شو د دوی بيا اختلاف دی په وزن د اسم کې چې آيا دا په وزن د فِعلٌ په کسرې د فاء سره او فُعلٌ په ضمې د فاء سره دی هر يو له دی نه جمع کيږي په افعالٌ باندې لکه جزع او اجزاع او قفل او اقفال نو جمع د اسم په دواړه تقديرينو اسماء راځي.

**تفسير بيضاوي**: (وَبُنِيتْ اَوائِلَهَا على السُّكُونِ فَأَدخَل عليْهَا مُبتدأ بِها هَمزةَ الوَصْلِ لاَنّ مِن دَأبِهم أن يَّبتدِؤا بِالمُتحرِّک ويَقفوا على السَّاكِن وشَهِدلهُ تَصرِيفهُ على اسْماءِ واسَاميّ وَسُمّيٍ وسمّيتُ وَمَجئُ سمّى كهدًى لغةٌ فيهِ)

**ترجمه**: او اول د دې اسم بناء کړی شو په سکون بيا همزه د وصل داخل کړی شوه په سين باندې په دې چې ابتداء په دی همزې راشي ځکه دعربو دا طريقه دی چې په متحرک لفظ ابتداء کوي او په حرف ساکن وقف کوي او د دې خبرې لپاره د اسم گردان شاهد دی چې اسماء سامی سمی راځي سمّی په شان هدًی راتلل هم ديکې يو بل لغت دی.

---

(۱) ناقص واويه هغه اسم يا فعل دی چې په مقابله د لام کلمه کې يې واو راغلی وي. او ناقص يائي هغه اسم يافعل دی چې په مقابله د لام کلمه کې يې ياء راغلی وي كذا في ارشاد الصرف.

**تشریح**: یعنې ابتداء په ساکن راغله

## ابتداء په ساکن جائز دی که ناجائز

**من دأبهم**: په دې سره اشاره ده یو اختلاف ته هغه داچې ابتداء په ساکن جائز دی او که ناجائز دی.

**اول**: بعضې وائي چې جائز دی.

**دوهم**: بعضې وائي چې ناجائز دی.

داول مذهب لپاره دلیل دادی چې ابتداء په ساکن په لغتو دعجمو کې واقع دی لکه سپی، سرائي، سوان، ځرک، اوسکول وغیره چې نه مفتوح دی نه مکسور نه مضموم دی نو ځکه جائز دی.

ددوهم مذهب دلیل لپاره دلیل دا دی چې ځومره تتبع او استقرآء شوي دی په لغت عربي کې ابتداء په ساکن نه دی موندلی شوې او دقاضي (رَحِمَهُ اللَّهُ) په نزد اول مذهب مختار دی او جواب له دلیل د مذهب ثاني څخه دادی چې عدم وجدان مستلزم نه دی عدم وجود لره او که او منو چې عدم وجدان مستلزم دی عدم وجود لره نو عدم وجود مستلزم نه ده امتناع لره.

(**ویشهد له**) اوس د دې لپاره شاهد اوګواه پیش کوي چې لفظ د اسم له اسماء محذوفة الاعجاز څخه دی او ناقص دی یعنې له هغه اسماءو څخه دی چې آخر ئې حذف شوی وي د دوی په ځو اومورو باندې اتفاق دی[1]

(۱) یو له هغې اومورو څخه دادی چې تصغیر داسم سمّی راځي نو د اسم سُمّی اصل سمیو دی که چیرته مشتق وي وَسَمَ یَسِمُ یسمة څخه نو اصل به ئې وسما لکه څنګه چې کوفیانو ذکر کړی او تصغیر به ئې وُسَیما وو.

(۱):- تصغیر وائي: په کلمه کې داسې تغیر کولوته چې په دې سره داکلمه په شفقت ،اعزار او یا په اهانت دلالت وکړي دتصغیر لپاره قانون دادی چې دمکبّر لومړی حرف به مضموم او وبم مفتوح اوبه دریم ځای کې به یاء علامه دتصغیر راوړې که چیرته روسته له یاء دتصغیر نه یو حرف پاتې کیده هغه به متحرک کړې لکه د عبد تصغیر عبید اوکه روسته له یاء څخه دوه حرف پاتې کیده بیا به اول مکسور اوبه دویم به هم حرکت جاري کړی لکه د مضرب تصغیر مضیرب اوکه روسته ترینه درې حروف و بیا به دویم حرف ساکن کړې لکه او باقې به په خپل حال پریږدې لکه دمضارب تصغیر مضیریب یا دسلمان تصغیر سلیمان.

(۲) نه دغو امورو څخه دادی چې جمع د اسم اسماء او جمع د اسماء اسامی دی که چیر ته مشتق له وَسِمَ یَسِمُ سِمَةٌ څخه وائي نو اصل به ئې وَسْما او جمع به ئې اوسام وه او نه اوسام جمع به او اسیم وه.

(۳) له دغو امورو اتفاقیهٔ و څخه دادی چې فعل ئې سمیته دی نه وسمته که چیرته داسی وائې لکه څنګه چې کوفیان وائي نو فعل ئې وسمت و.

(۴) دادی چې مجهول به ئې په وُسّمت سره راته.

(۵) دادی چې اسم سمّی په شان د هدًّ یو لغت دی په دیکې که چیرته داسې وائې لکه کوفیان چې وائې نو واجب به وائې چې سمّی لغت رانشي ځکه په ناقص کې لغت له مثال څخه نه رائې.

**تفسیر بیضاوي**: (وَاللّٰهُ أَسمَاك سُمًى مُبارگا . . . آثرَكَ اللّٰه به ایثارگا. والقلب بعید غیر مطرد)

**ترجمه**: الله جلّ جلاله په یو برکت والا نوم سره نامداره کړی ئې یعنې الله جلّ جلاله په دې اسم ستا ذات غوره کړی لکه څنګه چې الله جلّ جلاله ستا ذات په ټولو ذواتو غوره کړی دی (نو ستا نوم ئې په نورو نومونو غوره کړی) او قلب بعیده او غیر شائع خبره دی

**تشریح**: دا هم د اسم په ناقص کیدلو باندې یو دلیل دی خو داشعر اصلا دیو سوال مقدر جواب دی.

**سوال**: دادی چې سمّی لغت په اسم کې نشته که وی نو یو نظیر او مثال ئې پیش کړه؟

**جواب**: والله اسماک سمیً مبارگا الخ په دې شعرکې سمیً په معنی د اسم دی او دا شعر د خالد تفتازاني دی او په (ایثارگا) کې تشبه دی ای مثل ایثار الله نفسک ای ذاتک.

دې ټولو دلائلو ته د کوفینو له طرفه چا جواب کړی هغه داچې تاکوم مثالونه د اسم لپاره ذکر کړل دې کې واو په ځائ د لام کلمې راوړل شوي دي چې اصل کې وسم و خو قلب او شو او د وسم نه سمو ته منقلب شوی دی او جمع ئې چې اسمآء او آسامی دی دا روسته له قلب نه راغلی یعنې اصل د اسماء اوسام دی او اصل د اسامی اوسیم دی.

په (والقلب بعید غیر مطرد) سره جواب کوي چېقلب بعیده او غیر شائع خبره دی.

**تفسير بيضاوي:** (و اِشتقاقهُ من السّموّ لانّه رفعَةٌ للمُسمّى وشعار له ومن السّمة عندالكوفيين واصله وسَم حذفت الواو وعوّضت عنها همزة الوصل ليقل اعلاله)

**ترجمه:** او اسم مشتق دی له «سمو» څخه ځکه اسم دخپل مسمّی لپاره اوچتوالی اونښانه دی او اسم په نزد دکوفيانو له سمة څخه مأخوذ دی دا اصل کښې وسَم دی بيا په وَسْم کښې واو تخفيفًا حذف شو او په عوض کښې ئې همزه وصليه راوړل شوه چې اعلال کم شي.

**تشريح:** دا اشتقاق ئې په نزد دبصريينو دی له سمو څخه او سمو په لغت کښې ارتفاع او بلندی ته وائي نو دا هم د خپل مسمّی لپاره رفعت او بلندی وي له زوايه وو دهجران څخه تر محل معتبر او عرفان ته ځکه ډيرو حقيرو شيانو ته خاص اسم نه دی وضع شوی بلکه تعبير ترينه په اسم جنس او نوعې کيږي.

او کوفيان وايي چې له سمة څخه اخستل شوی چې اصل يې وسم و نو بيا کښې تخفيف شو واو حذف شو عوض کښې همزه وصليه راوړل شوه لکه (وعد) اصل کښې (عدة) وه[1] دلته عبارت دماتن کښې (لِيَقُل) دی واصله (و-س-م) لپاره علت دی بيا نورباب کښې طردًا حذف شوه او عوض کښې ئې اصل کښې تاء راوړل شوی (سمة) شو خو واقعي خبره دبصرينو معلوميږي چې دقانون موافق ده.

**تفسير بيضاوي:** (وردّ بانّ الهمزة لم تُعهَد داخلةً على ماحُذف صدرُه فى كلامِهم)

**ترجمه:** دا مذهب (دکوفيانو) مردود دی ځکه په کلام دعربو کښې داسې همزه نه دی معلومه کړی شوی چې همزه په يو داسې اسم داخله شوې وي چې اول ئې حذف شوی وي.

**تشريح:** د کوفينو په مذهب داسې رد کوي چې ستاسو په رايه اګر که اعلال کم دی خو خلاف القياس روان يی ځکه همزه وصليه په هغه کلمه داخليږي چې حذف يې په اخر کښې شوی وي زمو په رايه اګر که اعلال زيات دی خو موافق القياس يو.

---

(۱) قانون د عدة داسې دی چې کسره د واو به مابعد ته ورکولی شي واو به حذفولی شي او په عوض کښې به يې تاء متحرکه راوړلی شي لکه وعد څخه عدة وسم څخه سمة او وصف څخه صفة جوړ شو(ارشاد الصرف : صـ ۵۰)

خو لكن دقاضي بيضاوي (رحمه الله) په دې خبره بعضې علماء رد كوي چې فعل امر خو له فعل مضارع جوړيږي له (تنصر) نه د(أنصر) امر جوړدى نو په اول دكلمه كې حذف هم شوى او عوض كې ئې همزه هم راوړل شوي فتأمل.

**تفسير بيضاوي**: (ومن لغاته سِمٌ وسُم قال بسم الله الّذى فى كلّ سورة سِمُهُ)

**ترجمه**: او بعضې د لغاتو داسم نه سِمٌ او سُم هم راځې ويلي په بركت د اسم دهغه ذات چې هرسورت كې دهغه اسم ذكردى.

**تشريح**: دا جمله مستأنفه دى دلته د اسم لغات بيانوي حاصل دا چې په اسم كې پنځه لغات دي(سِم) او (سُم)هم دغه شان د(اِسْم) او(أسم) او(سمّى) د اسم په معنى راځې او د سم په استدلال كې يې د شاعر شعر پيش كړ: بسم الله الّذى فى كلّ سورة سِمُهُ.

يعنې د هغه ذات په نوم شروع كوم د هر سورت په پيل كې د هغه نوم يعنې سم په معنا داسم دى او دا د شعر يوه تكړه دى چې يو شاعر ديو راعي صفت كوى چې نور شعردادى:

ارسل فيها بازلًا يقرمه فهو بها ينحو طريقا يعلمه

بسم الله الّذى فى كلّ سورة سمّه قد انزلت على طريق تعلمه[1]

هغه شپونكى په خپلو هغه اوښو كې اته كلن اوښ پريښوده په بركت داسم دهغه ذات چې هرسورت كې دهغه اسم ذكر كيږي نو دې اوښ نورو اوښانو ته هغه لار ورښودله چې ورته معلومه وه يعنې دا اوښانو د رمي مشري بدئې كوله.

**تفسير بيضاوي**: (فالاسم ان أُريد بِهِ اللّفظ فَغير المُسمّى لانّه يَتألّف من أصواتٍ مقّطعةٍ غَير قَارة ويختَلفُ باختلافِ الأمَمِ والأعْصارِ ويتعددُ تارةً ويَتحد أُخرى والمسمّى لَايكُونُ كَذالِك).

---

(١) حاشية شيخ زاده :١/ ٤٠ قديمي

**ترجمه**: له اسم نه که چير ته مراد لفظ وي نو اسم به غير وي له مسمّى څخه ځکه دا مرکب دی له اصواتو قطعه کړی شوونه چې غير مجتمع فى الزّات دي او اسم مختلف کيږي په اختلاف د امّتونو اوزمانو سره او اسم کله متعدد وي او کله متّحد وي مسمّى داسې نه وي.

## اسم له مسمى سره عين وي که غير

**تشريح: دريم بحث**: دلته مصنف له پنځو مباحثو څخه دريم بحث د علم کلام ذکر کوي.

اسم هغه لفظ ته وايي چې د يو مسما لپاره وضعه شوى وي او مسما هغه ذات ته وايي چې د چا لپاره اسم وضعه شوى وي ، بياپه بعضې مواردو کې اسم عين وي له مسمّى سره يعنې چې قرينه دعينيت موجود وي او په بعضې مواردو کې اسم غير وي له مسمّى نه يعنې چې قرينه دغيريت موجود وي، دعينيت لپاره مثال لکه كَتَبَ زَيدٌ دلته ليکوال زيد دی اسم د زيد نه دی او د غيريت مثال لکه كُتِبَ زَيدٌ مکتوب اسم د زيد دی ذات د زيد نه دی په داسې صورتونو کې اتفاق دی .

خو کله چې نه قرينه دعينيت وي او نه دغيريت يعنې مطلق اسم ذکر شي لکه رأيت زيداً نو په دي صورت کې اختلاف دی يو خوا معتزله دي او بل خوا بعضې اشاعره دي.

**دمعتزله و مذهب**: اومعتزله وائي چې رأيت زيداً معنى دا (رأيت لفظ زيد) يا رأيت اسمه يعنې کله چې نه قرينه دعينيت وي او نه قرينه دغيريت وي نو مراد به ترينه لفظ وي نه ذات.

**د معتزله ودلايل**: معتزله هم دخپلې دعوې لپاره درې دلائل وائي.

اول د ليل: قال الله تعالى :(قُلِ ادعُوالله اَوِدْعُوالرّحمن ايّمًا مّاتَدعوا فله الاسمآء الحُسْنى) [1] دا آيت دلالت په تعدد داسماء وو کوي نو که اسم او مسما کې عينيت راشي بيا به تعدد په مسما کې هم راشي او که مسما متعدد شي نو توحيد به باطل شي ثابته شوه چې اسم غير دی له مسما څخه.

(۱):- سورة بنى اسرآئيل : آية ۱۱۰ ،

**دوهم دليل**: كذا قال عليه الصّلوة والسّلام (انّ لله تسعة وّتسعون اسمًا) [۱] همدا رنګه ويلي شي چې بيشكه الله جلّ جلاله لره نهه نوي (۹۹) نومونه دي دلته هم تعدد په اسماء وو كې دى او ذات واحد دى نو متعدد مغاير وي له غير متعدد نه (واحد).

**دريم عقلي دليل**: همدا رنګه اسم مركب وي له اصواتو غير مجتمعه و څخه يعنې له تلفظ څخه وروسته ختم شي او اسمونه په اختلاف د امتونو او زمانو مختلف كيږي لكه په سرياني كې الله تعالى ته «لاه» او فارسي كې ورته «خدا» وايي نو كه اسم عين مسما شي اختلاف به په ذات د الله تعالى كې هم راشي ، اختلاف خو په ذات كې نشته نو ثابته شوه چې اسم غير دى له مسما څخه.

## د اشاعره و مذهب:

اشاعره (اهل السنّة) وائي رأيت زيدًا معنى دا رأيت ذاته يعنې كله چې نه قرينه دعينيت وي او نه دغيريت وي مراد به اسم نه مسمّى او ذات وي.

**داشاعره و دلائل**: اشاعره دخپلې دعوې لپاره درې دلائل وائى.

لومړى دليل: قال الله تعالى تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ [۲] مبارك د اسم درَبّ ستا دلته د بركت نسبت اسم ته شوى او مراد له اسم نه ذات دى ځكه نسبت دبركت لفظ ته نه كيږي.

**دوهم دليل**: قال الله تعالى سبّح اسْمَ رَبّك [۳] تسبيح بيان كړه د اسم د ربّ دلته هم دتسبيح نسبت اسم ته شوى او مراد ترينه ذات دى نه لفظ ځكه مبارك كيدل او له‌نقايصو پاكيدل د ذات صفت دى نه د لفظ.

**دريم دليل**: يوه فقهي مسئله ده هغه دا چې يو سړى خپلې ښځې ته چې زينب نوميږي او وائي (انّ زينب طالق) زينب طلاقه ده نو دلته هم طلاق په ذات د زينب واقع كيږي نه په لفظ.

---

(۱):- حدثنا عمرو الناقد و زهير بن حرب و ابن ابي عمر جميعا عن سفيان و اللفظ لعمرو حدثناسفيان بن عينية عن ابي الزّناد عن الاعرج عن ابي هريرة رضى الله عنه عن النّبى صلّى الله عليه وسلّم قال لله تسعة وّتسعون اسما من حفظها دخل الجنّة وانّ الله وترٌ يحب الوتر وفى رواية ابن ابي عمر من احصاها. رواه مسلم : ۸ / ۶۳ ، رقم الحديث ۲۶۷۷ ، والبخارى مرقم . . .

(۲):- سورة الرّحمن: آية ۷۸ ،

(۳):- سورة الاعلى: آية ۱ ،

**تفسير بيضاوي**: (و إنْ أُرِيد بهِ ذَاتُ الشئِ فهُوَ مسمّى لَكنّه لمْ يشْتَهِر بهذ المعنى)

**ترجمه**: او که اسم سره ذات د شي مراد کړی شي نو اسم عين مسمى دی لکن اسم نو اسم په دې معنى کې نه دی مشهور: يعنې اکثر اسم غير د مسمّى ګڼلی شي.

**تشريح**: خو دقاضي بيضاوي رحمه الله په نزد د معتزله مذهب غوره ښکاري ځکه اشاعره وو ته جوابونه کوي.

**تفسير بيضاوي**: (وقوله تعالى تبارك اسم ربّك[1] و سبّح اسم ربّك[2] المرادُ به اللفْظُ لانّهُ كمَايجِبُ تَنزِيه ذَاتِهِ سُبحانَه وتعالى وَصفَاتِه عنْ النّقائصِ يجبُ تنزِيهُ الفاظِ المَوضُوعةِ لهَا عن الرَّفثِ وسُوءِ الادبِ او الأسم فِيه مُقحَمٌ)

**ترجمه**: دا قول د الله جل جلاله چې تبارک اسم ربک او وسبح اسم ربک دی مراد له اسم نه لفظ دی ځکه لکه څنګه چې دالله جلّ جلاله ذات او صفاتو پاکي د نقائصو څخه واجب ده نو دغسي دهغو الفاظو چې ددغه ذات لپاره وضع شوي دهغې الفاظو هم دفحش اودسوء ادب نه پاکي واجب ده او يا دلته (آيت) کې اسم زائد دی..

**تشريح**: دا لومړی جواب دی له دليل دبعضې اشاعره وونه دوی په دليل کې ويلې وو چې نسبت دبرکت اوتسبيح ذات ته کيږي اسم ته نه کيږي دا جواب کوي چې لکه څنګه ئې چې نسبت ذات ته کيږي دغسې ئي اسم ته هم کيږي. او همدارنګه اشاعره وو په بل دليل کې ويلې وه چې طلاق په ذات د زينب واقع دی نه په اسم دا جواب کوي انّ زينب طالق معنى د المرأة المسمّآة باسم زينب طالق هغه ښځه چې مسمّى ده په اسم د زينب.

(الأسم فِيه مُقحَمٌ) سره دويم جواب کوي چې دا اسم په (سبّح الله ربّک) کې زائد دی ای سبّح ربّک.

**تفسير بيضاوي**: (كمَا في قولِ الشَّاعرِ إلى الحَول ثُمّ اسمُ السّلامِ عَلَيكمَا)

---

(۱) سورة الرحمن اية: ۷۸

(۲) سورة الاعلى اية:۱

**ترجمه**: لکه په دې قول د شاعر کې چې اسم زائد واقع شوي دی «یو کال پورې مې وژړل بیا د هغې نه روسته دې په تاسو سلام وي.

**تشریح**: دا د لبید(۱) شاعر شعر دی چې پوره شعر دادی:

الى الحول ثمّ اسم السّلام عليكما ...... ومن يبك حولا كاملا فقد اعتذر

پوره یو کال پورې مې وژړل بیا د هغې نه روسته دې په تاسو سلام وي ځوک چې یو کال پورې وژاړي نو عذر ورته ثابت شي نو بیا هم هغه معذور شي او هغه ځای نه تللی شي نو دې شعر کې هم کلمه د اسم زائد دی.

**تفسیربیضاوي**: (وَ انْ اُرِيْدَ به الصفَةُ كَما هوَ رأئُ الشيخ اَبى الحسنِ الأشعرى(۲) اِنقَسمَ انقِسامُ الصفَة عِندهُ اِلى ما هو نَفسُ المُسمّى الى مَا هوَ غيْرُهُ و اِلى مَاليس هو وَلاغَيره).

**ترجمه**: اوکه مراد له اسم نه صفت وي یعنې اسم صفتي وي لکه دا رأیه د امام ابی الحسن اشعري رحمه الله دی بیا دا اسماء به پشان دانقسام دصفت منقسم کیږي عین مسمّی ته اوغیر مسمّی ته او هغه قسم ته چې نه عین ذات د مسمّي وي اونه غیرذات د مسمّی وي.

**تشریح**: قاضي بیضاوي رحمه الله اوس محاکمه کوي په مابین دبعض اشاعره و او معتزله و کې هغه داچې دا نزاع لفظي دی ځکه د اسم کله لفظ مراد وي او کله ترینه ذات مراد وي او کله ترینه صفت مراد وي خو داسم نه چې کله لفظ مراد وي هلته اسم غیر دې د مسمّی نه او له اسم نه چې کله ذات مراد وي هلته اسم عین دی له مسمّی سره او له اسم نه چې کله صفت مراد وي نو دا

---

(۱) هو ابو عقيل لبيد بن ربيعة بن مالک العامر من قبيلة هوزان ولد في سنة (۵٦۰)من الميلاد وتوفي في سنة (٦٦١) من الميلادي و(٤١) من الهجرة ادرک الجاهلية و وفد على النبي صلى الله عليه وسلم مسلماً ولذا يعد من الصحابة و من المؤلفة القلوب (بوابة الصحابة وبوابة الشعر).

(۲) الأشعري ( ۲٦۰ - ۳۲٤ هـ) هو علي بن إسماعيل بن أبي بشر إسحاق الأشعري ، أبو الحسن . ولد بالبصرة وسكن بغداد إمام المتكلمين ومشارك في بعض العلوم ، كان شافعي المذهب وتفقه على أبي إسحاق المروزي . رد على الملحدة والمعتزلة والشيعة والجهمية والخوارج وغيرهم . من تصانيفه : " التبيين عن أصول الدين " ، و " خلق الأعمال " ، " كتاب الاجتهاد "
طبقات الشافعية لابن السبكي ۲ / ۲٤۵ ، وهدية العارفين ، ومعجم المؤلفين ۷ / ۳۵ ]

صفت به خالي نه وي یا به صفت حقیقي وي یا به صفت اضافي وي که اضافي وي نو د اهم غیر ذي لکه خلق او که صفت حقیقي وي نو د اهل سنتو په نزد نه عین دی او نه غیر له عین دي او د فلاسفه وو په نزد عین دی لکه وجود.

**تفسیر بیضاوي:** (وَاِنَّمَا قال بِسم اللهِ ولَمْ يَقُلْ باللهِ لِاَنَّ التَبرُّكَ والاستِعانَة بِذكرِ اسمِهِ اَو لِلْفَرقِ بَين اليَمِين والتَّيمُن)

**ترجمه:** او بسم الله ئې وویلې او بالله ئې ونه ویلې ځکه چې تبرّک او استعانت په ذکرکولو د نوم د الله جلّ جلاله سره حاصلیږي اویا لپاره د فرق په مابین د یمین او تیمن.

**تشریح:** دا عبارت جواب د سوال مقدر دی هغه دا چې:

**سوال:** تأخو مخکې وویل «کلّ امرٍ ذی بالٍ لم یبدأ فیه باسم الله فهو ابتر» او تا پخپله ابتداء په بسم اوکړه پکار دی چې ابتداء دې په لفظ د الله کړې وائې او «بالله» دې ویلی وای.

**جواب:** په دوه طریقو سره قاضي بیضاوي رحمه الله د دې سوال جواب ذکر کړی دی.

**اوله طریقه د جواب:**

(لِاَنَّ التَّبرُّكَ والاستِعانَة) ځکه ئې بالله ونه ویلې چې تبرک په لفظ او اسم سره حاصلیږي او بل دا بالله مو ویلی وای نو د الله تعالی ذات ډېر عظیم الشان دی له داسې ذات نه بلا واسطه اسعانت غوښتل لوی جرئت دی نو ځکه مو لفظ د اسم ورته واسطه کړ او «باء» مو په اسم داخله کړه.

**دوهمه طریقه د جواب:**

(أَو لِلْفَرقِ بَين اليَمِين والتَّيمُن) کلمه د باء په دوه قسمه ده (۱) قسمیه (۲) تیمنیة.

دلته دا «باء» قسمیه نه دی بلکې تیمنیه دی نو ځکه ئې بالله ونه ویلې چې فرق راشي په مابین د یمین او تیمن کې ځکه باء قسمیه یوازې په اسم د باري تعالی داخلیږي (بالله ویل کیږي) او دلته په اسم د باري تعالی نه دی داخله نو معلومه شوه چې دا قسمیه نه دی نو که په بالله ئې شروع کړې وائی نو د یمین او تیمن فرق به نه و شوی.

**تفسیربیضاوي**: (ولَم يَكتبِ الالفَ على مَا هُو وضعُ الخطِّ لِلكثرةِ الاِستعْمالِ وطَوَلَتِ الباءُ عِوضًا عنهَا).

**ترجمه**: او الف ونه لیکې شو په هغه طریقه کومه چې دخط اوکتاب دی له وجهې دکثرت استعمال نه او باء اوږده کړی شوی دوجهې دعوض دهمزې نه.

**تشریح پنځم بحث**: له دې ځای څخه د رسم الخط بحث شروع کوي په همزه وصلیة کې د حروفو قانون دا دی چې تثبت فی الابتداء لفظا وکتابةً وتسقط فی الدرج لفظا لاکتابة.

یعنې همزه وصلیة په ابتداء کې په لفظ اوکتابت دواړو کې ثابته وي او په درج (مابین) کې په کتابت کې وي او په تلفظ کې نه وي[1].

**سوال**: دا قانون صحیح دی چې همزه وصلیة په درج کې ساقطیږي خو له کتابت خو نه ساقطیږي لکه «اقرأ باسم ربّک الّذی خلق» او دلته په بسم الله کې خو لفظا وکتابتًا دواړه ساقطه شوې ده.

**جواب**: قاضي بیضاوي رحمه الله د دې جواب په دې عبارت سره ورکړ (ولم یکتب الالف على الخ) چې دا دکثرت استعمال له وجهې ساقط شو ؛ ځکه کثرت استعمال تقاضا دخفت کوي اوخفت په سقوط کې دی.

**سوال**: ته وائې چې دلته همزه وصلیه د کثرت استعمال له وجهې حذفه شوې نو په حذف دهمزې قرینه څه دی؟

**جواب**: په حذف دهمزې قرینه هغه طوالت دباء دی چې په بسم الله کې دا باء لږ اوږده لیکلی شې نو دغه اوږدوالی په حذف د همزې قرینه او دلالت کوي ځکه به عمر بن عبدالعزیز رحمه الله

---

(۱) همزه په دوه قسمه ده وصلیة او قطعیة حمزه قطعیة بیا دیارلس قسمه دی (۱) همزه د باب افتعال لکه اکرم (۲) همزه د واحد متکلم لکه اضرب (۳) همزه د اسم تفضیل لکه اضرَب (٤) همزه د جمعې لکه اصحاب (٥) همزه د اعلامو لکه اسماعیل او ابراهیم (٦) همزه د بناء لکه إنّ ، أنّ او انت (۷) همزه دفعل تعجب لکه ما اضربه (۸) همزه د استفهام لکه أ أنذرتهم (۹) همزه د ندا لکه أ عبد الله (۱۰) همزه د صفت مشبه لکه احمر او اسود (۱۱) همزه د لفظ د البتة (۱۲) همزه د لفظ دجلال چې کله پرې حرف ندا داخله شي لکه یا الله (۱۳) همزه د اسماء جوامدو اکثراً لکه ابریق

خپلو كاتبانو ته ويل باء اوږده كړئ او سين ښه ښكاره كړئ يعني د سين غاښونه ازاد ازاد وليكئ او ميم ښه مدور (گرد) كړئ د كتاب الله د تعظيم په خاطر.[1]

## (بحث په اسم دالله جلّ جلاله كې)

**تفسيربيضاوي**: (وَ الله أَصلُه الٰهٌ)

**ترجمه**: كلمه د جلال (الله) په اصل كې الٰهٌ وو.

**تشريح**: له دې ځای څخه په لفظ د جلال كې بحث كوي لكه څنګه چې ذات د الله جلّ جلاله مخير د عقلاؤ دی دغه شان اسم د الله مخير د بلغاؤ دی نو په لفظ د الله كې اختلاف دی اول اختلاف په دې كې دی چې دا لفظ عربي دی كه عجمي دی كه عجمي شي بيا په دې كې دوه مذهبه دي چې دا سراياني دی اوكه عبراني دی اوكه عربي شي بياپه دې كې درې مذهبه دي چې دا اسم مشتق دی كه علم دی او كه صفت مشتقه دی.

## (وجه د حصر)

دا لفظ د جلال (الله) به خالي نه وي يابه عربي وي يابه سرياني وي كه عربي وي نو دا اسم مشتق دی كه علم دی او كه صفت مشتقه دی نو قاضي بيضاوي خو اول دغه قول ذكر كړي دی چې عربي دی او كه مشتق دی.

اوس اسم مشتق څه ته وائي مونږ په كافيه كې وايو الكلمة وضع لمعنى مفردٍ و هو اسم و فعل وحرف اسم ئې په مقابله د فعل او د حرف كې ذكر كه بيا د اسم تعريف دا دی مَادلّ على معنى فى نفسها غيرمقترن باحد الازمنة الثّلاثة.

---

(١) قوله: وطولت الباء عوضًا عنها وعن عمر بن عبد العزيز أنه قال لكاتبه طول الباء وأظهر السينات وطول الميم وجه أمره بتحسين هذه الحروف تفخيم الاسم قال بعض الأفاضل من شراح الكَشَّاف وفي السينات نظر لأنه ليس في بسم الله سينات إلا أن يحصل عَلَ بسم الله المتعدد وحِينَئِذٍ يجب أن يقول طول الباءات ودور الميمات فالأصح السنات جمع سَنَة وهي النسخ المعتبرة السينات بالياء فيجب أن يرجع إلى التَجَاز مُبَالَغَة بأن يحمل كل سنة من أسنان السين بمنزلة سينة في الظهور فالسينات أصح رواية والسينات أصح دراية وصاحب الكشف جعل السينات أصح رواية ودراية من السنات بدلها قال جعل كل سنة سينة تجوز لإفادة المُبَالَغَة في الإظهار كأنه يقول اجعل كل سنة بمنزلة سينة . حاشيتا القونوي وابن التمجيد على البيضاوي (ط العلمية) (١/ ١١٤) كذا في حاشية الشهاب للخفاجي و حاشية شيخ زاده :١/١٤ حقانية

اسم دیته وائي چې دلالت کوي په معنی فی نفسها باندې او دا معنی به مقترینه نه وي تر یو د
ازمنه ثلاثه وو پورې اوس دغه معنی به خالي نه وي یابه نفس تصور د دې معنی مانع د شرکت 8
کثیرینو نه وي یا به نه وي که مانع وي داعلم شو اوکه مانع نه وي نو دابه خالي نه وي یابه ترینه
رافهمیږي نفس ماهیت من حیث هی هی اویابه ترینه رافهمیږي ماهیت موصوف بصفةٍ نو اول اسم
جنس دي او دوهم (ماهیت موصوف بصفة) اسم مشتق دي له دې نه معلومیږي چې اسم مشتق په
مقابل د علم او اسم جنس کې راځي خو لکن د مصنف مراد دا نه دی بلکې دلته له مشتق نه هغه
اسم مراد دی چې له یو اصل څخه اخستل شوی وي هغه بیا ثفت وي او اسم وي یا علم وي.

**شیخ زاده**: له دې وجهې نه د اسم مشتق داسې تعریف کوي مَادلّ علی ذاة مبهمة باعتبار
بعضی معانیه و اوصافه :

**ترجمه**: اسم مشتق: هغه اسم دی چې دلالت کوي په ذات مبهم په اعتبار د بعضو معانیو او
اوصافو.

## په لفظ دالله کې مذاهب

په اسم د الله کې چې مشتق شي څلور مذهبه دي قاضي بیضاوي رحمهٔ الله په دې ترتیب ذکر کړی.

**اول** :په دې عبارت سره و الله اصله اله.

**دوهم**: په دې عبارت سره وقیل انّه علم لذاته المخصوص.

**دریم**: په دې عبارت سره ذکر کوي و الاظهر انّه وصف فی اصله.

**څلورم**: په دې عبارت سره وقیل انّه لاها بالسّریانیة.

**تفسیر بیضاوي**: (فَحُذفتِ الهَمزةُ وَعُوّضَ عَنها الألفُ وَاللّامُ)

**ترجمه**: همزه حذف کړی شوه اوعوض کې ترینه الف اولام راوړلی شو.

**تشریح**: همزه حذف کړی شوه اوعوض کې ترینه الف او لام راوړلی شو بیا یو لام په بل لام کې
مدغم کړی شو نو «الله» شو ځکه قانون دی چې له یو جنس نه دوه حروف راشي یو په بل کې مدغم
کیږي علامه نسفي او زمحشري رحمهما الله ویلي چې د لفظ دالله جلّ جلاله لره دوه قانونه دی یو

اصل قریب او بل اصل بعید (۱) اصل قریب دا دی چې دا لفظ د الله جلّ جلاله مهموز الفاء دی او په اصل کې اَلِاٰله و همزه حذف شوه او یو لام په بل لام کې مدغم کړی شو (۲) اصل بعید دا دی چې کوم قاضي بیضاوي رحمه الله په دې عبارت سره (والله اصله اله فحذفت الهمزة الخ) ذکر کړ.

**سوال**: محذوف خو پشان د مذکوروي له ده نه خو په عوض کې هیڅ شی نشي راوړلی ؟

**جواب**: محذوف پشان د مذکور وي خو هغه محذوف چې محذوف بعلةٍ (په علت سره) وي او دې محذوف ته بیا محذوف قیاسًا وائي او دلته خلاف القیاس حذف شوی دی.

**تفسیر بیضاوي**: (ولِذٰلِك قِيلَ ياالله بِالقطعِ الَّا انّه مُختصٌّ بالمعْبودِ بالحقِّ وَ الِالهُ فى الاصلِ لكُلِّ معبودٍ ثُمّ غُلب على المعبود بالحقِّ) .

**ترجمه**: او له دې وجهې ویل کیږي یاالله په قطعیت سره لکن دا اله معبود بالحق پورې خاص دی اِلٰهْ په اصل کې په هرمعبود واقع (ویلی شي) دی بیا په معبود بالحق باندې غلبه ورکړی شوه.

**تشریح**: له دې وجهې نه چې الف لام عوض دی له حرف اصلي نه او الف جزء دی له همزې نه او همزه اصلي وه نو عوض به ئې هم اصلي وي خلاصه دا چې الف لام عوض له همزې څخه دی او همزه جزء د کلمې وه نو الف لام هم جزء د کلمې څخه شو نو له دې وجهې نه په لفظ د الله کې همزه قطعي وي په حالت د ندا کې به ئې نه حذف کوې څکه که په حالت د ندا کې حذف کړی شي د یاالله په ځای یاللّٰه وویل شي نو دا وهم پیدا کیږي چې دا همزه د هغه الف لام دی کوم چې د تعریف لپاره دی او جزء د کلمې څخه دی او که الف لام زائد دی او بل دا چې الف لام تعریفي خو له ندا سره نه جمع کیږي او دا جمع شوی.

**سوال**: دا دلیل خو دا تقاضا کوي چې همزه د لفظ د الله قطعي دی مطلقا په حالت د ندا او غیر ندا دواړو کې به په درج کې اصلا نه ساقطیږي او حال دا دی چې په غیر ندا کې په درج کې خو ساقطیږي لکه بسم الله.

**جواب**: امام خلیل رحمه الله فرمائي اصل دا همزه د قطع دی څکه دا راځي لپاره د عوض نه لپاره د تعریف مگر دومره ده چې دا په درج کې په غیر النداء کې ساقطیږي طلبًا لخفة له وجهې د کثرت استعمال نه د لفظ د جلال او په نداِ کې بیا څکه نه ساقطیږي چې هلته تو هم پیدا کیږي کما مره.

(الا انه يختص): دې عبارت سره دفع ديو سوال کوي.

**سوال:** هرکله چې لفظ د جلال په اصل کې اِلٰهٌ شو نو اله خو اسم جنس دی اطلاق یې په هرمعبود کیږي حق وي اوکه باطل وي لکه داقول د الله جلّ جلاله (أنظر اِلى اِلٰهِك الّذى ظَلْتَ عليه عاكفا)[1]

اوهمدارنګه دا قول (ارأيت من اتّخذ اِلٰهَهُ هَواهُ)[2] نو لفظ د جلال به همدارنګه وي او حال دا چې لفظ دالله جلّ جلاله اسم مشتق دی په غير الله ئې اطلاق نه کيږي.

**جواب:** په «الّا انّه يختصّ» سره جواب کوي د اِلٰهٌ نکرې اطلاق په هرمعبود کيده خو هرکله چې الف لام عهدي پرې داخل شو نو اوګرځيد علَم په غلبې سره لپاره دمعبود برحق.

**سوال:** دلته په عبارت د ماتن کې تدافع ده هغه دا (و الا اله فى الاصل لكُلِّ معبودٍ) داعبارت په دې دلالت کوي چې دا اسم صفت دی ځکه معبود له قبيلې د اوصافو څخه دی او روسته وائي چې غلبه ئي ورکړه اوغلبه خو داسم راځي نه د صفت نو ځای کې وايي صفت دی بل ځای وايي اسم دی ؟

**جواب:** مراد له (و الا اله فى الاصل لكُلِّ معبودٍ) څخه دانه دی چې دا په معنا د معبود دی بلکې مطلب دا دی (انه اسم يقع على ذوات المعبود مطلقا) نو عبارت داسې شو (و الا اله فى اصل اسم).

**تفسيربيضاوي:** (و اِشْتقاقُه مِن أَلَهَ أُلهة وأُلوّهة وَالوُهية بمعنى عَبَدَ منه تَألّه واِستَأله)

**ترجمه:** اسم د الله د اله يَألَه اِلهًا و الهة و الوهية نه مشتق دی په معنی دعبادت سره او له دې څخه تَألّه واِستَأله (له مزيد و څخه) هم راځي.

---

(۱) سورت طه اية: ۹۷

(۲) سورت الفرقان اية:۴۳

**تشريح**: دلته په لفظ د الله د اشتقاق بحث کوي د دې په مشتق منه کې مصنف قاضي بيضاوي رحمه الله د علماؤ اختلاف ذکر کوي په دې باب کې اووه (٧) اقوال بيانوي او وجه په آخر د دې شرح کې راشي ان شاءالله.

## په لفظ د جلال کې اووه اقوال

لومړی قول: (أَلَهَ أَلهة وأُلوَهة وَالوُهية) څخه مأخوذ دی له باب د فتح څخه په معنا د عبادت او له باب تفعل څخه تألّه را ځي په معنا د غلام پشان کېدل (صارکالعبد) او باب استفعال څخه استألّه هم راځي په معنا د (صار مشابها للعبد)

**تفسير بيضاوي**: (وَ قِيْلَ مِن اَلِهِ اذَا تحَيَّرَ لاَنّ العُقولَ تَتحَيَّرُ فى مَعرفتهِ)

**ترجمه**: اوچا ويلي دي چې اَلَهَ نه مأخوذ دی چې کله څوک حيران شي ځکه د الله جلّ جلاله په معرفت کې هم ټول عقلونه حيران دي.

**تشريح**: دويم قول : دا آلَهَ څخه مأخوذ دی مهموزالفاء دی له باب سَمِعَ يسمع څخه په معنا د متحير کيدلو دی د لکه ويلی شي «النّاس أَلهون له» خلک الله جلّ جلاله ته حيران دی په معنی دمألوه سره ای الله مألوه للنّاس معرفت د الله منشاء د حيرانتيا دخلکو دی.

**تفسيربيضاوي**: (اَو مِن اَلِهْتُ الى فُلانٍ اى سکنْتُ الَيْه لانّ القُلوب تَطمَئِنُّ بذِکْره وَالأَرواحُ تَسکنُ الى معْرفتِهِ)

**ترجمه**: اويا د اَلِهتُ الی فلان محاورې نه مأخوذ دی چې کله ته په دغه فلان ارام حاصل کړې ځکه د الله جلّ جلاله په ذکر هم زړو نو ته ارام حاصليږي او ارواح د انسان هم په معرفت د الله جلّ جلاله ارام حاصلوي.

**تشريح**: دريم قول: دا د (اَلِهت الی فلان) څخه مأخوذ په معنا د (ماسکون او اطمنان حاصل کړو په فلاني نو الله ته هم ځکه الله وايي چې د ده په ذکر سره زړونه سکون حاصلوي.

**تفسير بيضاوي**: (اَومِن أَلَهَ اذَا فزَعَ مِن امر نزَلَ عليه وَ اَلَهَهٗ غيره أجارهُ اذِ العائذُ يفْزِعُ اليهِ وَ هو يجيرُه حقِيْقة اَو بزَعْمِه)

**ترجمه**: دا یا مأخوذ دی اَلِه نه چې کله یو سړی وویرېږي له هغه امر نه چې نازل شوی وي په ده باندې اویا دا محاوره چې فلاني غیر سره پناه اونجات حاصل کړ ځکه پناه نیوونکی پناه په طرف دالله جلّ جلاله کې نیسي او الله جلّ جلاله حقیقي پناو ورکوي اویا په ګمان دهغه چاچې د الهه وو.باطله و عقیده لري.

**تشریح**: څلورم قول: دا مأخوذ دی له أله څخه په معنا د نازل شوي مصیبت نه وریدل مخکې اَلِهَ ذکر شو هغه په معنی دتحیر سره وو دا اَلِه بله معنی لري «اذا فزع من امر نزل علیه» اودغسې لفظ د آلهة استعمالیږي په معنا د ویرول شوي انسان ته پناه ورکول نو الله ته هم ځکه الله وایی چې د ویرول شویو انسانانو پټن ځای دی.

**تفسیربیضاوي**:(اَو مِن أَلَه الفَصیْلُ اذَا وَلَع بِامّهِ اذِ العباد مُولِعونَ بالتّضرعِ اِلیهِ فی الشَّدائد).

**ترجمه**: اویا مأخوذ دی له دې محاورې دعربونه چې اَلِهَ الفصیل الی امّه) جونګی (د اوښ بچی) خپلې مورته مشتاق اوحریص شو کله چې مشتاق شي تي رودني دخپلي مور ته ځکه بندګان هم مشتاق اوحریص وي په عاجزی سره الله جلّ جلاله ته په تکالیفو کې.

**تشریح**: پنځم قول: دا مشتق دی له اَلِهَ الفصیل الی امّه څخه دا هغه وخت ویلی شي چې د بچي تي رودلو ته ضرورت او ډېر مستاق وي نو مور پسې ورځي او ورپورې نښلي نو الله جلّ جلاله په معنی د مألوه للنّاس دی ای محروص للنّاس.

**تفسیر بیضاوي**: (اَو مِن وَلَهَ اذا تحیّر وتخبّط عقلُه وکَانَ اَصْلهُ وِلاَہٌ فَقُلِبَت الْوَاوُ همزةً لِاستثقالِ الکَسرَةِ عَلَیها اسْتثقال الضمَّةِ فی وُجُوهٍ فَقیلَ اَلاهُ کأِعَاءٍ و اِشَاحٍ وَیَرُدُّهُ الجمع عَلی آلِهَةٍ دون اَوْلِهَةٍ).

**ترجمه**: یا دا اسم دجلال وَلَه یلهُ نه مأخوذ دی معنی داچې کله څوک حیران شي اوعقل ئې مضطرب شي او لفظ د الله په اصل کې ولاه وو نو دکسری دثقل د وجهې نه دا واو په همزې سره منقلب شو پشان دثقل دضمی په واو د «وُجوهٌ» کې(لکه په «وجوه» کې چې واو نه همزه

جوړېږي)اجوه هم استعمال شوی دی او ويلی شوی دي: الاه په شان د اعاء او اشاح دی چې په اصل کې وعاء او وشاح وو (نو واو په همزه بدل شوی دی) او دا قول رد کوي چې د اله جمع آلِهَة راځي نه اولهة.[1].

**تشريح شپږم قول:** لفظ د جلال (الله) مشتق دی له «وله» څخه مثال واوي دی په معنا د حيرانيدلو او مخبوط العقل نو الله ته هم الله ځکه وايي چې په معرفت کې عقول حيران او مخبوط دي خو له دويم قول سره يې فرق دادی «وکان اصله» سره په دويم او شپږم قول کې فرق بيانوي چې هلته همزه په (اله) کې اصليه وه او دلته له واو نه بدل دی لکه لفظ د الله په اصل کې وِلَاه واو حرف علت ضعيف و کسره وراندې ثقيله وه لکه څنګه چې په «وُجوهٌ» کې پرې ضمه ثقيله وه نو واو حذف شو لَاهَ پاتې شو نو الف لام د واو نه عوض راغی نو الِلاه شو بيا لام په لام کې مدغم شو الله شو.

خو په دې قول مصنف رد کوي هغه داسې که «أله» له «وله» مشتق وای نو حمع تکسيره به اولهه راتلل پکار و او حال دا چې د «اله» جمع آلهة راځي ځکه حمع تکسيره کلمه خپل اصل ته رد کوي نو معلومه شوه چې له «وله» څخه مشتق نه دی.

**تفسيربيضاوي:** (و قيل اصْلهُ لَاهَ مصدر لَاهَ يَلِيهُ لَيَهًا ولاهَا اذَاْ اِحتَجَب وَ ارتَفَعَ لِاَنّه سبحانهُ وتعالى مَحْجُوب عَن اِدراكِ الاَبْصارِ وَمُرتفعٌ علیٰ كُلِّ شيءٍ ومِمَّا لَايلِيقُ به يَشهد لهُ قول الشَّاعر

كحِلفة من ابِى رَباح ..... يسمعها لاهه الكُبار)

**ترجمه:** اوويلی شويدي چې لفظ د الله جلّ جلاله په اصل کې (لاه يليه) وو کله چې يو شئ پټ وي او له عقل نه پورته وي (الله محتجب عن رؤيةالابصار ومرتفع عن ادراک العقول) ځکه الله جلّ جلاله د ادراک د ابصارو نه محجوب دی هيڅوک يې ليدلی نشي او د هرشي څخه مرتفع دی

---

(١) د اشاح قانون دا سې دی چې واو په همزې سره بدلول واجب دي (١)شرط واو به مضموم يا مكسور وي احترازي مثال وَعد (٢)شرط واو نه به روسته تاء متحركه راغلي وي احترازي مثال وعدتْ (٣) شرط تاء به د باب افتعال نه وي احترازي مثال ادتغم اتفاقي مثال له وِشاح څخه اشاح شو

اوله هغه شيانو نه هم اوچت دی چې الله جلّ جلاله پورې لائق نه وي د دې لپاره دا قول د شاعر دليل دی (چې دا اجوف يائي دی) لکه قسم کول د ابی رباح چې هغه قسم لوی خدای اوريده.

**تشريح اووم قول**: دا چې دا مشتق دی له (لَاهَ يَلِيهُ لَيهًا ولاهًا) څخه اجوف يائي دی د دې بيا دوه معناگانې دي لومړۍ معنا يې پټېدل او دويمه معنا يې پورته کيدل نو ا «له» به په اصل کې «لاه» ماضي ئې لاه او مضارع ئې يليه راځي او مصدر ئې ليها اولاه راځي نو الف لام تعريفي وريانديې داخل شو نو الالاه شو بيا لام په لام کې مدغم شو الله شو او الله تعالى ته ځکه محتجب وايي چې د خلکو له ستر گو پټ دی او مرتفع ورته ځکه وايې چې له هر شي او چت او له هر نقصان پاک دی.

د ابي رباح شعر يې د همدې اووم قول لپاره په تائيد کې پيش کړ چې په شعر کې هم لفظ د «لاه» استعمال شوی دی.

تر دې ځايه مصنف اووه اقواله په لفظ د جلال کې بيان کړل چې دا اسم مشتق دی.

## (وجه د حصر او خلاصة المذاهب)

دا اسم ذاتي د جلال چې مشتق شي دا به له درې حالاتو خالي نه وي يا به اجوف وي يا به مثال وي يا به مهموز وي که اجوف وي نو د دې اصل بيا (لاه) دی دا قول بيضاوي څلورم ذکر کړی او که مثال وي نو د دې مشتق منه بيا (وَلِه) دي او دا قول بيضاوي اووم ذکر کړی دی او که مهموز وي بيا پکې دوه صورتونه دي يا به له باب د فتح يفتح څخه وي او يا به د سمع يسمع څخه او په دواړو صورتونو کې معنى معبود حقيقي دی خو چې باب د فتح نه راشي بيا دا لومړی قول دی او که دباب د سمع نه راشي بيا پکې څلور (۴) قوله دي:

(۱) يا اَلِهَ نه مأخوذ دی په معنى د تحير او دا قول ئې دوهم ذکر کړی.

(۲) يا د الهت الى فلانى محاوري نه مأخوذ دی دا قول ئې دريم ذکر کړی.

(۳) يا دا په معنى د فزع سره راځي او دا قول ئې پنځم ذکر کړی.

(۴) یا دا مأخوذ دی له دې محاورې دعربونه ای الفصیل الی امّه دائی شپږم ذکر کړی نو خلاصه داشوه چې که په اصل کې اِلَهٌ شي نو په مشتق منه کې ئې دا اوه اقواله دي او که په اصل کې لَاهٌ شي نو بیا ئې په معنی کې دوه قوله دي یا په معنی داحتجب دی یا په معنی دارتفع دی.

## په کلمې د جلال (الله) کې د علامه زَبیدي او موسی خان بازي رحمهماالله قول

قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) په دې خبره چې لفظ د الله له چا نه مشتق دی اووه اقوال بیان کړه خو علامه زَبیدې (رَحِمَهُ اَللَّهُ) وایی چې زما شیخ علامه فاسي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) به ویل چې دې کې دېرش اقوال چې لفظ د الله له څه شي نه مشتق دی.

او علامه موسی خان بازي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) د لفظ د الله متعلق په دوه ضخیمو جلدونو کې کتاب لیکلي چې نوم یې دی «فتح الله في خصائص اسم الله» په دغه کتاب علامه صیب د لفظ د الله جل جلاله اونیم سوه(۷۵۰) خاصیتونه ذکر کړي دي او د لفظ د الله متعلق یې مستقل علم ایجاد کړی چې هغې ته «علم الجلالة» وایي.

## کلمه د جلال (الله) اسم اعظم دی او که نه؟

دا چې د الله تعالی په نمونو کې اسم أعظم نوم کوم یو دی دا مسئله د وخت د عالمانو تر منځ سخته اختلافي مسئله ده په دې مسئله کې علامه امام محمد موسی الروحانی البازي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) په خپل کتاب «الکنز الأعظم في تعین إسم الأعظم» کې تقریبًا (۶۰) قولونه رانقل کړي او په اخر کې خپله فیصله داسې کوي چې د الله تعالی په نمونو کې اسم أعظم (الله) دی او دا قول د جمهورو عالمانو دی او دې ته د خیرالقرون د زماني ډیرو امامانو تګ کړی دی لکه امام ابو حنیفة (رَحِمَهُ اَللَّهُ) وغیره.

پاتې شوه دا اعتراضونه چې له نورو روایاتو سره یې تعرض راځي همدا شان دا اعتراض چې اوس یې موږ وایو نو ولې دعا نه قبلیږي دا او دې ته ورته اعتراضونو ځوابونه علامه محمد موسی روحاني البازي رحمه الله په خپل کتاب کې په تفصیل سره ور کړي دي.[1]

---

(۱) الکنز الأعظم في تعین إسم الأعظم: ۱۸۰، ۲۵۴)ط: إدارالتصنیف والادب). وکذا في البدر الانوار شرح فقه الاکبر

## د الله تعالی ذاتي نوم ته لفظ استعمالول جائز دي؟

د الله تعالی ذاتي نوم ته لفظ استعمالول يو ډول بې ادبي دی ځکه لفظ رمی ويشتلو ته وايي که هر څو مره تو جيه ورته وکړو دا لغوي معنا خو بيا هم پکې پرته ده ؛ ځکه خو دې مسئلې ته امام رضی رحمه الله د کافيه په شرحه کې هم اشاره کړې ده.[1]

## ( دوهم قول که اسم دجلال عَلَم شي)

**تفسير بيضاوي**: (و قِيل عَلَمٌ لِذاته المَخْصُوصة لاَنّه يُوصَف ولايوصفُ بِه )

**ترجمه**: اوچا ويلي چې دا اسم د الله جلّ جلاله د ذات مخصوصه لپاره عَلَم دی ځکه چې دا په خپله موصوف کيږي خو دبل شي لپاره نه صفت کيږي.

**تشريح**: له دې ځای څخه دويم قول بيانوي چې کلمه د جلال مشتق نه دی بلکې علم دی او دا قول منسوب دی امام سيبويه او امام زجاج ته دوی وائي چې داعلم دی مشتقي نه دی دوی خيلې دعوې لپاره درې دلايل وايي:

**لومړی دليل**: «لانّه يوصف ولايوصف به» لفظ دالله موصوف واقع کيږي خو صفت نه واقع کيږي داصغری اوکوم اسم چې موصوف واقع کيږي اوصفت نه واقع کيږي هغه علم وي داکبری نو لفظ دالله جلّ جلاله علم دی داتيجه.

## د امام سيبويه د مغفرت سبب

حکيم الامت اشرف علي تهانوي (رَحِمَهُ اَللَّهُ) په «حطبات حکيم الامت »کې ليکلي چې سيبوبه عقيدةً معتزلي و کله چې وفات شو چاپه خوب وليد پوښتنه يې ترې وکړه چې الله جل جلاله درسره څه معامله وکړه، امام سيبويه ورته وويل چې الله جل جلاله يوازې په يوه خبره وبښلم هغه دا چې ما لفظ د الله ته اعرف المعارف ويلي و . وای الله جل جلاله راته وويل چې په دې خبره دې ببښم چې تا زما اسم ته اعرف المعارف ويلي دي[2].

---

(١)ـ والللفظ خاص بما يخرج من الفم من القول، فلا يقال: لفظ الله كما يقال: كلام الله . شرح الرضي على الكافية: ١/ ٢٢) ط: مكتبة رشيدية).

(٢) كذا في حاشية تحفة شا جهاني ناقلا عن الفوائد الشافية لزيني زاده افندي ناقلا عن القهستاني :صـ ٦

**تفسیر بیضاوي**: (ولاَ نّه لَابُدَّ له مِن اسمٍ تَجرِی علیهِ صِفاتُه ولَایَصلِح له مِمَّایَطلِق عَلیهِ سِواهُ)

**ترجمه**: او بل له دې وجهې نه الله جلّ جلاله لره داسې اسم ضروري دی چې نور صفات ورباندې جاري او حمل شي او بل اسم د الله جل جلاله اسمونو کې (چې اطلاق یې په الله کیږي) د دې صلاحیت نلري چې نور او صاف پرې حمل شي سواه د لفظ د الله نه.

**تشریح دویم دلیل**: دا دی چې اسم د الله عَلَم دی هغه دا چې لابدي ده الله تعالی لره له داسې اسم نه چې نور صفات دالله جلّ جلاله ورباندې جاري او حمل شي یعنې دالله جلّ جلاله نه نوي (۹۹) نومونه دي په دې کې د اسې اسم الله جلّ جلاله لره ضروري دی چې باقي نور صفات ورباندې جاري کیدلی شي او داسې اسم بل نشي کیدی سواه د لفظ د الله تعالی نه یعنې په دې ټولو اوصافو کې موصوفیت صلاحیت نشته سواه د لفظ د الله تعالی نه.

**تفسیر بیضاوي**: (وَلِانّه لَوکَان وصْفًا لَمْ یکُن قولُه لآاِله الّاالله تَوحِیدًا مِثل لآاِله الّاالرّحمن فأنّهُ لَایمنَع الشّرکَةَ).

**ترجمه**: او بل له دې وجهې نه که چیرته اسم دالله جلّ جلاله وصف شي نو قول د «لآاِله الّاالله» به توحید پاتې نشي لکه دا قول «لآاِله الّاالرّحمن» ځکه دا قول منعه له شریک ځخه نه راولي.

**تشریح دریم دلیل**: دا قیاس او عقلي دلیل دی په علمیت د لفظ د الله جل جلاله هغه داسې (لو کان اسم الله تعالی وصف). دا مقدم. لم یکن لآاله الّاالله توحیداً. دا تالي. لکن التّالی باطل فالمقدّم مثله. دلیل ملازمي ظاهردی ځکه وصف په نفس ماهیت دلالت کوي یابه په ماهیت موصوفه دلالت کوي نو دواړه کلیات دي او مرتبه ابهام کې دي او کلیات او ابهام مانع دشرکت ځخه نه وي نو که علم نه شي لآاله الّاالله کې به توحید پاتې نه شي او که علم شي بیا دا کلمه مفیده د توحید وګرځي ځکه علم په ذات معین دلالت کوي او ذات معین مانع وي له شرکت غیر ځخه.

**(دریم قول چې اسم دجلال صفت مشتق دی)**

**تفسیر بیضاوي**: (وَالأَظهَر أنَهُ وصْفٌ فی أصْلِه لَکِنَهُ غُلب علَیه بِحیثُ لَایَستَعملُ في غَیرِهِ صَار کَالعَلم مِثل الثُرَیَّا وَالصَّعِق أجري مَجرَاهُ فی اِجراءِ الوَصْفِ علَیه وَ امتِناعُ الوصْفِ به وَعَدمِ تَطرِق أحتِمالِ الشَرکَة الیَه).

**ترجمه**: او دا ډیره ښکاره خبره ده چې په اصل کې وصف دی لکن هرکله چې تغلیب ورکړی شو په داسې شان سره چې بغیر د ذات نه نه استعمالیږي نو په شان دعلم وګرځیده لکه ثریا اوصعق په ځای دعلم قائم کړی شوي دي په جاري کولو د وصف کې په دي باندې اومنع دی متصف کیدل بل څوک په دې صفت سره (په غیر یې اطلاق نه کیږي) او د اشتراک احتمال هم نلري.

## اسم مشتق اووصف مشتق کې فرق

**تشریح**: له دې ځای دریم مذهب بیانوي او مختاره مذهب هم ځکه یې په لفظ د اظهر سره ذکرکړ خو اول د مذهب او قول او د دې په مابین کې څه فرق دی؟ هغوې ورته اسم مشتق وائې او دا ورته صفت مشتق وائي.

دواړه وائې چې د الفظ د الله دلالت کوي د ذات په اعتبار سره په بعضې معانیو نو داسم مشتق په صورت کې هم دصفت رعایت شوي دی او دصفت مشتق په صورت کې هم دصفت رعایت شوی نو په دواړو کې څه فرق شو فرق دادی چې په اسم مشتق کې مقصود ذات وي اګرکه دلالت په وصف او ذات دواړو باندې کوي او د دې لپاره به قرینه څه وي چې دلته ذات مقصود دی او دلته وصف مقصود دی نو دې کلمې ته ګورئ که دا موصوف واقع کیده نو دلته به ذات مقصود وي اوکه موصوف نه واقع کیده بلکه وصف واقع کیده نو هلته به وصف مقصود وي.

**سوال**: کله چې وصف مشتق شو نوپکاردی چې وصف واقع شي او اسم د الله خو هیچیرته وصف نه دی وقع شوی؟

**جواب**: «لکنّه لما غلب» خلاصه د جواب ئې دا دی چې دلته غلبه د اسمیت پرې راغلې ده نو په اصل کې وصف دی خو چې غلبه د علم پرې راغله نو حیثیت د علم ئې واخیست نو اوس موصوف واقع کیږي او صفت نه واقع کیږي.

لکه ثریا تصغیر د ثروی دی مالدارې ښځې ته وائي مؤنث د ثروان دی نو اصل کې دا وصف دی مالداری ته وائي او اوس دا نوم ګرځیدلی لپاره دګڼو ستورو چې پښتو کې ورته پروین یا پیروني وایي او په بل څه ئي اطلاق نه کیږي او صعق سخت اواز ته وایي بیا د خویلد بن نفیل لقب ګرځیدلی دا یو سړی وو په لاره روان و ده سره څادر و چې کله به ئې څادر واړولو او سم به کړو نو باد به ورته بیرته وران کړ بیا به ئې سم کړ بیا به ئې ورته وراون کړ بالآخرة ئي باد ته سپکې سپورې خبرې شروع کړې نو اسمان نه وربانډې تندر راغورځیده او هلاک شو او شیخ زاده ویلي چې ده به تهامه مقام کې طعام تقسیمولو او ورکولو یوه ورځ سخت باد راغی اولوښې ئې ورته له خاورو ډک کړ نو باد ته ئې بدې خبرې وکړې نو اسمان نه پرې تندر راغورځید او هلاک شو نو بیا به چې چا یا دولو نو نوم به نه اخیسته بلکه صعق سره به ئې یادولو دائې علم تغلیبي وګرځیده[1].

په دې عبارت (وَ امتِناعُ الوصْفِ به وَعَدمِ تَطرق) سره ئې هغې علماو ته جواب وکړو کومو چې وویل که چیرته اسم دالله جلّ جلاله وصف شي نو په کلمه د توحید کې به توحید پاتې نشي نو ده ورته جواب ورکړ چې اصل کې وصف دی اوس غلبه وربانډې د عَلم راغلې نو اوس مانع دی له شرکت د غیر نه.

**تفسیر بیضاوي**: (لِأنّ ذَاتَه مِن حيثُ هُو بِلا اعتِبار امْرِ آخر حَقِيقى اوغَيرِه غَيرمعقُولِ لِلْبَشرِ فَلايُمكنُ أن يَدلَّ عليه بِلَفظ)

---

(۱) والصعق بفتح العين شدّة الصوت، وبكسر العين الشديد الصوت، والمتوقع للصاعقة والنازلة عليه، ولقب خويلد بن نفيل فارس بني كلابه وتسكن عينه ويقال صعِق كإبل لقب به لأنّ تميما أصابوا رأسه بضربة، فكان إذا سمع صوتا صعق أو لأنه اتخذ طعاماً فكفأت الريح قدره، فلعنها فأرسل الله عليه صاعقة، وهما وصفان في الأصل صارا علماً بالغلبة، والغلبة في الله، والثريا تقديرية، وفي الصعق تحقيقية. حاشيه الشهاب علي تفسير البيضاوي -عنايه القاضي وكفاية الراضي (۱/ ۵۹)

**ترجمه**: ځکه دالله جلّ جلاله ذات په حیثیت د ذات سره بغیر داعتبار د امر آخرنه (نور صفا ورسره نه وي) د انسان په عقل کې نشي راتللی تر څو چې د بل وصف او امر لحاظ ورسره ونه کړې که دا امر آخر حقیقي وي (لکه علم او قدرت) او که غیر حقیقي وي (لکه خالقیت اورازقیت) پس ممکن نه دی چې ذات من حیث الذات دې دیو لفظ لپاره مدلول شي.

**تشریح**: مصنف د لته د دریم مذهب د اظهریت لپاره دلایل بیا نوي

لومړی دلیل: دا مذهب ځکه اظهر دی چې ذات دالله تعالی بغیر له امر اخر نه په عقل کې نه راځي داصغری او څوک چې په عقل کې نشي راتلی هغه مدلول دلفظ نشي کیدلی داکبری نتیجه داشوه چې ذات دالله جلّ جلاله مدلول د یو لفظ هم نشي کیدی دا ځکه چې مدلول د الفاظو هغه څه کیدی شي کوم چې په زهن کې او ذات د الله تعالی په زهن کې نه وي.

خو لکن بعضو دا دلیل رد کړی دی د دې نه دا جواب کوي چې ذات دالله جلّ جلاله په عقل بالکنه او بکنهه راځي بالوَجه او بوجهه خو راځي او دا مدلولینو د لفظ لپاره کافي دی یعنې که تصور بالکنه ئې نشي کیدلی تصور بالوجه خو ئی کیدلی شي.

**تفسیربیضاوي**: (وَلأنّه لَو دَلَّ عَلى مُجرَّدِ ذَاته المَخْصوصَةِ لما أفَاد ظاهِر قَوله سبحانه وتعالى هُو الله فى السّمواتِ معنَى صَحيحاً).

**ترجمه**: او که چیرته په صرف ذات مخصوصة د الله جلّ جلاله دلالت وکړي نو ظاهر کې به دالله جلّ جلاله دا قول د صحیح معنی فائده ورنکړي چې (هو الله فى السّموات دی).

**تشریح دویم دلیل**: دا دریم قول د اظهریت لپاره دویم دلیل پیش کوي او رد کوي په قائلینو د علمیت: که لفظ د الله علم شی د ذات دالله جلّ جلاله لپاره نو په دې آیت کې خو بیا زمکه او اسمان دالله جلّ جلاله لپاره ظرف مکان جوړیږي ترجمة به داسې شي چې ذات الله جلّ جلاله په زمکه او اسمانونو کې دی حالانکه الله جلّ جلاله مکان او حیز څخه پاک دی.

الطريقة محمدية [۱] ليکې که څوک دا عقيده لري چې اسمان د الله جلّ جلاله لپاره مکان او ظرف دی دا سړی کافر دی.

مصنف (رَحِمَهُ اَللَّهُ) (لما أفَاد ظاهِر قَوله) سره اشاره دېته کوي چې د ظاهر په اعتبار سره په ايت کې دا خرابي لازميږي يعنې چې علم وګرځي لپاره د ذات باري تعالى او که وصف شي بيا هيڅ نقصان نشته ځکه په دې صورت کې لفظ دالله په معنا د معبود شي نو معنا به داشي «هو معبود في السموات والارض».

**تفسير بيضاوي:** (وَلِأنّ معنى الاشتقَاقَ هُو كَونُ أحدِ اللّفَظَينِ مشاركًا لِلآخر في المَعنى وَالتَّركيبِ وَهو حاصِل بَينَهُ وبَين الأصولِ المَذكُورةِ)

**ترجمه:** ځکه معنى داشتقاق له دوه لفظونو نه يو لفظ د بل لفظ سره په معنى او ترکيب کې شريکيدل دي دا معنى په مابين دلفظ دالله جلّ جلاله او اصولو مذکوره (اَلِهَ وَلِهَ وغيره) کې حاصله دي.

**تشريح دريم دليل:** دا دريم دليل بيانوي په وصفيت د لفظ د الله او د مخکې نه بيا سلب بيانوي چې لفظ دالله جلّ جلاله مشتق دی اَلِهَ وَلِهَ وغيره ځکه د اشتقاق معنا ده دوه لفظين له يو بل سره شريکيدل په لفظ او معنا کې نو لفظ د الله تعالى هم له خپل مشتق منه سره هم لفظي او معنوي مناسب لري ثابته شوه دا علم نه دی چې علم نه شو نو وصف مشتقي شو.

**تفسير بيضاوي:** ( وَقيلَ أصلهُ لَاهًا بالسّريانيَّةِ فَعربَ بحذفِ الألِف الآخِرةِ و إدْخال اللّامِ عليهِ)

---

([۱]):- الطريقة المحمدية والسيرة الاحمدية لمحمد بيرعلي البركوى البركلي . كذا قال امام الشافعي رحمه الله من اعتقد ان الله جالس على العرش فهو كافر (رواه ابن المعلم القرشي في كتابه نجم المهتدي ورجم المعتدي ص ٥٥١)
قال امام احمد بن حنبل رحمه الله : من قال الله جسم لا كا لاجسام كفر (رواه الحافظ بدر الدين الزركشي في تنشيف السامع)--
--قال شيخ نظام في الفتاوى الهندية : ويكفر باثبات المكان لله .وقال امام محمد بن بدر الدين بن بلبان الدمشقي :فمن اعتقد او قال ان الله بذاته في كل مكان او في مكان فكافر (مختصر الافادات :ص ٤٨٩).

**ترجمه:** اوچا ویلي دي چې اصل کې لاهًا دی په سریاني کې بیا په عربي کې ورداخل کړی شو په حذف د الف آخر او په اول کې لام پرې داخل کړی شو.

## څلورم قول اسم د جلال عجمي کلمه دی

**تشریح:** له دې ځایه په لفظ د الله تعالی کې څلورم قول بیانوي چې لفظ د الله جل جلاله په اصل کې سریاني لفظ دی ځکه دا په اصل کې لاهاً و او لاهاً سریاني کلمه ده نو بیا عربي ته ورداخل شو په داسې شان سره چې اخرنی الف یې حذف شو او په اول کې پرې لام داخل شو او ځینې علماء یې بیا عبراني لفظ بولي ځینې علماء په دوی دواړ باندې رد کوي او وایي چې لفظ دالله کلمه د قرأن دی او اکثر کلمات د قرأن عربي دي.

**تفسیر بیضاوي:** (تفْخِيم لَامِه اذَا انفَتَح مَاقَبله أو انضمَّ سَنَة وقيل مُطلَقا)

**ترجمه:** او چې کله د اسم دالله جلّ جلاله نه ما قبل حرف مفتوح یا مضموم وي نو داسم دالله لام به ډک ویلی شي دا د ټولو قاریانو طریقه ده اوچا ویلي چې دلفظ دالله جلّ جلاله لام په هرحال کې ډک ویلی شي

**تشریح:** له دې ځای نه په لفظ د الله تعالی کې د قرأت بحث کوي خو لومړی به دا ووایو چې تفخیم د حرف (ټکي) سخت ویلو ته وائي او د دې ضد تدقیق دی او دا نرمي سره ټکي ویلو ته وائي دویم دا چې دلته له سنة نه کومه معنا مراد ده.

(سنة) په دوه قسمه دي.

(۱) یو سنت متوارثه دي.

(۲) سنت اصطلاحیة دی.

سنت متوارثه دپلارونو اونیکونو طریقه ته وائي.

اوسنت اصطلاحیة مجتمع علی النّاس ته وائي.

دلته له سنت نه سنت متوارثه مراد دي چې طریقه دقاریانو دی.

كله چې له لفظ دالله تعالى له اسم نه مخكې ضمه يا فتحه وي نو لام به ډک لوستل كيږي او كه مخكې ترينه كسره وي وي بيا به لام باريک لوستل كيږي او بعضې وايي چې لام به په هر حالت كې ډک لوستل كي اگر كه مخكې ترينه كسره ولينه وي او لومړى د اسلافو قاريانو طريقه ده ځكه په لام ډک اداكولو كې عظمت د باري تعالى دى او د تفخيم په صورت كې لفظ د الله په ټوله ژبه ادا كيږي او كه مخكې ترينه كسره وي بيا ځكه باريک لوستلى شي چې كه تفخيم پكې كوي بيا ثقل لازميږي ځكه تفخيم د پورته كيدو او كسره لاندې كيدو تقاضا كوي.

**تفسير بيضاوي**: (وحذفُ اَلفِهِ لحْن تُفسِد بِهِ الصّلَوٰةُ ولَايَنعقِد بِهِ صرِيح اليَمِينِ وقد جآء لِضرورةِ الشّعر : آلَا بارک الله فى سهيل ..... اذا ماالله بارک فى الرجال)

**ترجمه**: اوله دې (اسم ذاتي دالله جلّ جلاله) نه الف حذفول يو داسې غلطي دى چې لمونځ ورسره فاسديږي اوصريح قسم هم ورباندې نه منعقد كيږي او هر چې شعركې حذف دى هغه دوجهې دوزن شعري نه.

**ترجمه شعر**: خبردار الله جلّ جلاله دى په سهيل سړى كې بركت نه اچوي كله چې اُلله تعالى په سړي كې بركت اچوي.

## لحن جلي اوخفي او احكام يې

**تشريح**: دلغت غلطي ته لحن وائي: بيا لحن په دوه قسمه ده (١) لحن جلي (٢) لحن خفي لحن جلي هغې ته وائي چې په اعراب او يا حروف دكلمې كې داسې تغير او بدلون وكړې چې دكلمې معنى پرې غلطه شي.

اولحن خفي يو باريكه خطاء ده چې پرته له ماهرينو د قرآن څخه نور څوک پرې نه پوهيږي لكه مد متصل ،غنّه، او قلقلة پريښودل. په لحن جلي سره لمونځ فاسديږي اوپه لحن خفي سره لمونځ نه فاسديږي دلته مصنّف په فقهي مسائلو استدلال كړى دى چې په لفظ د الله كې د لام او د ها په منځ كې الف حذفول داسې غلطي ده چې لمونځ ورسره فاسديږي او قسم هم ورباندې نه منعقد كيږي او دا فساد لمونځ په اتفاق داحنافو او شوافعو سره راځي ؛خو دلائل ئې بيل بيل دي

د شوافعو دلیل دادی چې د اصولو قاعده ده چې انتفاء دجزء انتفاء دکل لره مستلزمه وي چې الف په اسم دجلال کې پاتي او حذف شو نو په تسمیه کې اسم دجلال پاتي شو نو چې تسمیه کې حذف شو ګویا تسمیه مکمل پاتي شوه نوګویا سورت فاتحه مکمل پاتي شوه او د شوافعو په نزد قرأت د فاتحې فرض دی او دفرضو په پاتي کیدو لمونځ فاسدیږي.

او د احنافو دلیل دادی چې کله کلمه ثلاثي وی نو حذف د حرف له اول نه یاله وسط نه وکړې لکه په (عربي) کې «ربّيّ» ووائې یا «عريّ» ووائې نولمونځ وربانديې فاسدیږي ځکه دې سره یامعنی بدلیږي یا کلام لغوه کیږي اوصریح قسم دې ته وائي چې الفاظو د قسم نه روسته نیت دقسم ته ضرورت نه وی.

## (دالرّحمن الرّحیم بحث)

**تفسیر بیضاوي:** (الرّحمن الرّحیم) إسمانِ بَنیَا لِلمُبالغةِ من رَحِم کالغضبَانَ من غضِب والعَلیمُ من عَلِم والرَّحْمةُ فی اللُّغةِ رِقَّة القَلبِ وانعِطافُ یَقتضِی التفضّل والإحسان ومِنه الرَّحم لانعطَافهَا علی مافیها وَأسماءُالله تَعالی اسمًا تُوخذُ بِاعتبارِ الغَایاتِ الّتی هی أفعالُ دون المَبادِی تکونُ إنفعالات)

**ترجمه:** الرّحمن او الرّحیم دواړه اسمونه دي چې بناء او جوړ کړی شوي لپاره د مبالغې او داد رحم نه مشتق دي لکه غضبان چې دغضب نه مشتق دی اوعلیم دعلم نه مشتق دی او په لغت کې رحم دزړه نرمی ته وائي او یا دزړه هغه میلان ته ویلی شي چې د احسان او مهربانۍ کولو تقاضا کوي او رحم (بچه دانې) هم له دې ځخه مشتق دی ځکه هغه هم په هغو شیان نرمي کوي کوم چې په دې کې موجود وي او د اسمونو (نومونه) د الله جلّ جلاله ذکر په اعتبار د غایاتو (نتائجو اوآثارو) سره وي چې (تأثیرات) د الله جلّ جلاله دي او په اعتبار د مبادیو (مصادرو) سره نه دي چې هغه انفعالات (آثرقبلول) دي.

**تشریح:** په کلمه د «بُنیا» باندې اعتراض واردیږي هغه داچې.

**سوال:** چې بنیا للمبالغة ئې وویلي ولې وضع للمبالغة ئې ونه ویلې؟

**جواب:** که د بنيا په ځای ئي وضع ويلي وای نو متوهم به دا وهم کولو چې په للمبالغة کې دا لام د صلې لپاره وضع دی يعنې دا مبالغه ورته موضوع له دی حالانکه دا موضوع له لپاره دالرّحمن الرّحيم نه دی ځکه ئې وضع ذکر نه کړ او بنيا ئي ذکر کړ چې دا لام لپاره دغائې شي.

**سوال:** تاخو وويل چې «الرّحمن الرّحيم» دواړه اسمونه دي حالانکه په دې کې دوه قوله دي لوومړ د جمهورو په نزد خو دا دواړه صيغې صفت مشبه دي رحمن د فعلان او رحيم د فعيل وزن دی فايده د مبالغې ورکوي ځکه په دې صيغو کې دوام اوثبوت دی او دوام او ثبوت کې زيادت وي او بل علامه زمحشري وايي کومې صيغې چې له اصل نه عدول هغه د خپل اصل په مقابل کې بليغه وي دا دواړه صيغې هم له «رحم» څخه معدولې شوي.

دويم قول د امام سيبويه دی د ده په نزد الرّحمن صيغه دصفت مشبه ده او الرّحيم صيغه داسم فاعل ده لپاره دمبالغې بهرحال په دواړه قولونو دا صيغې دصفت دي اسماء نه دي ؟

**جواب:** دلته د اسم نه مقابل د فعل او دحرف مراد دی مقابل د مشتق نه دی مراد مطلب دا چې فعل او حرف نه دي اخواته که بيا صيغې د صفت مشبه وي او که د فاعل وي.

د «من الرّحيم» لاندې ناکت ليکلي «بکسر العين» دې سره دفع د سوال کوي هغه دا چې.

**سوال:** رَحِم خو متعدي دی او دجمهورو په نزد دا دواړه صيغې د صفت مشبه دي او صفت مشبه خو له باب لازمي څخه دي د متعدي نه خو لازمي نه جوړيږي [(١)] ؟

**جواب:** بعد ما نقله الى رَحُم يعنې د رحِم بکسر العين نه به ئی نقل کړی رَحُم (باب کرم) ته او له رَحُم نه به صيغې دصفت مشبه جوړي کړې.

**والرّحمة فى اللّغة:** دې سره هم دفع دسوال دی هغه دا چې.

---

(١):- فعل په دوه قسمه لازمي اومتعدي لازمي هغه فعل دی چې مفعول ته محتاج نه وي يوازي په فاعل بسينه کوي لکه خرج زيد وذهب خالد او داسې نور او فعل متعدي هغه فعل دی چې مفعول هم غواړي او ورته محتاج وي لکه اخرج الاستاذ خالد وفهّم الاستاذ الطالب: بيا له فعل لازمي نه فعل متعدي هم جوړولی شي په دوه طريقو سره (١) دفعل متعدي په اول کې همزه زياته کړه لکه ذهب نه اذهب (٢) دفعل لازمي دوهم حرف تضعيف (مکرر) کړه لکه فهم نه فهّم بيا د افعل متعدي کله يومفعول غواړي کله دوه اوکله درې.

**سوال:** تا وويل چې دا دواړه درحِمَ نه مأخود دي او د رحِم مصدر رحمة راځي او رحمة رقّة القلب غواړي او رقة القلب قلب غواړي او د الله جلّ جلاله په جانب کې رقة القلب او قلب معنا کاني دواړه محال دي نو د الله جلّ جلاله په جانب کې دا د رحمن او رحيم صيغې څنګه استعمال لوې؟

**جواب:** (وَأسماءُالله تَعالى اسمًا تُؤخذُ بِاعتبارِ الغَاياتِ) يو مبدأ داسمونو دی اوبله يې منتهاء دی رقة القلب دا مبدأ د رحمة دی او انتهاء ئي انعطاف (انعام- افضال) دی

نو دلته رحمة په اعتبار د انتهاء سره د الله جلّ جلاله صفت دی چې انعام او افضال دی.

خلاصه دا چې او الله جلّ جلاله لره مقوله د فعل حاصله ده دالله جلّ جلاله صفتونه په اعتبار د مصادرو سره نه دي بلکه په اعتبار د غاياتو سره دي يعنې کوم الفاظ چې له قبيلې د انفعال څخه وي (صفات د مخلوق وي) د هغې اطلاق په باري تعالی په معنا حقيقي سره نه وي بلکې په اعتبار د غاياتو سره وي لکه د رحمة حقيقي معنا رقة القلب دی دا معنا په جانب د باري تعالی کې محال دی او غايه يې انعام دی نو رحمان دلته په جانب دباري تعالی کې په معنا د منعم سره دی مجازاً يا په طريقه د استعارې تمثيلې د ځکه الله جلّ جلاله لره تأثير ثابت دی او تأثر ور لره نشته دغه رنګ قهر او غضب هم د مقولې.

(ومنه الرحِم )او له دې څخه رحِم هم اخستل شوی چې معنا يې ده بچه داني او دې ته هم ځکه رحِم وايي چې دا هم مهربانه وي په هغه څه چې په دېکې پراته وي.

## حلّ اللّغات

| شمېره | لغات | معنی | شمېره | لغات | معنی |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | شعار | علامه، نښانه | ۴ | اوائل | جمع د اول ده |
| ۲ | غضبان | غوسه | ۵ | رقّة | نرمي |
| ۳ | انعطاف | ميلان | ۶ | غايات | نتيجې |

تفسير بيضاوي:(والرّحمن أَبلغُ منْ الرَّحِيم) لانَّ زِيادةَ البِناءِ تدُلُّ على زيَادةِ المَعْنى كمَا في قَطَع وقَطّع وكبَار وكبّار).

**ترجمه**: الرّحمن د الرّحیم نه په مبالغه کې زیات دی ځکه زیادت دالفاظو په زیادت د معنی دلالت کوي لکه په قطّع(مشدد) کې له قَطع(غیر مشدد) نه او په کبّار(مشدد) کې له کِبار نه مبالغه زیاته دي.

**تشریح**: له دې ځای څخه دا خبره بیانوي چې رحمن او رحیم په نفس مبالغه کې سره شریک دي او خو په رحمن کې مبالغه له رحیم څخه زیاته دی ځکه قاعده دی چې زیادت د مباني په زیادت د معانیو دلالت کوي نو په رحمن کې مباني زیات چې پنځه حروف دي له رحیم څخه چې څلور حروف دي نو معنا به یې زیاته وي له رحیم څخه لکه قطّع مشدّد کې حروف زیات دي له قطع غیر مشدد څخه نو معنی کې ئي هم زیاتوالی دی سخت پرې کولو ته وائي او کبّار مشدد کې هم حروف زیات دي له کبار غیر مشدد څخه نو معنی کې ئي هم زیادت دي چې ډیر لوی ته وائي.

**تفسیر بیضاوي**: (و ذَالک انّمَا یُؤخذُ تارةً باعتبارِ الکمِیَّة وأُخری باعتبارِ الکیْفِیّةِ فَعلی الأَول قیل یَارحمَنَ الدُّنیا انّه یَعُم المؤمنَ و الکافِرَ و رَحیمَ الآخرةِ لأنّه یختَصُ المؤمنَ)

**ترجمه**: او دا صفتونه د رحمن او رحیم کله په اعتبار د کمیت (شمار) سره مراد وي او کله په اعتبار د کیفیت (مقدار) سره مراد وي بنا په اول معنی سره ویلی شي یارحمن الدّنیا ځکه چې د دنیا نعمتونه کافر او مؤمن دواړو ته عام دي او یارحیم الآخرة ځکه چې د آخرت نعمتونه د مؤمن پورې خاص دي.

## د مبالغې اقسام

**تشریح**: موږ مخکې وویل زیات دبناء دلالت کوي په زیادت دمعنی باندې بیا ئې وویل الرّحمن کې زیاته مبالغه ده له الرّحیم نه نو دا زیادت به یاپه اعتبار کم(شمار) سره وي یاپه اعتبارد کیفیت سره وي که مبالغه په اعتبار کم سره وي او د کمیت لحاظ وکړی شي نو بیا به ویلی شي (یارحمن الدّنیا ورحیم الآخرة) نو معنی به ئی داوي چې الله منعم دنعمو کثیروو دی او کثرت د نعمو په اعتبار د کثرت و منعم علیهم سره دی او منعم علیهم په دنیاکې زیات دي ځکه ټول کائنات دی نو دا دنیا نعمتونه ټول په الرّحمن کې راغله، او په رحیم کې نعم قلیله دي (الرّحیم) نو معنی به دا شي الرّحیم- الله منعم دنعمو قلیله وو دی او قلت دنعمو په اعتبار د قلت د منعم

عليهم سره دی او منعم عليهم په آخرت کې لږ دي ځکه يو اځي مؤمنان دي نو د رحيم تعلق له آخرت سره شو ځکه وويلی شو يا رحيم الآخرة او د رحمن تعلق له دنيا سره شو نو له دې وجهې نه ئې رحمن مقدم کړ په رحيم باندې.

**تفسير بيضاوي**: (وعَلى الثّانِي قيل يارحمنَ الدّنيا والآخرة و رحِيمَ الدّنيا لأنَّ النِّعَم الأُخرويَّة كلّهَا جسام و امّا نِعم الدّنيويَّة فجلِيلةٌ و حقِيرةٌ)

**ترجمه**: او په اعتبار د دويمې معنی (کيفيت) سره ويلی شي يارحمن الدّنيا والآخرة اورحيم الدّنيا ځکه چې اخروي نعمتونه ټول لوئ لوئ دي او هرچې د نيوي دی نو څه نعمتونه لوی دي او څه واړه دي.

**تشريح**: دا دويم قسم دی د مبالغه فی الکيف دی نو که د کيفيت لحاظ وشي نو د رحمن اضافت به دنيا او اخرت دواړو ته وشي او د رحيم اضافت به يوازې دنيا ته شي معنی به دا شي الرّحمن الله جلّ جلاله منعم د نعمو عظيمو دی نو د آخرت نعمتونه ټول عظيم دي هغه ټول پکې راغلي او د دنيا بعضې عظيم دي او بعض حقير دي نو د دنيا عظيم په الرّحمن کې راغله يعنې د الرّحمن تعلق له دواړو جهانونو سره دې پاتي شوه د دنيا حقير او واړه نعمتونه هغه په الرّحيم کې راغله معنا دا چې الرحيم الله د ورو ورو نعمتونو منعم دی نو الرّحيم تتمه د الرّحمن شوه او تتمه د شي مؤخّروي د شي نه.

**تفسير بيضاوي**: (و انّمَا قدَّم والقِياسُ يقْتضِي التَّرقِ مِنَ (الاذنی الی الاعلی) لِتَقدُّم رحمةالدّنيا)

**ترجمه**: اومقدم ئې که رحمن په رحيم باندې او حال دا چې قياس تقاضا کوې د ترقی د ادنی نه اعلی ته دا له وجهې د تقدم د رحمت د دنيا په آخرت باندې.

## تقدیم د رحمن په رحیم

**تشریح**: که زیادت په اعتبار د کم سره وي او که په اعتبار د کیف سره وي نو په رحمن کې زیادت راغی په رحیم باندې خو قانون دا دی چې په کلام کې ترقي د ادنی نه اعلی ته کیږي او دلته خلاف قانون دی هغه دا چې اعلی په ادنی مقدم دی پکار دا و چې اول رحیم ذکر شوی وای ځکه دا ادنی دی نو په دې عبارت سره دفع همدې اشکال دی.

**سوال**: رحمن ئې ولې په رحیم باندې مقدم کړ؟

**جواب**: د دې اعتراض څلور جوابونه مصنّف کړي اول جواب دا دی.

**تشریح لومړی جواب**: ( لِتَقدُّم رحمةالدّنیا) دا لومړی جواب دی : رحمن په رحیم ځکه مقدم کړی شو علامه زمخشري ویلی دي چې رحمن زائد دی په اعتبار د کمیت سره په رحیم باندې نو د رحمن مصداق د نیادی او رحیم مصداق آخرت دی اسلوب عربیت په اعتبار د مصداق سره خلاف شوی دی نو په لفظ کې هم خلاف شو، رعایت دمصداق هم یو باعث دی او دا رأیه دقاضي بیضاوي رحمه الله هم دی.

یعنې دنیا مقدمه وه په وجود کې په اخرت نو ځکه مو هغه لفظ هم مخکې کړ چې دلالت کوي په رحمت د دنیا په هغه چې دلالت کوي په رحمت د اخرت .

**تفسیربیضاوي**: (ولانّه صَار کالعَلم مِن حیثُ انّه لایُوصفُ به غیرهُ لِأَنَّ معناهُ المنعِم الحقِیقِي البَالِغ فی الرّحمة غایتِها و ذالک لایصدَّق علی غیره).

**ترجمه**: او بل د دې وجهې نه چې دا د الله جلّ جلاله لپاره پشان دعلم کرځیدلی په دې حیثیت سره چې په الرّحمن باندې بغیر دالله جلّ جلاله نه بل څوک نه موصوف کیږي ځکه چې د دې معنی ده حقیقي نعمتونه ورکونکی چې د رحمت انتهاء ته رسیدلی وي او دا صفت بغیر د الله جلّ جلاله بل هیچالره نشته.

## د رحمن اطلاق په غیر الله کېدلی شي؟

**تشریح دویم جواب**: دا جواب امام رازي رحمه الله کړېدی او هغه دا چې صحیح دی اسلوب دعربیت نه خلاف شوی دی خو دا دیوې اهمې فائدې لپاره او هغه دا چې درحمن اطلاق په بل چا کیدلی نشي ځکه چې دا مفردًا مختص له ذات باري تعالی پورې دی لکه څنګه چې د چا نوم مفردًا او مضافا الله کیدی نشي لکه الله ئي نوم وي یا اِلٰه الحق ئي نوم وي نو دغه شان رحمن هم مفردًا الله جلّ جلاله پورې خاص دی به بل چا یې اطلاق نشي کیدلی خو مضافًا ئي بل چا هم اطلاق کیدی شي [1] نو من وجه ئې مناسب له لفظ دالله سره راغلو اومن وجه ئی له مابعد سره چې رحیم دی مناسبت راغلو نو دا مناسبت تقاضا د مینځ کوي چې رحمن الحق جائز نه دی نو عبد الرّحمن جائزدی.

علامه ابن عابدین الشامي رحمه الله وائي: چې الرّحمن معرفه په الف لام سره مختص دی له الله جلّ جلاله پورې اوغیر معرفه خاص نه دی تر الله پورې [2] او رحیم نه مفردًا خاص دی اونه مضافا خاص دی ځکه په قرآن کې رحیم صفت د محمّد (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ) لپاره واقع شوی دی لکه الله تعالی فرمایي (حریصٌ عَلَیکم بالمُؤمِنِین رَؤُفٌ الرّحیم) [3] نو که لفظ د رحیم روسته د لفظ د جلال نه راشي نو بیا مناسبت نشته ځکه رحِیم وصف دی او لفظ د جلال علم دی او هرچې لفظ رحمن دی دا مناسبت دی ځکه من وجه علم (مفرداً) او من وجه وصف دی (مضافاً) او علم مقدم وي په وصف نو ځکه دا اسلوب عربیت نه خلاف شوی.

---

(۱):- تفسیر کبیر لامام فخرالدین الرازي الهروي.

(۲)وَذَهَبَ الْأَعْلَمُ إِلَى أَنَّهُ عَلَمٌ كَالْجَلَالَةِ لِاخْتِصَاصِهِ بِهِ تَعَالَى وَعَدَمِ إِطْلَاقِهِ عَلَى غَيْرِهِ تَعَالَى مُعَرَّفًا وَمُنَكَّرًا، وَأَمَّا قَوْلُهُ: فِي مُسَيْلِمَةَ

وَأَنْتَ غَيْثُ الْوَرَى لَا زِلْتَ رَحْمَانَا ـ فَمِنْ تَعَنُّتِهِ وَغُلُوِّهِ فِي الْكُفْرِ

وَاخْتَارَهُ فِي الْمُغْنِي. قَالَ السُّبْكِيُّ: وَالْحَقُّ أَنَّ الْمَنْعَ شَرْعِيٌّ لَا لُغَوِيٌّ، وَأَنَّ الْمَخْصُوصَ بِهِ تَعَالَى الْمُعَرَّفُ(الدر المختار وحاشية ابن عابدین (رد المحتار) (۱/ ۷)

(۳):- سورة التوبة: آیة ۱۲۸.

**تفسیربیضاوي**: (لأنّ ماعدَاهُ فهو مُستَعِيضٌ بلطْفِه وانعامِه ويُرد بهِ جزِيلَ ثوابٍ او جميلَ ثناءٍ او مَزيح رقَّة الجِنسيَّة اوحُب المالِ عن القَلبثمَّ انّه كَالواسِطةِ فی ذالک لانّ ذَات النَّعمِ و وجُودها و القُدرَة علی ايصَالها والدَّاعيَة البَاعِثة عليهِ والتَمكُن من الانْتفَاع بهَا والقوىٰ الّتي بها يحَصل الانتفَاع الی غَير ذالک منْ خلْقهِ لايقْدرُ عليها أحدٌ غيرَه)

**ترجمه**: ځکه چې الله جلّ جلاله نه سوا نور ټول خلک د مهربانۍ او انعام کولو عوض کې په آخرت کې ډير ثواب او يا په دنياکې دخپل ځان ډير ښه تعريف کول غواړ او ياد خپل زړه هغه نرمي ختمول غواړي چې کومه د هم جنس کيدو په وجه وي اومحبت د مال د خپل زړه نه ختمول غواړيبيا دابنده په حصول دلطف کې د واسطې په شان دی ځکه چې د نعمتو موجودګي او د دې بل چالره ورکولو طاقت او د دې ورکولو جذبه باندې راپورته کونکی اوپه دې باندې د نفعې ورکولو قدرت او په هغې مهربانۍ سره نفع حاصلونکي قوتونه او له دې علاوه نور ډير شيان دا ټول دالله جلّ جلاله په پيدا کولو سره وي او دالله جلّ جلاله نه سوا بل هيڅوک خپله د دغه شيانو قدرت او وس نلري.

**تشريح**: موږ وويل چې د رحمن اطلاق په غير الله باندې ځکه نه کيږي چې د رحمن معنا ده هغه منعم حقيقي چې د انعام انتها ته رسيدلی وي او دا معنا په غير کې محال دی ځکه منعم حقيقي په انعام کولو سره له چا نه بدله نه غواړي او بندګان چې انعام وکړي هغوي يې د بدل غوښتنه کوي دغه بدل په دوه قسمه دی (۱) جلب منفعت (۲) دفع مضرت بيا د جلب منفعت دوه صورتونه دي يا دنيا پورې متعلق وي يا تر اخرت پورې نو بنده چې کله هم انعام وکړي د دې څلور واړو بدلو غوښتنه کوي که جلب منفعت تر اخرت پورې متعلق وي نو اخرت کې له الله تعالی نه اجر غواړي او که دنيا پورې تړلی وي نو په دنيا کې خپل تعريف او شهرت غواړي او که بدل دفع د مضرت وي هغه په دې طريقې سره چې د انعام کولو سره رقت جنسيت زايله کوي معنا دا چې د هم جنس پريشان کيدو په وجه چې انسان ته اضطراب عارض کيږي دغه اضطراب په انعام سره لرې کوی غواړي او يا د زړه نه د مال د محبت ختمولو په خاطر انعام کوي.

د منعم حقیقي صفت د غیر الله نه ځکه منتفي دی چې بنده په انعام کولو کې صرف واسطه دی ځکه د نعمتونو پیدا کول، مستحق ته رسول، هغه جزبه او شوق چې بنده د نعمت په قربانئ تیاروي او له نعمتونو څخه د فایدې اخستلو قدرت پیدا کول او له دې پرته چې څومره لوازم د نعمتونو دي ټول الله تعالی په قدرت کامله کې دي.

**تفسیر بیضاوي**: (اولأنّ الرَّحمنَ لمَّا دلَّ على جلَائِل النِّعمِ و أمواهِا ذكرَ الرَّحِيم ليَتَناولَ مَاخرجَ منْها فيكُونُ كالتَّتمَّة والرَّدِيف لَه)

**ترجمه**: او یا رحمن ځکه مقدم کړی شو چې رحمن په ډیرو او لویو نعمتونو دلالت کولو، نو روسته ئې ترینه رحیم ذکر کړی دی د دې لپاره چې رحیم هغو نعمتونو ته شامل شي چې له لویو نعمتونو نه خارج وي نو رحیم د رحمن لپاره په منزله د تتمې او ردیف شو.

**تشریح دریم جواب** : دا که زیادت په لفظ د رحمن کې په اعتبار د کیف سره اخلې نو بیا د رحمن مصداق ټول نعمتونه د دنیا او آخرت دي او د رحیم مصداق ټول واړه دنیوي نعمتونه دی.

نو نعمتونه له سورلۍ (مرکب) سره مشابه شو او معنی د رحمانیت په منزله د یو مَرکب او سورلۍ شوه او رحمن په منزله د یو راکب دی او معنی د رحیم په منزله د ردیف دی ځکه چې پاتې شوو نعمتونو او معنی دلالت کوي او ردیف له راکب نه روسته وي نو رحیم په رکوب علی المعنی کې مؤخر وو نو په لفظ کې هم مؤخر او روسته شو.

**تفسیربیضاوي**: (او لِلمُحافِظةِ عَلى رؤسِ الآى)

**ترجمه**: اویا رحمن مقدم کړی شو لپاره د محافظت د آخرني سرونو د آیتونو.

**تشریح څلورم جواب**: دا چې د اسلوب عربیت نه ئې ځکه خلاف له وجهې دیوې نکتې وکړو هغه دا چې د سورت فاتحې د هر آیت ماقبل آخر حرف علت «یاء» ساکنه ده لکه العلمین الرّحیم الدّین الخ وغیره نو ځکه ئې الرّحمن مقدم کړ چې سجع د سورت سره برابره شي او سجع په کلام کې معتبره وي دا جواب په نزد امام شافعي رحمه الله صحیح کیږي چې هغه تسمیّه د سورت فاتحې یو آیت ګڼي.

**سوال**: ته وائې چې رحمن ځکه مقدم کړی شو چې سجعه برابره شي سجعه خو برابره نه شوه ځکه د الرّحيم په آخر کې خو ميم دی او د نورو اياتونو په آخر کې نونونه دي.

**جواب**: ناکت داسې جواب کړی دی ددې لپاره چې فواصلو کې ئې تقارب راشي (ليکون فواصلها متقارب) ميم اونون کې تقارب دی.

**تفسير بيضاوي**: (و الاَظْهرُ انّهٗ غيرُ منصرِفٍ و انْ حَظر اختِصَاصهُ باللّٰهِ تعالى أن يَّكونَ له مُؤَنَّث على فُعلى او فُعلانَةَ الحاقًا لهٗ بِما هوَ الغَالِب فی بَابِهِ)

**ترجمه**: او دا زياته ظاهره خبره ده چې رحمن غير منصرف دی اګرکه اختصاص د رحمن دالله جلّ جلاله منع کوي چې مؤنث د دې رحمن په وزن دفعلی يافعلانة سره راشي سره له دې هر څه رحمن غيرمنصرف دی په هغه اوزانو د قياس کولو له وجهې ګوم چې په باب دفعلی کې غالب وي (چې عدم انصراف دی).

**تشريح**: له دې ځای څخه په لفظ د رحمن کې نحوي بحث کوي په رحمن کې قاعده نحويه داده چې دا الف اونون زائدتان کله په اسم کې وي کله په صفت کې وي که اسم کې وي نو شرط دتأثيرپکې علميت دی يَعنې الف ونون زائدتان هلته غير منصرف وي چې دا اسم علم وي لکه عمران اوعثمان اوکه الف ونون زائدتان په صفت کې وي بيا په دې کې دنحاتو اختلاف دی بعض وائي چې شرط د تأثيرکولو ئې دا دی چې مؤنث به ئې په وزن دفعلی راځي لکه سکران غيرمنصرف دی ځکه چې مؤنث سکری دی او بعض نحات وائي چې شرط ورته دادی چې مؤنث به ئې په وزن دفعلانة نه راځي نوسکران د دوارو مذاهبو په اتفاق غيرمنصرف دی ځکه وجود فعلی هم شته او سکرانة مؤنث ئې هم نه راځي او ندمان په اتفاق منصرف دی ځکه مؤنث ئې ندمی نه راځي او ندمانة راځي اوس رحمن غيرمنصرف دی که اول مذهب ته ګورو چې په وصف کې الف نون زائدتان راشي نو شرط ورته انتفاء

د فعلانة دی نو په رحمن کې خو وزن فعلانة نشته پکار دی چې غیر منصرف شي او دوهم مذهب وائي چې شرط ورته وجود فعلی دی نو دلته خو فعلی مؤنث نشته پکار دی چې منصرف شي[1]

قاضی بیضاوي (رَحِمَهُ اللَّهُ) وائي چې په دواړه مذهبونو دا غیر منصرف دی په اول مذهب خو انتفاء د فعلانة په وجه او په دوهم مذهب اګرکه وجو فعلی نشته حملًا علی نظائره دی غیر منصرف شي.

**تفسیر بیضاوي**: (وإنّما خصّ التّسمِيةَ بهذِهِ الاَسْمَاء لِيعْلَمَ العَارِفُ اَنّ المُستحق لانّ يَستَعانَ به فی مجامِعِ الامُور هو المَعْبود الحقِيْقِي الّذی هُو مَولی النّعم كلّها عاجِلها وَاٰجِلّها جَلِيلهَا وحَقيرِهَا فَيتوَّجهُ بشرا شَره الی جَناب القُدسِ ويتمسّک بِحَبْلِ التّوفِيقِ وَيشغِل سرَّهُ بِذِكرِهِ والاستِمْدادِ به عن غَيْرِهِ).

**ترجمه**: او په دي درې اسماء و سره تسمية خاص کړی شوی ده د دې لپاره چې عارف بالله په دې پوهه شي چې په ټولو امورو کې د امداد طلب کولو لپاره حقدار ذات هغه دی چې معبود حقیقي وي هغه معبود حقیقي چې د خپلو ټولو نعمتونو ورکونکی دی دنقد او دنیتي والا دلویو او وړو نعمتونو او مکمل متوجه شي پاکي درګاه ته او په امر دربّ منګلی ټینګې کړي خپل راز دزړه د الله جلّ جلاله په ذکرسره او د الله جلّ جلاله نه په مدد غوښتلو سره مشغول کړئ له غیرنه.

**تشریح**: دلته دا خیره بیانوي چې په بسم الله کې ولې دا درې اسمونه خاص کړل په ذکر سره

**سوال**: (په بسم الله کې ولې دا درې اسماء د الله جلّ جلاله خاص کړی شو ؟

**جواب**: ځکه چې الله ویل کیږي (لذات الواجب الوجود المستجمع بجمیع محامد) ته او په دې لفظ د الله دال دی چې معبود حقیقي دی او په ټول عالم د نیا باندې صدق د لفظ د رحمن دی او په ټول عالم آخرت باندې صدق د لفظ درحیم دی نو بل عالم نشته چې د هغه لپاره یې بل اسم روړی وای نو دا درې اسماء کافي شوه او هر عالم برزخ دی هغه خو پټ امر دی .

(۱) الكافية لابن الحاجب صـ ۲۲،۲۳ مكتبة البشرى ما فيه ألف ونون، ان كان اسما فشرطه العلمية كعمران ° أوصفة فانتفاء فعلانة، وقيل وجود فعلي، ومن ثم ° اختلف في رحمن، دون سكران وندمان °.

مصداق د عاجل نعمتونه د دنيادي دې ته په لفظ درحمن کې اشاره دی مصداق د اجل نعمتونه د آخرت دي او ديته په لفظ د رحيم کې اشاره دی او په اجلهاکې زيادت دی په رحيم باندې او دا زيادت په اعتبار د کم سره مرادی او په جليلهاکې نعمتونو د آخرت ته په لفظ درحمن کې اشاره ده او په حقيرها کې نعمتونه د دنيا ته په لفظ د رحيم کې اشاره ده او په جليلها کې زيادت دی په رحيم باندې او دا زيادت په اعتبار کيفيت سره مراد دی.

او بل اشره دی دې خبرې ته چې مستحق د اعانت هم هغه ذات دی کوم چې معبود حقيقي وي او ټول هغه نعمتونه چې عاجل دي او که اجل لوی دي که واړه چې عارف دا خبره وپيژني او په پوره طريقې سره د الله تعالى په طرف متوجه شي او د هغه د توفيق رسئ مضبوطه ونيسي او باطن د الله تعالى په ذکر سره مشغول شي او يوازې له الله تعالى نه مرسته غوښتونکی وي.

**تفسيربيضاوي**: (اَلْحَمْدُلِلّٰهِ)

**ترجمه**: ټول ثناء او صفت خاص الله جلّ جلاله لره دي.

**سورت فاتحه شروع شو:**

## د الحمد بحث

**تفسير بيضاوي:** ( الحمد: هُو الثَّناءُ على الجَمِيل الاختِيَارِي مِنْ نَعمَةٍ او غَيرِهَا)

**ترجمه:** حمد : ستاينه ده په ښه صفت چې دا صفت اختیاري وي که دا جميل اختياري په مقابل د نعمت کې وي او که نه وي.

**تشريح:** قاضي بيضاوي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) دلته درې بحثونه ذکر کوي (۱) د حمد تعریف او د حمد، شکر او مدح تر مینځ فرق (۲) د الحمد متعلق نحوي بحث (۳) د الحمد په الف لام کې بحث.

**لومړی بحث:** حمد په لغت کې ثناء ته وائی او په اصطلاح کې (هُو الثَّناءُ على الجَمِيل الاختِيَارِي ) په تعریف د حمد کې درې کلمې مهمې دي (۱) ثناء (۲) جميل اختياري (۳) نعمت.

### (۱) ثناء په دې معناګانو سره دی

**لومړی معنا:** جمهورو علماء وایی وائي ثناء الذکر بالخیر ته وائي.

**دویم معنا:** د عز ابن عبد السلام رحمه الله دي[1] دا وائي

چې ثناء عام ده الذکر بالخير اوشر دواړو ته وائي. او دده لپاره دلیل دا حدیث دی چې ده یو کس جنازه تیریدله. . . فأثنو علیه شر صحابه وو پرې دشر ثناء ویلې له دینه معلومیږي چې ثناء په خیر اوشر دواړو کې مستعملیږي[2] لکن علماء د ده له دلیل څخه جواب کوي چې په دې حدیث کې (فأثنوا علیه) کې ذکر د ثناء مشاكلتًا دی

**دریمه معنا:** ثناء ذکر باللسان ته وایي په دې معنا اعتراض واردیږي.

---

(۱)عز الدين بن عبد السلام ( ٥٧٧ - ٦٦٠ هـ)

هو عبد العزيز بن عبد السلام أبي القاسم بن الحسن السُّلَمي، يلقب بسلطان العلماء. فقيه شافعي مجتهد. ولد بدمشق وتولى التدريس والخطابة بالجامع الأموي. انتقل إلى مصر فولي القضاء والخطابة. من تصانيفه: " قواعد الأحكام في مصالح الأنام ". و " الفتاوى "، و " التفسير الكبير ". [ الأعلام للزركلي ٤ / ١٤٥. وطبقات السبكي ٥ / ٨٠ ].

(۲):- عن انس رضى الله عنه قال مروا بجنازة فأثنوا عليها خيرًا فقال النبي صلّى الله عليه وسلّم وجبت ثمّ مروا بأخرى فأثنوا عليها فقال النبي صلّى الله عليه وسلّم وجبت فقال عمربن الخطاب رضى الله عنه ماوجبت قال هذا اثنيتم عليه خيرًا فوجبت له الجنة وهذا اثنيتم عليه شرًا فوجبت له النّار انتم شهدآء الله فى الارض (متفق عليه)

**سوال**: تا وويل چې ثناء الذکر بالخير ته وائي او ذکر بالخير په ژبه وي يعنې ثنا او لسان سره لازم او ملزوم دي نو له دينه خو هغه ثنا خارجه شوه کومه چې الله جلّ جلاله په خپله په ځان ويلې ده ځکه چې ثناء د الله جلّ جلاله خو په لسان سره نه دی ؟

**جواب**: په جانب د الله جلّ جلاله کې له ثناء نه کلام مراد دی دلته مجاز کوو يعنې دلته ذکربالخير نه باللسان نه دی مراد بلکه له ذکر بالخير نه ذکربالکلام مراد دی که بيا لسان نشته کلام خو شته.

## (۲) جميل الاختياري:

جميل الاختياري : ويل کيږي (وصف حسن منسوبة الى المحمود) دا يو وصف حسن دی چې محمود ته منسوب دی لکه دا سړی ډير لوئ عالم دی ياسخي دی او قيد د اختياري ئې ورسره ولګولو چې تاسو په ميرزاهد کې وايئ (الجميل صفت الفعل) دا صغرى (والفعل لايکون الاختياريا) داکبرى (فالجميل صفت الاختيارى) دا نتيجه دغه نتيجه بيا صغرى کړه (فالجميل صفت الاختياري) داصغرى (وصفت الاختيار لايکون الاختياري) داکبرى (فالجميل لايکون الاختياري) دا نتيجه نو ځکه ئې قيد داختياري ورسره ولګولو نو په غير اختياري کې چې کومه ثناء وشي هغه به حمد نه وي لکه ستا ښايسته ځواني ده دا ستا په اختيارکې نه ده ځکه ستا اختيار لره پکې دخله نشته نه کسبًا اونه خلقًا نو که په اعتبار د ځوانۍ سره زه ستا ثناء کومه دا حمد نشو.

## (۳) نعمت

نعمت په کسرې د نون سره انعام ته وايي او په فتحې د نون سره تنعيم ته وايي او په ضمې د نون سره سرور او خوشالي ته وايي دلته په کسرې د نون سره دی مراد ترينه انعام دی.

سوال ته وائې حمد عام دی په مقابل د نعمت کې وي که په مقابل د غيرنعمت کې وي او حال دا دی چې په حمد کې پنځه شيان پکار وي: (۱) حمد (۲)حامد(۳) محمود(۴) محمودبه (۵) محمودعليه او دا نعمت محمود عليه دی دا پنځه ارکان د حمد دي اوته وائې چې که نعمت وي او که غيرنعمت وي نو که غيرنعمت شي بيا خو ارکان دحمد نه پوره کيږي ځکه محمود عليه به پکې نه وي نو بيا خوحمد حمد پاتې نشو؟

**جواب**: د «غيرها» مطلب دا نه دی چې دا نعمت (محمود عليه) به بلکل نه وي بلکه د غيرها
1 مطلب دا دی چې دا محمود عليه په دوه قسمه دی يو نعمت او بل غير النّعمة که محمود عليه پکې
نعمت وو دا حمد مقيد. او که محمود عليه پکې غير النعمة وو دا حمد مطلق.

**تفسيربيضاوي**: (وَالمدْحُ هُوَ الثَنَاءُ عَلى جَمِيل مُطْلقًا تَقُولُ حَمِدتُ زيدًا على عِلْمِهِ وَكَرَمِه ولا تَقولُ حِمدتّه عَلَى حُسْنِهِ بَل مَدحتُه وقِيلَ هُما اخوانِ)

**ترجمه**: او مدحه ستاينه (ثناء) د صفت جميله دی مطلقا څکه ته وائې چې ما دزيد صفت اوکړ په علم او عزت د هغه سره او دا نه وائې چې په د زيد صفت مې وکړو په حسن د هغه سره او چا ويلي چې حمد او مدح يو شان دي.

**تشريح**: دلته د حمد مدح او شکر ترمينځ فرق بيانوي فرمايي مدح ثناء مطلقې ته وايي مقلقً معنی دا چې دا وصف حسن پکې اختياري وی او که غير اختياوي وي.

حمدتّ زيدًا على علمه وکرمه جميل اختياري دي څکه که په علم کې د ده دخلق لپاره دخل نشته دکسب لپاره خو شته کنه، دغه شان کرم هم دی او «حمد ته على حسنه» نشې ويلی څکه حسن کې د ده کسب او خلق لره دخل نشته يعنې غير اختياري دی بلکه دا مدح ده او چا ويلي چې دا دواړه اخوان دي يعنې متلازمان دي يعنې په اشتقاق کبير کې سره يو دي.

**تفسير بيضاوي**: (وَالشّكرُ فِي مُقابِلةِ النِعمةِ قولًا وعملًا واعتقادًا قال:
افادتكم النعماء منّي ثلاثه ... يدى وَلِسانى والضمِيرُ المُحَجبَا
فهُو اَعمٌّ منْهمَا مِن وَجه واَخصّ من آخرَ ).

**ترجمه**: او شکر په مقابله د نعمت کې وي برابره خبره ده که په قول سره وي او که په عمل سره وي او يا په زړه سره وي..

**ترجمة شعر**: ستاسو نعمتونو زما له طرف نه د درې شيانو افاده وکړه زما ژبه زما لاس او زما پټ زړه يعنې ستا داحسان په وجه چې په ما دې کړی زما دغه شيان ستا شول، نو حمد او شکر نه من وجه عام او من وجه خاص دی.

# په حمد او شکر کې نسبت

**تشريح:** شکر په لغت کې (فعل ينبئ عن تعظيم المنعم) هغه فعل ته شکر وايي چې د منعم د تعظيم خبر ورکوي او په اصطلاحي شکر ويلی شي (صرف جميع ما انعم الله على عبده الى ما خلق لاجله) د الله جل جلاله تمام نعمتونه چې په بنده يې کړي په هغه ځه کې خرچ کول د ځه لپاره چې پيدا شوی.

قاضي صيب فرمايي شکر دحمد مقابل دی او «تعريف الاشياء باضدادها» نو د زيات وضاحت له وجهې د شکر بيان نه کوي نو فرمائي چې حمد په اعتبار د مورد خاص دی چې په لسان سره ادا کيږي او شکر عام دی که په لاس وي که په خوله وي او که په زړه سره وي او په اعتبار د متعلق سره حمد عام دی که په مقابل د نعمت کې وي او که نه وي او شکر خاص دی چې يوازې په مقابل د نعمت کې وي نو په مابين د حمد او شکر کې نسبت د عموم خصوص من وجه دی درې مادې غواړي يوه ماده اجتماعي دوه مادې افتراقي ،ماده اجتماعي مثال لکه ثناء په مقابل د نعمت کې دا هم شکر دی هم حمد دی. ماده افتراقي له جانبه د حمد چې ثناء په مقابل د غير نعمت کې وکړي. او ماده افتراقي له جانبه د شکر چې ثناء (خدمت) بالا ارکان په مقابله د نعمت کې وکړي او د حمد او مدح په مابين کې هم نسبت د عموم خصوص من وجه ده.

او علامه زمخشري (رَحِمَهُ اللهُ) فرمايي چې د حمد او مدح ترمينځ ترادف دی مصنف (انهما اخوان) سره دده قول ته اشاره وکړه.

**سوال:** دلته د جميل نه مراد صفات دالله جلّ جلاله دي او صفات دالله جلّ جلاله خو نه په اختيار د الله جلّ جلاله کې دي او نه په اختيار د مخلوق دي نو دا تعريف څنګه کوي چې على جميل الاختياري؟

**جواب:** چا دا جواب کړی چې هو الثناء باللسان على جميل فاعل المختار او فاعل مختار الله جلّ جلاله دی او يا جواب دادی چې د افعال اختياره و معنا دا نه دی چې بالاختيار حاصله وي بلکې معنا يې دادی چې افعال اختياره بالقوة وي او صفات باري تعالى بالقوة اختيارية دي.

**سوال**: دا تعریف دحمد چې هو الثناء باللسان الخ ثناء دالله جلّ جلاله ته شامل نشو کومه چې
10 الله جلّ جلاله په خپل ځان ویلي او رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ترې عاجزي ښودلی لکه فرمايي: (لااحصی ثناء علیک کما اثنیت علی نفسک[۱]) ځکه دا ثناء باللسان نه دی ؟

**جواب**: مراد لسان ځخه اله مظهره د ثناء ده تعریف داشو هو الثناء بالة مظهرة الخ.

**تفسير بيضاوي**: (وَلَمَّا كانَ الحَمْدُ مِن شِعَب الشُّكرِ اشيع لِلنِّعِمِ و اَدلّ على مَكَانِها لِخفاء الاعتِقادِ وَما فی اداب الجَوَارح مِن الِاحتمَال جعَل رَأس الشُّكر و العُمْدةِ فيهِ فقالَ عليه السّلام[۲]: أَلحمدُ رأسُ الشُّكر ومَا شَكرَالله مَن لَّم يحَمَدْه والذَّم نَقيضُ الحمدِ و الكُفرُ نَقِيض الشُّكر).

**ترجمه**: او هر کله چې حمد له اقسامو د شکر څخه و او ډیر شائع کوونکی و لپاره نعمتونو (دا ډیر استعمالیږي په نسبت سره ارکان او جنان ته) او ډیر دلالت ئې کولو په مکان د شکر ځکه په اعتقاد کې خفاء دی او په ادابو د جواهرو کې احتمال د ریاء او صنعت دی نو په حدیث کې حمد د شکر بنیاد او بنه کره قسم ګرځولی شوی دی رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمائي چې حمد د شکر رأس (اصل) دی او چا چې د الله جلّ جلاله حمد ونکړ نو ده د الله جلّ جلاله شکر هم ادا نکړو او دحمد نقیض او ضد ذم دی او د شکر ضد کفران (ناشکري) دی.

**تشريح**: عرض د قاضی بیضاوي رحمه الله په دې عبارت سره دفع د اعتراض ده.

---

(۱):- حدثنا ابوبكر بن ابي شيبة حدثنا ابو إسامة حدثني عبيدالله بن عمر عن حجك . يحى بن حبان عن الاعرج عن ابي هريرة عن عائشة قالت فقدت رسول الله صلّی الله عليه وسلّم ليلة من الفراش لتمسته فوقعت يدي علی بطن قدميه وهو فی المسجد وهما منصوبتان وهو يقول : اَللهمّ اعوذ برضاک من سخطک وبمعافاتک من عقوبتک و اعوذ بک منک، لا احصی ثناء عليک كما اثنيت علی نفسک ( رواه مسلم : ۲ / ۵۱ رقم الحديث ۴۲۲ .

(۲):- شعب الإيمان للبيهقي - العلمية (۴/ ۹۶) رقم الحديث ۴۳۹۵

- أخبرنا أبو الحسين بن بشران أنا إسماعيل بن محمد الصفار نا أحمد بن منصور نا عبد الرزاق أنا معمر عن قتادة أن عبد الله بن عمرو قال : قال رسول الله صلی الله عليه و سلم :

الحمد رأس الشكر ما شكر الله عبد لا يحمده وكذا في كنز العمال (۳/ ۲۵۵) رقم الحديث -۶۴۱۹

**سوال**: خلاصه د اعتراض دادی چې تا وويل د حمد او شکر ترمينځ نسبت د عموم خصوص من وجه دی او حال دا چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په حديث کې فرمائي چې حمد رأس د شکر دی او سر د ټول بدن څخه جز وي او بدن ورته کل وي، حمد چې سر د شکر دی نو حمد جز شو او شکر ورته کل شو او جز اعم وي د کل نه[1] نو حمد اعم شو د شکر نه او کله جز نه کل سره مساوي وي نو يا حمد اعم شو يا مساوي شو نو نسبت د عموم خصوص باطل شو؟

**جواب**: دا دی چې په حديث کې کوم جزئيت ثابت شوی هغه حقيقي جزئيت نه دی بلکه ادعائي دی او ادعايي ديته وائي چې اصل کې دا جز نه وي خو د څه وجهې نه اصل او جزء ګرځولی شوی وي هغه دا چې دا حمد اشيع النعم دی او ادلّ علی مکانها دی.

**تفسير بيضاوي**: (وَرفَعهُ بِالِابتدَاءِ وَ خبرهُ للهِ وَ اَصْلُه النَّصْبُ وقد قُرِءَ بِهُ و اِنَّما عَدل عنهُ اِلی الرَّفعِ لِيدلَّ علی عُمومِ الحَمدِ وَثُبَاتِهِ لهُ تجدَّده و حُدوثَه وهُو مِنْ المَصادِرالَّتِی تُنْتصبُ بِافعال مُضمَرةِ لاتکادُ تَسْتَعمَلُ مَعهَا)

**ترجمه**: رفعه د الحمد بناء بر ابتداء ده او خبر ئې لله دی اصل د الحمد نصب و «اَلحَمْدَ» په قرائت شاذه کې لوستل شوی او عدول ئې وکړ له نصب نه رفعې ته چې دلالت وکړي په عموم او دوام د حمد نه په تجدد او حدوث باندې او دا له هغه مصادرونه دی چې هغه افعالو مضمره و لره منصوب کوي او قريبه نه ده چې دې مصادرو سره هغه افعال مستعمل (ذکر) شي.

**تشريح دويم بحث**: له دې ځای څخه د الحمد متعلق نحوي بحث کوي نو فرمايي:

الحمد په اصل کې منصوب و يعنې په اصل کې (حمدَالله) و بيا يې ځينې نصب بنا بر مفعول به ګڼي او ځينې يې نصب بنا بر مفعول مطلق ګڼي څوک يې چې مفعول به ګڼي هغوی (نوجدُ) فعل مقدر کوي تقدير د عبارت به داسې شي: «نوجد حمد الله» او څوک يې چې مفعول مطلق ګڼي د

---

(۱):- جز (سر) څخه اعم دی چې سر د بدن سره هم وي او بې له بدن نه هم وي او بدن بې له سره بدن نه وي بلکه له سر سره بدن وي څکه بدن والې سر له نه ترينځو پورې ټول ته نوڅکه اخص شوی (يعنې چيرته چې کل وي هلته به جز هم وي څکه کل غيره له جز نه نشي راتللی او داسې نه ده چې چيرته جز وي هلته به خامخا کل وي فتأمل.

هغوی په نزد یې تقدیر داسې دی «نحمد الله حمدا» او مفعول مطلق راجح هم دی اوس د مفعول لپاره فعل ناصبه پکار دی چې دا مفعول مطلق له هغه شخه په طریقې د صدور یا په طریقې د وقوع راغلی او واقع شوی وي نو هغه فعل «نحمد» دی بیا دغه فعل حذف شو او مصدر چې (الحمد) په ځای یې قایم شو، دا ځکه چې د نحویانو قاعده دی : چې کله له مصدر شخه روسته فاعل یا مفعول په اضافت یا په حرف سره ذکر شي او مفعول مطلق لپاره د بیان د نوعې وي په دغه صورت کې به فعل وجوبا قیاسا حذف کولی شي نو دلته هم دغه قاعده تطبیق دی چې له الحمد مصدر شخه روسته لفظ د الله تعالی مفعول دی او سره له حرف جر ذکر دی نو دلته هم نحمد فعل وجوبا حذف شو او الحمد مصدر یې په ځای قایم شو دېته مصنف په دې عبارت کې اشاره کړې (وهُو مِنْ المَصادِرِالّتي تُنْتصبُ).

بعض علماء بیا چې په حمد مصدر الف لام داخل کړي نو منصوب یې وایي خو مصنف وا قرءت شاذ گرځول ځکه یې قُرِء په صیغې د مجهولې

سره ویلی دی اشاره ده ضعف او شذوذ د دې قول ته او اکثره علماء یې د الف لام په دخول سره له نصب نه رفعې ته نقلوي او له جملې فعلیې نه جمله اسمیه جوړوي هغه داسې چې الحمد په اصل کې حمدتّ [1] الله حمدًا یا نحمد الله حمداً و بیا فعل ناصبه حمدت حذف شو نو الله حمدًا پاتې شو بیا الف لام تعریفي ورباندې داخل شو نو اجتماع په مابین د دوه الفینو کې راغله نوتنوین حذف شو په دخول د الف لام سره الحمد شو دا جمله فعلیه ده او جمله فعلیه په تجدد او حدوث دلالت کوي نو عدول ئې وکړ رفعې ته چې بنا بر ابتداییت او «لله» یې خبر نو دا جمله اسمیه ترینه جوړه کړه چې (الله الحمد) شو بیا تقدیم او تأخیر وشو نو الحمد لله شو دا ددې لپاره چې په دوام او عموم د حمد دلالت وکړي ځکه جمله اسمیه په دوام او عموم دلالت کوي.

یا په اصل کې حمدت حمدالله وو نو هم دغه اعلال پکې شو.

---

(۱):- مفعول مطلق دی لپاره د فعل مقدر خو ابن حاجب وائي چې عامل ئې حذف شوی په حذف وجوبي قیاس سره او علامه رضی وائي چې عامل ئې په حذف وجوبي سماعي سره حذف شوی.

## د الف لام ضابطه

**تفسیر بیضاوي**: ( و التَّعریفُ فیهِ لِلجِنْس ومعْنَاهُ اَلأِشارةُ الی مَایعرِفهُ کُل احدٍ انَّ الحَمْد ما هُو و قِیل لِلإستغْراقِ اذِ الْحمدُ فِی الحقیقَةِ کُلّهُ لهُ)

**ترجمه**: او په الحمد کې الف لام تعریفې د جنس لپاره دی او په دې معنی سره اشاره ده هر هغه شي (حمد) ته چې هر څوک ئې پیژني چې جنس حمد څه شې دی. او چا ویلي دي چې الف لام د استغراق لپاره دی ځکه حقیقت کې ټول حمدونه الله جلّ جلاله لپاره دي.

تشریح دریم بحث: دلته دریم بحث د الف لام متعلق ذکر کوي لو مړی دا خبره ذده کړه چې الف لام په څلور قسمه دی: (۱) الف لام جنسي (۲) الف لام استغراقي (۳) الف لام عهد ذهني (۴) الف لام عهد خارجي [1].

**وجه د حصر**: الف لام به خالي نه وي یا به پکې اشاره حصې معینې ته وي او یا به پکې اشاره حقیقت ته وي که اشاره حصې معینې ته وه دا الف لام عهد خارجې او په کومه قضیه کې چې راشي هغې قیضې ته موجبه جزئیه محصوره وائي او که اشاره حقیقت ته نو دا حقیقت به یا په ضمن د کل (ټول) افرادو کې معتبر وي او یا به په ضمن د بعض افرادو کې معتبروي او یا به حقیقت من حیث هي هيَ وي که دا حقیقت په ضمن د کل افرادو کې معتبر و دا الف لام استغراقي دی او په کومه قضیه کې ذکر شي هغې قیضې ته موجبه کلیه محصوره وائې او که په ضمن د بعضو افرادو کې معتبروي دا الف لام عهد ذهني دی او که اشاره حقیقت من حیث هی هی و ته وه دا الف لام جنسي دی او دې ته قیضې ته طبعیه وائي الف لام عهد ذهني مفید لپاره د تعریف نه دی او باقي درې واړه مفید دي لپاره د تعریف.

(۱):- الف لام په لغت کې کلمې د (أَلْ) ته وائي او په اصطلاح کې : کلمة تحلّ بها کلمة اخری الف لام په دوه قسمه دی (۱) اسمي (۲) حرفي اسمي هغه دی چې په اسم فاعل او اسم مفعول اتفاقًا داخلیږي اوپه صفت مشبه اختلافًا (۲) الف لام حرفي له دې نه علاوه دی بیا حرفي په دوه قسمه ده (۱) زائد (۲) غیر زائد. زائد بیآ په دوه قسمه ده (۱) لازم (۲) غیر لازم بیا لازم اوغیر لازم دواړه په دوه قسمه دي (۱) عوضي (۲) غیر عوضي او غیر زائد بیا په څلور قسمه دی (۱) جنسي (۲) استغراق (۳) عهد خارجي (٤) عهد ذهني نو شیخ صیب یوازې د الف لام حرفي غیر زائد اقسام ذکر کړي.

اوس په الحمد کې کوم يو الف لام دی ، نو فرمايي چې دا الف لام عهد خارجي دی ځکه معهود حمد نه دی معلوم او الف لام عهد ذهني نشته ځکه الف لام ذهني کې دا حقيقت په ضمن د فرد مبهم کې وي او دا مقام د مدحې دی او په فرد مبهم باندې مدحه نه راځي.

پاتې شو الف لام جنسي او استغراقي که الف لام استغراقي شي نو معنی به دا شي ټول افراد دحمد مختص دي تر الله جل جلاله پورې او که الف لام جنسي شي نو معنی به دا شي چې ماهيت دحمد مختص دی تر الله جلّ جلاله پورې يا دا ماهيت که په مرتبه د مطلق شي کې واخلي دا قيضيه مهمله قداميه ده او که په مرتبه د شي مطلق کې يې واخلی دا قيضه طبعيه ده نو د دواړو احتمال پکې صحيح کيږي چې يا الف لام لپاره دجنس دی يا لپاره د استغراق دی خو په دي دواړو کې کوم يو اولی دی نو دا وائي چې اوس الف لام جنسي دی ځکه مقصود دلته ټول افراد دحمد مختص کول دي لپاره د الله جلّ جلاله او دا په الف لام استغراقي کې صراحتًا مختص دي او په الف لام جنس کې التزامًا ځکه په جنسي کې ماهيت مختص وي تر الله جلّ جلاله پورې او ماهيت جزء دی فرد ورته کل دی چې جزء خاص شي نو کل چې افراد دی هم خاص کيږي ځکه که يو فرد غير الله ته ثابت شي نو د دې په ضمن کې بيا ماهيت غير الله ته ثابتيږي نو په دې کې به طريقه ئې برهانيه شي.

**برهان:** ټول افراد د حمد مختص دي تر الله جلّ جلاله پورې دا دعوه دی. ځکه ماهيت مختص دی تر الله جلّ جلاله پورې او په کوم ځای کې چې ماهيت مختص وي تر الله جلّ جلاله پورې هلته ټول افراد خاص وي تر الله پورې نو دلته هم ټول افراد خاص شوه تر الله پاک پورې په طريقې دبرهان نو ځکه جنسي اولی دی.

**سوال:** دلته تا وصف مقدم کړی په اسم ذات باندې و اصل خو دا دې چې اسم ذاتي مقدم وي په وصف باندې بايد لله الحمد دې ويلی وائې ؟.

**جواب:** وصف ئې ځکه مقدم کړ چې دا دبلاغت تقاضاده ځکه بلاغت ديته وائې مطابقة الکلام بمقتضی الحال او دا مقام دتصنيف نعمت علمي ده او مقام دنعمت علمي تقاضا دثناء کوي نو که د اهميت د اسم ذاتي لحاظ کوې نو هغه د بلاغت خلاف دی.

**تفسير بيضاوي**: ( اذْ مَا مِن خيرٍ الَّا وَ هوَ مُولّيهِ بِوسطٍ وبغيرِ وسطٍ كما قال الله تعالى ( وَمَا بِكُمْ مِنْ نَعمَةٍ فَمِنَ اللهِ[1] )

**ترجمه**: ځکه چې د هر يو خير ورکونکى صرف الله جلّ جلاله دى يا په واسطه يا بغير له واسطې نه لکه الله تعالى فرمايلي دي تاسو پورې چې کوم نعمت پيوست دى دا د الله جلّ جلاله له طرفه دى.

**تشريح**: د اعبارت د يو سوال جواب دى هغه دا :

**سوال**: اختصاص د ټول افرادو دحمد تر الله جلّ جلاله پورې غيرصحيح دى؛ ځکه حمد خو کله دغير الله هم کيږي لکه خلک وائي چې دا ملا ډير تکړه دى دا طالب ډير ذهين دى دا خو هم حمد دى ؟

**جواب**: قاضي صيب وايي چې د الله تعالى حمدونه دوه قسمه دي لومړى بلا واسطه دويم بالوسطه د غير الله مدحه هم په حقيقت کې د الله تعالى مدحه خو بالواسطه ملا او طالب وغيره يې واسطه ده ځکه علم الله جل جلاله درکړى او ذهن هم الله تعالى درکړى. او په آيت کې کلمه د «ما» موصوفه ده او په (بِکُم) کې باء لپاره د الصاق دى اي بان انعامه ملصق بکم.

**تفسير بيضاوي**: (وَ فيْهِ اِشعارٌ بِاَنّه تعالى حَيٌّ فادرٌ مُريْدٌ عالِمٌ اذِ الحمدُ لايَستَحِقُّهُ الَّا مَنْ كان هَذا شأنُهُ ).

**ترجمه**: په دې (الحمد لله) کې اشاره ده چې الله جلّ جلاله لره ژوند ،قدرت، اراده او علم بکل شي شته ځکه د حمد لائق صرف هغه ذات وي چې دغه شان لري.

**تشريح**: دلته له دې ايت څخه د علم کلام يو ه ثابته شوې مسئله بيانوي هغه دا چې الله تعالى د حمد مستحق دى او د حمد مستحق هغه ذات وي چا کې چې دا څلور صفات وي چې: حي، قادر، مريد او عالم دى ځکه حمد ويلى شي ثناء على جميل الاختياري ته چې اختاريت راغى نو فاعل مختار حیّ وي نو الله جلّ جلاله حیّ شو او فاعل مختار قادر وي نو الله جلّ جلاله قادر شو همدارنګه فاعل مختار مسبوق بالا اراده وي نو الله جلّ جلاله مريد شو او اراده او قدرت علم غواړي نو الله جلّ جلاله عالم شو.

---

(1):- سورة النحل: آية ٥٣ .

**تفسير بيضاوي**: ( وَقُرِءَ الحمدُلِلهِ بِاِتْباعِ الدَّالِ اللَّام وَبِالْعكسِ تَنزِيْلًا لَهُما من حَيْثُ اَنّهما يَستعْمَلانِ معًا منْزِلة وَّاحدة).

**ترجمه**: او دا الحمد (د دال په كسرې سره) لوستل شوى د لام د تابعدارى كولو له وجهې او يا بالعكس هم جائز دى (دلام په ضمې سره الحمد لله) د دې د واړو د كلمې واحدې د فرض كولو له وجهې د دواړو استعمال يو ځاى كړى شوى دى.

**تشريح**: دلته د الحمدلله د دال او د لام دوه حركته بيانوي امام حسن بصري رحمه الله وايي چې دال د لام تابع دى لام مكسور دى نو دال به هم مكسور وي لكه (الحمدِ لله) امام ابراهيم بن ابي عبلة وايي چې لام د دال تابع دى دال مضموم دي نو لام به هم مضموم وي لكه الحمدُلُله)

**تفسيربيضاوي**: «رَبِّ الْعالَمِيْنَ ربّ العالمين الرَّبُّ فى الأصلِ مَصدرٌ بمعنى التَّربيّة وهى تَبلِيغ الشّئِ الى كمَاله شيئًا فشيئًا ثمّ وصَف به لِلمُبالغة كالصّوْم والعَدْل »

**ترجمه**:هسې الله چې پالونكى دټولو مخلوقاتو دى ربّ په اصل كې مصدر دى په معنى دتربيت سره اوتربيت وائې يوشى درجه په درجه حد دكمال ته رسول بيا په دې صفت سره الله جلّ جلاله مبالغتًا موصوف شوى دى لكه په صوم اوياعدل سره څوك مبالغتًا موصوف شي.

## (بحث په كلمه دربّ كې)

**تشريح**: په كلمه د ربّ كې دوه احتماله ذكر كوي يو د مصدريت او دويم د صفت مشبه كه صيغه د مصدر شي نو په دې اعتراض واريدېږي .

**سوال**: ربّ مضاف [1] دى او العالمين ئې مضاف اليه دى مضاف سره دمضاف اليه دا صفت لپاره د لفظ د الله جلّ جلاله دى موصوف ذات دى اوصفت وصف دى نو لازم شو حمل دصرف وصف په ذات باندې او دا ناجائز دى ؟

---

(۱):- اضافت په دوه قسمه ده (۱) اضافت لفظي (۲) اضافت معنوي اضافت لفظي ديته وائي چې صفت خپل معمول ته مضاف شي او دا مفيدٌ دتخفيف دى.

اضافت معنوي ديته وائي چې اضافت دصفت دغير دخپل معمول ته وشي نوكه مضاف‌اليه معرفه وي نو بيا دا اضافت مفيد دتعريف وي اركه مضاف اليه نكره وي نوبيا مفيد دتخصيص وي

**جواب**: دا له قبیلې د زید عدل څخه دی یعنې حمل مبالغهٔ دی.

او که دا صیغه د صفت مشبه شي په دې بیا اعتراض دي.

**سوال**: صیغه د صفت مشبه، اسم فاعل او اسم مفعول چې خپل خپل معمول ته مضاف شي نو هلته اضافت لفظي وي او اضافت لفظي تاسو په کافیه کې وائی لاتفید الّا تخفیفًا فی اللفظ دا یوازې تخفیف فائده کوي نه تعریف او دلته هم اضافت لفظي دی صیغه د صفت مشبه خپل معمول ته مضاف شوي نو موصوف معرفه ده او صفت نکره ده نو موصوف او صفت کې مطابقت نه راځي او په موصوف او صفت کې په تعریف او تنکیر کې مطابقت ضروري وي؟

**جواب**: دا صفت مشبه ده او لازمي ده او لازمي مفعول نه غواړي نو العالمین ئي مفعول نشو او فاعل الله جلّ جلاله دی نو صفت خپل معمول ته مضاف نشو نو دا اضافت معنوي شو او اضافت معنوي تعریف فایده کوي نو صفت او موصوف دواړه معرفه شوه که صفت مشبه شي نو ربّ په اصل کې ربیبٌ وو په وزن د فعیل یاء تخفیفًا ساقطه شوه یوه یاء په بله یاء کې مدغمه شوه نو ربّ شو او دیته حمل بالاشتقاق وائی [1].

کله چې ربّ مصدر شي نو معنی به دا شي هَسې الله جلّ جلاله چې عین پالنه د مخلوق ده.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَ قِیلَ هُونَعتٌ من ربّه یَرُبّهُ فهو ربٌّ کَقوْلِک نَمّ یَنُمُّ فَهُوَ نَمّ ( ثُمّ سمّیٰ بِهِ (ای بربّ) المَالِک لِانّهُ یحفِظُ مَا یَمْلِکهُ و یربِّیه ولَایَطلِقُ عَلی غَیرهِ تَعالی اِلَا مُقیّدًا کقوله (ارْجِعْ الی رَبِّک [2]))

**ترجمه**: او چا ویلي چې دا (ربّ) صفت دی دا له ربّ یربه فهو ربّ نه مشتق دی لکه نَمّ یَنُمّ فهو نمّ کېښیا دغه ربّ سره مالک نامداری کړی شوی دی ځکه چې د کومو شیانو مالک دی د هغو حفاظت او پالنه کوي او د الله جلّ جلاله نه سوا په بل چا د دې اطلاق نه کیږي مګر مقید (اضافت) ته کیږي لکه د الله جلّ جلاله دا قول (حکایت دی له قول د یوسف (عَلَیۡهِ‌السَّلَامُ) نه) چې خپل مالک ته رجوع وکړه.

---

(۱):- حمل بالمواطاة. واني چې نسبت د محمول موضوع ته بلاواسطه وشي لکه الانسان حیوان. حمل بالاشتقاق دیته واني چې نسبت د محمول موضوع ته وشي په واسطې د ذو یا له یا فی سره لکه الانسان ذوبیاض.

(۲):- سورة یوسف- آیة (۵۰)،

**تشريح**: يو قول دا دی چې دا صيغه نعت (صفت مشبه يا اسم فاعل دی) نه مصدر، له باب نصر ينصر څخه دی.

**سوال**: تا وويل چې داد نصر ينصر څخه دی او نصر خو متعدي دی او صيغه دصفت مشبه خو له باب لازمي نه جوړيږي؟

**جواب**: دا صيغه دصفت مشبه دی له باب نصر ينصر څخه خو بعد النقل لومړی دا نقل کوو باب د کرُم يکرم ته له هغې نه روسته بيا ترينه صيغه دصفت مشبه جوړه وو.

دا قول(كَقَوْلِك نَمَ يَنُمُّ فَهُوَ نَمّ)

**سوال**: ته داسې يو مثال ښودلی شي چې له باب د نصر ينصر څخه صيغه دصفت مشبه راغلي وي؟

**جواب**: ولې نه نَمّ ينمّ فهو نم او نم له نمامت نه دی چغل خوري ته وائي.

په (ثُمّ سمّى بهِ (اى بربّ) المَالِک)سره په کلمه د ربّ کې دلته دوه اصطلاحات ذکري کوي يوه د اهل لغتو بله داهل شرع.

اهل لغت وائی چې کله کلمه د رب مطلقا ذکر شي لکه ربّ بيائې په غيرالله اطلاق نه کيږي او که اضافت يې شوی وي بيا يې په غير الله اطلاق صحيح دی لکه په سورت يوسف کې ذکر دي (ارْجِعْ الى ربك) بل ځاي فرمايي (انه ربي احسن مثواى) دغه شان ربّ الدّار و ربّ زيد.

اهل شرع وائي چې مضاف وي غير ذوی العقولو ته بيائې په غيرالله اطلاق کيږي لکه ربّ الدّار او چې ذوی العقولو ته مضاف وي او يا مطلق ذکر شوی وي نو بيا ئې په غيرالله اطلاق نه کيږي يعني مکروه دی ځکه دا خاصه دالله جلّ جلاله ده لکه رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمايي (لا يقل أحدكم ، أطعم ربك وضئ ربك ، اسق ربك)[1] د ډوډۍ خوړلو په وخت خپل مالک ته داسې مه وايه چې ډوډۍ وخوره ربه. متن دکتاب داهل لغتو په اصطلاح تللی دی.

---

(١) حدثنا محمد ، حدثنا عبد الرزاق ، أخبرنا معمر ، عن همام بن منبه ، أنه سمع أبا هريرة رضي الله عنه ، يحدث عن النبي صلى الله عليه وسلم ، أنه قال : " لا يقل أحدكم : أطعم ربك وضئ ربك ، اسق ربك ، وليقل : سيدي مولاي ، ولا يقل أحدكم : عبدي أمتي ، وليقل : فتاي وفتاتي وغلامي صحيح البخاري - كتاب العتق باب كراهية التطاول على الرقيق - رقم الحديث:٢٤٣٤

( اَلعالَمِیْنَ )

## بحث په کلمه د العالمین کې

**تفسیر بیضاوي:** ( وَ الْعَالَم اِسْمٌ لِمَا يُعْلم بِهِ كَالخَاتَم وَالقالبِ غلبَ فِيْمَا يُعْلَمُ بِهِ الصَّانِع تعالى و هُو كُلُّ مَاسِواهُ مِن الجَواهِرِ و الِاعرَاضِ)

**ترجمه:** عالم اسم دی لپاره هغه څه چې په هغې سره وجود د الله جلّ جلاله معلومیږي لکه خاتم نوم دی لپاره آله مهر لګولو او قالب نوم دی لپاره د اله قلب یعنې د سانچې بیا غالب کړی شوی په هرهغه شي کې چې په هغې سره صانع(الله جلّ جلاله) معلومیږي (دلائل اینیه وي په وجود دصانع) اوهغه ټول ماسواه دالله ته وائي چې جواهر او اعراض دي.

## په عالم کې درې توجیهات دي

**تشریح**: په عالم کې درې توجیهات دي (۱) ماسواه الله (۲) مکلفین (۳) یا انسانان.

عالم صیغه داسم آله دی او اسم آله په وزن د مفعل مفعال او فاعل سره راځي نو عالم په وزن فاعل سره دی بیا عالم له علم څخه اخستل شوی دی په معنا د مایعلم به الشيء یعني د څه په زریعه چې د یو شي علم وي.

**لومړی توجیه:** په عالم کې اختلاف دي عالم څه ته وائي.

(۱) یو قول دا دی چې عالم مجموعةالاجناس ته وائي.

(۲) دا وضع شوی لپاره د قدر مشترک په مابین د مجموعةالاجناس او د هر جنس کې یو جنس ته هم عالم وائي لکه حیوان عالم جوهر عالم اومجموعةالاجناس ته هم وائي خو په یو فرد ئې اطلاق نه کیږي لکه زید ته عالم نشي ویلی او دا قول راجح دی ځکه کهدا مجموعةالاجناس ته وویلی شي یاخو یې جمعه نشي راتللی او حال دا چې د عالم جمع عالمین راځي بیا عالم له الله تعالی نه سواه هر شي ته شامل دی جواهر دي که اعراض مصنّف رحمه الله د جواهر او اعراض پر ځای اجسام و نه ویلې چې «کل ماسواه من الاجسام» ځکه بیا «جزء لایتجزأ» پکې نه راتلو نو جواهر دي او که اعراض دي د اټول دلائل اینیه دی په الله جلّ جلاله باندې هغه داسې چې دا ټول کائنات دا ممکنات دي او ممکن کې خپل

وجود نه وي نو ده ته به وجود بل څوک ورکوي هغه بل څوک به ممکن نه وي ځکه ممکن د خپله خپل وجود موجد او علت نه وي يعنې موجد به ورله غیره نو هغه به واجب وي.

**(یو مشهور اعتراض)**

**سوال:** العالم متغير وكلّ متغير حادث په عالم کې نو دوه قوله وو يو دا چې دا وضع شوی لپاره د مجموعة الاجناس بل دا چې دا وضع شوی لپاره قدر مشترک په مابین د مجموعة الاجناس او هر جنس کې بهر تقدير په جزئي ئې اطلاق نه کیږي او د فلاسفه وو په نزد تغير په جزئیاتو کې راځي په کلیاتو کې نه راځي نو ته څنګه وائې چې العالم متغير او الزام کوې په فلاسفه وو باندې او فلاسفه خو دا نه مني چې العالم متغير يعنې په کلیاتو کې دې تغیر راشي؟

**جواب:** شیخ صاحب حفظه الله وائې چې دا جواب سا په خپله کړی هغه دا چې العالم کې الف لام دی او دا له لپاره د استغراق د افرادو راځي يعنې افراد د عالم مراد دي يعنې العالم متغير ای: افراد العالم متغير دا قضيه صحيح ده خو چې افراد ترینه مراد شي.

**تفسیر بیضاوي:** (فَاِنَّهَا لِاِمْكَانِهَا و افْتِقَارِهَا اِلَى مُؤَثِّرٍ واجِبٍ لِذَاتِهِ تَدُلُّ عَلَى وُجُودِهِ)

**ترجمه:** ځکه دا ټول ممکنات له وجهې د ممکن والي او احتياج والي نه يو مؤثر واجب لذاته ته محتاج دي چې دا ممکنات په وجود د هغه ذات دلالت کوي.

**تشریح:** ټول جواهر او اعراض په وجود کې يو مؤثر ته محتاج دي او دا مؤثر به واجب لذاته وي ممکن به نشي کیدلی ځکه که بل ممکن مؤثر شي بیا به اجتماع د نقیضینو راشي لکه بالفرض والتقدير دا ديوال دی او دا د کائناتو لپاره مؤثر شي اوس دا ديوال ممکن علت دی او کائنات ممکن معلول دی نو دا ممکن علت چې ممکن معلول موجودوي او راپیدا کوي نو ټول انواع د عدم به ئې ختموي بیا به ئې رپیدا کوي او يو د انواعو د عدم د ممکن معلول نه هغه عدم د ممکن دی (خپل عدم به هم ختموي) نو دا نه ده مګر اجتماع د نقیضینو دی غه داسې چې خپل عدم چې ختموي نو عدم به پکې وي او چې ختموي ئې نو دا علت شو او علت موجود وي نو د عدم په وخت کې هم موجود شو او هم معدوم شو دا خو داسې شو چې خپل عدم په خپله ختموي او که د ده عدم

بل ممکن ختموي بیا تسلسل راځي او تسلسل باطل دی نو ثابت شو چې د کائناتو مؤثر واجب لذاته دی بل ممکن نه دی .

**تفسیر بیضاوي**: (وَ انّما جَمعهُ لِیشمِلَ مَاتحتَه مِن الأجْناسِ المُختلِفةِ وَغُلِب العُقلاءُ منهمْ فَجمَعهُ بِاليَاءِ والنُونِ كسَائرِ أَوصَافِهِم)

**ترجمه**: او عالمین ئې جمع ذکر کړ چې شامل شي خپل ماتحت اجناسِ مختلفه وو ته او غلبه ورکړی شوي ده عقلاؤ ته له دوی نه نو جمع ئې کړه په یاء او نون سره لکه نور ټول اوصاف.

**تشریح**: دا عبارت دفع د یو اعتراض دی هغه دا

**سوال**: عالَم خو مجموعة الاجناس دی د ټولو اجناسو افرادو ته شامل دی ، سره له دې چې الف لام هم پرې داخل دی چې په الف لام سره هم د ټولو اجناسو افرادو ته شاملیږي نو بیا یې په صیغې د جمعې سره ذکر کولو ته څه ضرورت و.

**جواب**: هو په دغې سره هم مقصد حاصلیده خو دا یې لپاره د دفع توهم په صیغې د جمعې سره ذکر کړ هغه دا چې عالم د قدر مشترک لپاره هم وضع شوي دی په یو جنس یې هم اطلاق کیږي لکه عالم انسان نو متوهم به دا وهم کولو چې له دې نه به د یو جنس ټول افراد مراد وي نو د دې توهم د دفعې لپاره یې عالمین په صیغې د جمعې سره ذکر کړ.

دا (وَغُلِب العُقلاءُ منهمْ) عبارت هم دفع اعتراض دی.

**سوال**: دا قاعده دی چې په یاء او نون او واو او نون سره هغه الفاظ جمعه کیږي کوم چې صفات حقیقي د ذوی العقولو وي لکه سامعون او ضاربون او یا په حکم د صفاتو د ذوي العقولو کې وي لکه اعلام د ذوي العقولو (زیدون، خالدون چې د څو کسانو لپاره مشترک نوم شي) او دا عالمین خو نه له صفاتو حقیقة وو د ذوی العقولو څخه دی او نه له صفاتو حکمي د ذوی العقولو څخه دی بلکې دا خو ذوي العقولو او غیر ذوي العقول دواړو ته عام دی بیا یې په یاء او نون ی سره ولې جمع کړ ؟

**جواب**: ديکې تغليب دى يعنې غلبه ئې ورکړې ذوى العقول ته په غير ذوى العقول باندې له وجه د شرافت نه نو لکه څنګه چې نور صفات په يا، او نون سره جمعه کيده د غسې يې عالمين هم په يا، او نون سره جمعه کړو او کله چې تغليب بالعکس وشي نو هلته علت د کثرت د غير ذوى العقول وي.

**تفسير بيضاوي**: (وَقِيلَ اِسمٌ وُضِعَ لِذوِي العِلمِ منَ المَلآئِكةِ وَالثَّقلينِ وَتَناوَلهُ لِغَيرِ هُمْ عَلى سبِيلِ الاِستتبَاعِ)

**ترجمه**: او چا ويلي دي چې دا اسم د ذوى العلم لپاره وضع شوى دى چې ملائکې. انس او جن دي او صدق د دې په نورو اجناسو په طريقې د استتباع دى (نور د دې تابع دي).

**تشريح**: تر دې ځايه په عالم کې لومړى توجيه ذکر شوه چې عالم ماسواه الله ته ويلى شي دلته دويمه توجيه بيانوي.

**دويمه توجيه**: چا ويلي دي چې له عالم څخه ذوي العلم چې ملائکې، انسانان او پيريان مراد دي لکه ويلى شي: عالم الملائكة ،عالم الانسان او عالم الجن. بيا پيريانو او انسانانو ته ثقلين هم وايي ثقلين تثنيه د ثقل دى او ثقل دروند والي ته ويل کيږي او دوى ته ځکه ثقلين وايي چې دوى دواړه انس او جن په ځمکه ډير دي نو ځمکه ئې درنه کړې ده يا له وجهې د مکلفيت چې دواړه د الله جل جلاله له لوري مکلف دي ثقلين ورته وائي.

دا (وَتَناوَلهُ لِغَيرِ هُمْ) عبارت دفع دا اعتراض دى.

**سوال**: ستا له عبارت خو دا معلومه شوه چې الله تعالى يوازې د ذوى العلمو ربّ دى او اطلاق يې هم په ذوى العلمو کيږي او حال دا چې دا خو د ذوى العلمو او غير ذوى العلمو دواړو ربّ دى، ربوبيت د باري تعالى خو عام دى؟

**جواب**: هو الله تعالى د ذوى العلمو او غير ذوي العلمو دواړو رب دى او اطلاق يې هم په دواړو کيږي خو په غير ذوى العلم يې اطلاق په طريقې د تبعې سره کيږي چې تابع د ذوى العلمو دي.

**تفسير بيضاوي**: ( و قِيلَ عَنَى بِهِ (اى بالعالمين) اَلنَّاسُ هٰهُنا فاِنَّ كُلَّ واحدٍ مِّنهم (اى مِنَ النّاس) عالمٌ وَلِذالِک سُوِّى بينَ النَّظرِ فِيهما وقَال اللّٰهُ تعالى وَفِي اَنْفُسِكُم اَفَلَا تُبْصِرُوْن [1]).

**ترجمه**: اوځا ویلي دي چې مراد په عالمين سره انسانان دي دلته ځکه هر واحد د انسانانو ځان ځانته پوره عالم دی له دې وجه نه برابر دی نظر په عالم د انسان کې او په عالم د دنیا کې، الله جل جلاله فرمائي ستاسو په نفسونو کې (نمونې د قدرت دي) آيا تاسو نه ګورئ.

**دریمه توجیه**:

**تشریح**: دا دریمه توجیه ذکر کوي چې عالم نه مراد یوازې انسانان دي.

**سوال**: ستا له دې توجیه نه خو معلومه شوه چې الله جلّ جلاله یوازې د انسانانو ربّ دی بلکه الله جلّ جلاله خو دټول عالم رب دی یوازې د انسانانو د تخصیص فائده څه ده؟

**جواب**: انسانان ئې ځکه ذکر کړل او د ده د تخصیص فائده دا ده چې دا یوه نمونه او خلاصه د عالم دی فان کلّ واحد عالم هر انسان داسې دی لکه ټول عالم په قرآن کې هم انسان باندې د عالم اطلاق شوی دي (اتأتُونَ الذكرَان من العالمِن) ايا تاسو له انسانانو څخه نارينه و ته راتک کوئ! دغسې علي (رضي الله عنه) ته يو شعر منسوب دی هلته هم انسان ته عالم اكبر ويلی شوی دی لکه فرمايي:

دواؤك فيك وما تشعر ودواؤك منك فلا تبصر
اتزعم انّك جرم صغير وفيك انطو العالم الاكبر
وانت كتاب المبين الذى باحرفه يظهر المضمر.

**تفسير بيضاوي**: (وَقُرِءَ ربُّ العالمِينَ بِالنَّصبِ على المَدْج او النِّدآءِ أَو بِالفعلِ الّذِى دَلَّ عليهِ الحَمْدُ).

**ترجمه**: او ربّ العالمين په طریقې د مدحې سره منصوب لوستلی شوی او یا په طریقې د ندآء دی او یا په هغه فعل چې حمد و رباندې دال دی.

[1]:- سورة الذاريات: آية (٢١).

**تشریح**: دلته په رب العالمین کې نحوي بحث کوي فرمایي چې په دې کې یو قرأت د نصب دی قاضي صیب یې د نصب لپاره درې وجهې ذکر کوي.

(۱) په طریقې د مدحې یعنې دلته فعل د مدحې مقدر دي (اي امدحُ ربّ العالمین) نو رب العالمین د دغه مقدر فعل لپاره مفعول شي.

(۲) په طریقې د ندآء سره منصوب دی ( ای یا ربّ العالمین) رب العالمین به منادی مضافه منصوبه شي.

(۳) په طریقې د «نحمد یا أحمد» فعل مقدر کوم چې له مصدر د حمد نه مشتق دي نو تقدیر به داسې وي ای احمدُ ربّ العالمین.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَفیهِ دَلیلٌ علی أَنَّ المُمْکنات کمَا هیَ مُفتقِرةٌ الی المُحدِثِ حَال حُدوثِهَا فَهیَ مُفتَقرةٌ الی المُبقِی حَالَ بَقائِهَا).

**ترجمه**: او په رب العالمین کې دلیل دی په دې چې لکه څنګه دا ممکنات په وجود کې محدث ته په حال د حدوث کې محتاج دي نو هم دغسې په حال د بقاء کې باقي لرونکي ته هم محتاج دی.

**تشریح**: دلته د علم کلام یوه مسئله مستنبط کوي هغه دا لکه څنګه چې تمام ممکنات په وجود کې یو محدث ته محتاج دي دغسې په بقاء کې هم یو باقي ساتونکي ذات ته محتاج دي ځکه بقاء دیته وائې چې یو شی تر نیټې د قضاء او قدر د زوال او مختل کیدو نه محفوظ شي له هم دې وجهې نه ممکنات په بقاء کې الله جلّ جلاله ته محتاج دي اصل کې دا دلیل د دې خبرې لپاره بیانوي چې الله جل جلاله ځان ته ربوبیت ثابت کړی دی او رب وایي پالونکي او تربیت کونکي ته او تربیت په دې طریقې سره کیږي چې شي تر نیټې د قدر او قضاء له زوال او مختل کېدو محفوظ ورسیږي او همدا نوم د بقاء دی.

## (( الرحمن الرحیم ))

(٢)**تفسیر بیضاوي**: (الرَّحمنِ الرَّحِیم) کرّرهٗ لِلتَّعلِیلِ عَلیٰ مَا سَنَذْکرُهٖ )

**ترجمه**: رحمن او رحیم ئې د علت لپاره مکرر ذکر دي لکه موږ به یې زر بیان کړو.

**تشریح**: چونکه قاضي بیضاوي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) مسلکا شافعي دی تسمیه د سورت فاتحې جزء ګڼي نو ځکه ئې د تکرار لفظ ذکر کړ ځکه بعضې علماو له دې څخه د ستدلال کړی دی چې تسمیه له فاتحې جز نه دی ځکه که جز شي بیا خو تکرار لازمیږي رحمن او رحیم به مکرر ذکر شي نو قاضي صیب جواب ورکوي چې رحمن او رحیم د استحقاق حمد د علت بیانولو لپاره دی نو تکرار لازم نه شو.

## ( مَالک یوم الدّین )

(٣)**تفسیر بیضاوي**: (مَالك یوم الدّین وَقرءَهٗ عاصِمُ والْکَسائِي وَیعقوبُ ویَعضُده قوله تعالیٰ: یَوْم لَاتَملک نَفسٌ لِنَفسٍ شَیْئًا والامرُ یَومَئذٍ لله)

**ترجمه**: هسې رب چې مالک دی د ورځې د جزاء دا قرآئت د عاصم، کسائی او یعقوب حضرمي رحمهم الله دی د دې تقویه او تائد دا قول د الله تعالی کوي چې د قیامت به هغه ورځ وي چې یو نفس مؤمنه به د بل نفس کافر له د هیڅ شي مالک نه وي او امر به په د غه ورځ خاص الله جلّ جلاله لره وي.

**تشریح**: په مالک یوم الدّین کې درې کلمات دي (١) مالک (٢) یوم (٣) الدین د دې هرې کلمې جلا جلا بحث او تحقیق کوي.

**لومړی بحث**: په مالک کې ټول څلور قرأته دي دوه شاذ دي او دوه قرآئتونه متواتر دي.

## متواتر قرأتونه

**اول**: مالک یوم الدّین او دویم مَلِک یوم الدّین بیا مصنّف رحمه الله وائي چې په دې دواړو قرآئتونو کې راجح قرآئت د مَلِک یوم الدّین دی. او نور مفسّرین لکه علّامه الوسي رحمه الله صاحب د روح المعاني وائي چې راجح مَالِک یوم الدّین قرآئت دی همدا قرأت د عاصم، یعقوب، او امام کسايي رحمهم الله هم دي دوی د خپلې دعوي لپاره دوه دلایل وایي چې یو نقلي دی او بل عقلي دی.

**دلیل نقلي**: مَالِک یَومَ الدین د دې درې واړه قاریانو قرآئت دی او تائید یې دا آیت مبارکه
1 کوي چې (یَوْم لَاتَملک نَفسٌ لِنَفسٍ شَیْئًا) دی، هغه داسې چې دلته الله جلّ جلاله په (یَومَ لاتَملک)کې تملیک ذکر کړی دی او دا له باب دضَرَبَ یضرِبُ څخه دی او دا چې له باب د ضرب یضرب نه شې نو دا بیا مشتق له ملک څخه دی مَلک څخه نه دی ځکه مَلکَ شفت مشبه دی او صفت مشبه نه لازمي باب څخه مشتق کیږي او متعدي کیږي په علی (حرف جر) او دلته تملک متعدي دی بالذات نو که له مُلک څخه وائې نو پکار ده چې په علی سره متعدي شوی وائی او بل دا چې په دې آیت (یَوْم لَاتَملک) کې نفي د مالکیت دی د بادشاهي نه دی مِلک او مالک یوشی دی او مُلک مَلک یوشی دی نو معلومه شوه چې دلته هم مالک دی ملک نه دی.

**سوال**: ( وَالاَمرُ یَومَئذٍ لله ) په دې دلالت کوي چې تملیک له مُلک څخه دی ځکه دېکې الله جل جلاله خپل ځان ته امرثابت کړی او امر په مُلک کې وي په مِلک کې نه وي ځکه امور بادشاه کوي او تا خو اوس وویل چې مِلک او مُلک جدا جدا شیان دي.

**جواب**: آمر په دوه قسمه دی یو هغه دی چې جمع یې اوامر راځي او بل هغه دی چې جمع یې امور راځي نو که امر مفرد د أوامر شي بیاخو دا له خواصو د بادشاه څخه دی خو امر مفرد د امور دی او امور اشیاء وو ته وائې او اشیاء له خواصو د بادشاه څخه نه دي.

**دلیل عقلي**: یو مِلک دی بل مُلک دی په دې کې فرق دادی مِلک وائی تصرف فی الاعیان المملوک بالاوامر وبغیره یعنې تصرف کوي په اعیانو د مملوکة کې.

مُلک وائې تصرف فی المأمورین فقط: یعنې تصرف کول په مأمورینو کې فقط نو مِلک عام شو او مُلک خاص شو نو له دې وجهې نه مالک راجح شو ځکه دامعنی اعمه ده او په اعم کې مبالغه وي.

**تفسیر بیضاوي**: (وَقرأَ البَاقوْنَ مَلِك وهُو المُختارُ لأَنَّهُ قرآءةُ أَهل الحرَمَين وَلِقوله تعالی لِمَنِ المُلك الیوم [1] وَ لِما فیه مِنَ التَّعظیْم).

---

(۱):- سورة الغافر: آیة ۱۵.

**ترجمه**: او باقي قاريانو مَلِک لوستلی دی او دا راجح دي ځکه چې د اهل حرمينو قرآئت دی او له وجهې ددې قول د الله تعالى نه (لِمَنِ المُلک اليَوم) دچې لپاره دی بادشاهي دنن ورځ او بل له دې وجې نه چې په مَلِک کې تعظيم دی.

**تشريح**: دا دويم قرأت متواتره بيانوي چې دا د اکثره قاريانو قرآنت دی او دا مصنف په نزد راجح هم دی د رجحان لپاره يې درې وجهې بيانوي.

(١) دا د اهل حرمينو قرأت دی او اهل حرمين اعلم بالقرأت دي:

ابن جريج دی او دا امام بخاری رحمه الله استاذ وو او لوی محدث وو خو يوه خبره پکې وه هغه داچې مدلس وو او هم به ئې متعې ته جائز ويلې اونوي (٩٠) متعې ئې کړې وي په مکه مکرمه کې د ده دا قرآئت دقاضي بيضاوي رحمه الله په نزد هم غوره دی او د دې لپاره اول دليل دا دی چې دا داهل حرمينو قرآئت دی.

(٢) دا (لِمَنِ المُلک اليَوم) دويم دليل دی چې دا مَلِک[1] دی ملک نه دی ځکه په دې آيت کې صراحتًا مُلک ذکر دی او الله تعالى په وورځ د قيامت کې ځان ته مُلک او بادشاهي ثابته کړې دی نو په مالک يوم الدين کې هم دغه قرأت کول بکار دي چې د دواړو اياتو په معنا کې مناسبت پيدا شي او مناسبت هغه وخت پيدا کيږي چې «مِلک» ولوستلی شي ځکه مِلک له مُلک نه مشتق دی له مالک څخه نه دي.

(٣) دا (وَ لِمَا فيه مِنَ التَّعظيْم) دريم دليل دی د قرآئت مَلِک لپاره هغه دا چې په مَلِک کې تعظيم او عظمت دی په مالک کې تعظيم نشته اوس دا خبره چې په مِلِک کې څنګه تعظيم دی د دې لپاره درې وجهې بيانوي.

**تفسير بيضاوي**: (وَ المَالِك هو المُتصَرِّف فِي الأَعيَانِ المَمْلوكَةِ كيْفَ شاءَ مِن المِلكِ والمَلِك هُو المتَصرِّف بِالأَمرِ والنَّهِي فى المَأْمُورِينَ المُتصرِّفُ مِن المُلْكِ)

**ترجمه**: او مالک متصرف دی په اعيان مملوکه وو کې څنګه ئې چې اراده وي او دا مأخوذ له مِلک څخه دی او مَلِک متصرف دی په او امرو او نواهيو سره په مأمورينو کې او دا له مُلک څخه مأخوذ دی.

---

(١) :- مَلِک نه مأخوذ ده اوا آيت دمُلک تائيد کوي

**تشريح**: په دې عبارت سره مصنف د ملِک قرأت لپاره د ي وجهې د عظمت بيانوي:

**لومړۍ وجه**: دا چې مالک وايي په اعيان مملوکه و کې تصرف کلولو ته په اوامرو سره وي يا غير له اوامرو څخه وي او اعيان مملوکه کله ارزل وي او کله اشراف د ارزل مثال لکه خره غو ايان او داسې نور د اشرف مثال لکه وينځې او غلامان.

او ملِک وائي په مأمورينو کې تصرف کولو ته په اوامرو او نواهيو سره او د ملِک په مامورينو کې احرار(ازادخلق) هم شامل دي نو د چا ملکيت چې په احرارو وي هغې کې تعظيم وي په نسبت سره هغه ته چې ملکيت يې يوازې په غلامانو وي.

**دويمه وجه**: د مالک په مُلک کې قليل او کثير دواړه راتللی شي او د مَلِک په مُلک کې يوازې کثير وي او په کثرت کې عظمت وي.

**دريمه وجه**: مالک هر سرى کيدلى شي او ملِک يوازې اعظم الناس وي.

قاضي بيضاوي رحمه الله قرائت دمَلِک ته ترجيح ورکړه خو صاحب دروح المعانى قرائت دمالک ته ترجيح ورکوي او دا دليل وائي چې په مالک کې يو حرف زيات دی له مَلِک څخه چې هغه الف دی او په حديث شريف کې راځي.

(عن عبدالله بن مسعود قال: قال رسول الله صلّى الله عليه وسلم من قرء حرفًا من كتاب الله فله به حسنة والحسنة بعشرٍ امثالها لا اقول آلمّ حرفٌ ولكن الف حرف ولام حرف وميم حرف)[1].

**ترجمه**: نبي (عَلَيْهِالسَّلَامْ) فرمائي: چې چا يو حرف د قرآن تلاوت کړ ده لره يوه نيکى ده اويوه نيکى په لسو حسابولی شي زه دا نه وايم چې آلمّ يو حرف دی بلکې الف ځانته لام ځانته او ميم ځانته او جلا حرف دی او بل حديث کې راځي چې چا يو حرف دقرآن تلاوت کړ هغه ته به الله جلّ جلاله لس نيکۍ

---

(١)- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الحَنَفِيُّ قَالَ: حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ كَعْبٍ القُرَظِيَّ يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، وَالحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، لَا أَقُولُ الم حَرْفٌ، وَلَكِنْ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ» رواه سنن الترمذي رقم الحديث: ٢٩١٠ والدارمي

ورکوي او لس به ئې ګناهونه معاف کوي او لس به مرتبې اوچتوي نو په مالک کې دیرش (۳۰) زیاتــه دي په نسبت سره مَلک ته نو ځکه مَالک راجح دی خو دواړه قرأته متواتر دي يو ته هم ضیف نه شې ویلی بلکې شیخ شهاب الدین رحمه الله ویلي دي چې زه په یو رکعت کې ملک او بل رکعت کې مَالک لولم.

**تفسیر بیضاوي**: (وقُرِءَ مَلْک بالتَّخْفیفِ و مَلَک بِلفظِ الفِعل)

**ترجمه**: او لوستلی شوی مَلک په تخفیف سره او مَلَكَ په لفظ د فعل ماضي هم لوستلي شوی.

**تشریح**: دلته مصنف په مَلِک یَوم الدّین کې دوه شاذ قرأتونه ذکر کوي.

## شاذ قرأتونه

په شاذ قرأتونو کې لومړی قرأت دا دی چې (مَلْک يَوم الدّين) دی يعنې په سکون د لام سره او دا مَلک په اصل کې مَلِک دی کسره دلام حذفه کړی شوه او لام ته سکون ورکړی شو لپاره دتخفیف ځکه چې کوم فعل مکسور العین وي د هغې عین کلمې ته سکون هم تخفیفاً ورکولی شي.

په (وَ مَلَك بِلفظِ الفِعل) سره دویم شاذ قرائت ذکر کوي او په صیغې د فعل سره دی ،مخکې درې قرآئتونو کې صیغه د اسم وه په اول کې صیغه د اسم فاعل وه په دویم او دریم قرأت کې صیغه دصفت مشبه وه او دا قرائت امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله ته منسوب دی او ځینې علماو دې قرأت ته ترجیح ورکړې دی ځکه چې کله مَلَک صیغه د فعل ماضي شي نو احتمال د مُلک هم پکې دی او احتمال د مِلک هم پکې دی يعنې يا مأخوذ دمُلک څخه دی يا د مِلک څخه دی ؛نو چې کله ملک صیغه د فعل شي نو يوم الدین به یې مفعول به وي.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَمَالِكًا بالنَّصبِ عَلى المَدْح او الحالِ وَمَلِكُ بالرّفع منونًا ومضافًا على انّه خَبَرُ مبتَداءٍ محذوف)

**ترجمه**: او مالګا په نصب سره بناؤ په مدحه او يا په حال باندې دی او يا مالک مرفوع (په تنوین سره) او يا مضاف بنا په دې چې دا خبر دمبتداء محذوفې دی.

**تشریح**: دلته په مالک کې د اعراب اعتبار سره دوه صورتونه بیانوي.

ملک په کسرې سره لکه په تېر سبق کې مو وویل چې دا صفت دی لپاره د لفظ الله لکه څنګه یې چې الرحمن الرحیم صفتونه وله دې پرته دلته دوه نور صورتونه دي یو د نصب بل د رفعې.

(۱) مَالکًا منصوب دی د نصب یې بیا دوه وجهې دي یا به مفعول وي لپاره د فعل مقدر ای اَمدَحُ مالکًا یوم الدین او یا به بې نصب بنا بر حالیت وي ای الحمدُ لله حال کونه تعالی مَالکًا یَوم الدّین.

(۲) مالک مرفوع دی او د رفعې لپاره یې هم دوه صورتونه دي (۱) مُنوّن (په تنوین سره) دی هو مَلکٌ یوم الدین یوم منصوب ده بنا بر ظرفیت (۲) دوهم چې مضاف ئې کې یَوم ته هو مَالکُ یَوم الدّین خو دا رفعه یې بنا ده په خبریت د مبتداء محذوفې ای هو مَالک یَوم الدّین.

**تفسیر بیضاوي**: (ومَلِك مضافًا بالرّفع والنّصب)

**ترجمه**: او مَالک چې مضاف دی په رفع او نصب سره یې لوستلی شي.

**تشریح**: تر دې ځایه یې په مَالک کې درې اعرابه بیان کړل اوس وایي چې په مَلک کې هم درې اعرابه دي یو د کسرې چې صفت شي لپاره د لفظ د الله دویم مرفوع چې خبر د مبتداء محذوفې شي هو مَلک یَوم الدّین دریم منصوب چې مفعول شي لپاره د فعل محذوف اَمدَح مَلک یَوم الدّین.

## (يَومَ الدّين).

**تفسیر بیضاوي**: (وَيَوم الدّينِ يومُ الجزاءِ وَمِنه كَمَا تُدِينُ تُدَانُ وَبيْت الحَمَّاسَةِ ولَم يَبقِ سِوَى العدوانُ. . . دَنَّا هم كَمَادَانُوا)

**ترجمه**: یوم الدّین ورځ د جزاء ته وائي او د دین دغې مادې نه دا محاوره مأخوذ ده لکه څنګه دي چې څا سره وکړل هغسې جزاء به درکولی شي لکه څنګه چې د دیوان حماسه بیت دی د دښمن نه سوا بل څه نشو پاتي نو جزاء مو ورکړ لکه څنګه ئې چې مونږ ته جزاء راکړې وه.

**تشریح دویم بحث**: دا بحث په کلمه د یوم کې دی د یوم تشریح کوي چې د یوم لپاره درې معاني دي (۱) یوم لغوي په معنی د مطلق وخت (۲) یوم عرفي په معنی د من طلوع الشمس الی غروبها (۳) یوم شرعي په معنی د من طلوع الفجر الی غروب الشمس.

په دې درېوارو معناګانو کې کومه معنی مراد دی فرمائي چې معنی لغوي مراد دی ځکه دلته حالات د قيامت بيانيږي او په معنی عرفي او شرعي کې طلوع او غروب مراد دي او په ورځ د قيامت کې طلوع او غروب نشته، د کلمه د دين لپاره هم درې معناګانې دي.

(۱) په معنی د جزاء سره.

(۲) په معنی شريعت.

(۳) په معنی اطاعت.

کله چې په معنی د جزاء سره وي بيا يې تقدير ته ضرورت نشته اې مالک وقت الجزاء او که دين په معنی د شريعت او اطاعت سره وي نو هلته به حذف د مضاف کوي چې کلمه د جزاء دی اې مالک يوم الجزاء الشريعت او يا مالک يوم الجزاء الاطاعت خو داذواړه ترجمې ضعيفه دي.

د اولې معنا په اعتبار سره په دين او جزا کې فرق دی هغه دا چې دين د خپل بدل مساوي ته وايي او جزا عامه دی د بدل مساوي وي او که کمه يا زياته وي لکه يو مشهور متل دی کما تدين تدان اې کما تصنع تجازي په مثال کې تدان په معنی د بدلې ورکولو سره ده يعنې د دين دويمه معنی مراد ده.

او د حماسې شعر هم په دې معنا کې استعمال شوی دی يعنې دين په معنا د جزا دی شعر داسې دی فلمّا صرح الشّرّ فامسي وهو عريان . . . ولم يبق سِوی العُدوان. دناهم کما دانوا.

**ترجمه:** هرکله چې دواړو قبيلو په منځ کې جنګ ونښته په داسې حال کې چې دا جنګ بربنډ وو (شديد وه) نو باقي پاتې نشو سِوا د دښمن نه نو مونږ هم هغسې جزاء ورکړه لکه څنګه ئې چې مونږ ته راکړې وه.

**تفسير بيضاوي:** (اَضافَ اسْمُ الفَاعِلِ الى الظَّرفِ اِجراءً لهُ مَجری المَفْعول بِه عَلَی الاِتِّسَاعِ کقولهم يَا سَارِقَ اللّيلةَ أهلَ الدّارِ مَعناهُ مَلک الأُمورِ يَوم الدّين).

**ترجمه:** اضافت د اسم فاعل ئې ظرف ته کړی دی له وجهې قائم کولو د يوم په مقام د مفعول به کې په طريقه د پراخې لکه دا ترکيب اې غلاکونکيه د شپې د اهل دار نه معنی د دې دا چې مالک د امورو د ورځې د جزاء دی.

**تشريح**: دلته يو اعتراض واردېږي هغه دا چې مَالک صيغه د اسم فاعل دی دا مضاف دی او يوم الدّين مضاف اليه دی او دلته اضافت د اسم فاعل خپل معمول ته شوی ځکه يوم ظرف دی تسوع پکې شويده جار مجرى د مفعول دی يعني يوم مفعول به دی نو مالک صيغه د اسم فاعل دی خپل مفعول ته مضاف شوي او اسم فاعل چې خپل مفعول ته مضاف شي هغې ته اضافت لفظي وائي نو په مالک يوم الدّين کې اضافت لفظي راغی او اضافت لفظي خو افاده د تعريف نه راولي نو په صفت کې تعريف نشته چې مالک دی او په موصوف کې شته چې لفظ د الله جلّ جلاله دی نو مطابقت رانغلو په مابين دصفت او موصوف کې ؟

(١)**جواب**: مالک صيغه د اسم فاعل دی خو د دې معمول يوم الدّين نه دی نو خپل معمول ته نه دی مضاف شوی بلکه غير معمول ته مضاف شوی چې الامور دي مالک الامور يوم الدّين لفظ د يوم توسعاً د هغې قايم مقام ګرځول شوی دی لکه څنګه په «ياسارق الليلة اهل الدار» کې لفظ د ليلة کوم چې ظرف دی قايم مقام د مال مسروقه دی اصل عبارت داسې دی (ياسارق المال فی الليلة)نو چې اضافت د اسم فاعل خپل معمول ته ونشي هلته اضافت معنوي راځي او هغه افاده د تعريف او تخصيص کوي نو مطابقت راغی په صفت او موصوف کې.

(٢)**جواب**: صيغه د اسم فاعل چې مضاف شي خپل معمول ته هلته اضافت لفظي وي خو هغه وخت چې دا صيغه د اسم فاعل په معنی د حال يا استقبال سره وي او دلته په معنی د فعل ماضي سره ده.

(٣)**جواب**: صيغه د اسم فاعل چې مضاف شي خپل معمول ته هلته اضافت لفظي وي خو هغه وخت چې دا صيغه د اسم فاعل په معنی د حال يا استقبال سره او دلته په معنی د استمرار سره دی

**سوال**: صيغه د اسم فاعل لکه تاسو په ميرزاهد کې ويلي چې حرف مشتقي قيام د مبدأ غواړي لکه تا ته زه ضارب وايم نو دلته درې صورتونه دي يا به په معنی ماضي کې ظرف وي يا به ئې په استقبال کې ظرف کوي يا به فی الحال مباشر له ظرف سره وي که په استقبال کې دی ظرف کوي او اوس زه در ته ضارب وايم نو دا مجاز دی اتفاقًا او که په ماضي کې ئې ظرف کوي او اوس

زه درته ضارب وايم نو وائ چې دا مجاز دی اختلافًا او که په حال کې ئې ظرف کوي نو دا حقيقت دی نو مالک همدا سې دی که په استقبال کې ظرف کې او اوس ورته مالک وايي دا به مجازوي ؟

**جواب** : د مالک دا معنا نه دی چې په استقبال کې مالک ـ ی بلکه معنا دادی چې په ماضي کې مالک شوی او په حال کې هم مالک دی اينده به هم مالک وي.

**سوال**: ته وائي چې مالک يوم الدّين مالک دی له اوس نه د امورو د ورځې د جزاء او امورو د قيامت خو لانشته نو د څه شي مالک دی؟

**تفسيربيضاوي**: (عَلٰى طَرِيْقَةِ(وَنَادى اصحاب الجنَة ﴿۱﴾ أَوْ لَهُ الْمُلْک فِى هَذ الْيَوْمِ على وَجْه الِاستِمرَار لِتكونَ الِاضافَةُ حَقيقِيَّةً مُعِدّةً لِوُقوعِه صفَّةً لِلمَعرفة) .

**ترجمه**: په طريقه د دې آيت چې وَنَادَى اَصحَابَ الجَنَّة) اواز به ووکي صاحبان د جنت او يا ده (الله) لره باذشاهي ده په دې ورځ په طريقې د دوام سره د دې لپاره چې اضافت حقيقي شي کوم چې په «مالک» کې د معرفې لپاره د صفت واقع کېدو صلاحيت پيدا کوي.

**تشريح**: جواب دا له وجهې دتحقق د وقوع نه يې تعبير په ماضي شوی يعني کالمتحقق دی لکه په دې آيت کې نَادَی ماضي دی او حال دا چې دوی به اوازه د قيامت نه روسته کوي .

دا هغه دريم جواب دی او له اضافت حقيقي څخه مراد د اضافت معنوي دی او دا هم دفعه د اعتراض ده هغه دا چې مالک يوم الدين صفت د «الله» واقع شوی دی او هغه معرفه ده او دا جمله نکره ده نو مطابقت په مابين د صفت او موصوف کې رانغلو نو دا جواب ورکوي چې ستا اعتراض به هغه وخت وارد و چې دا اضافت لفظي وای بلکې دا اضافت معنوي ده او اضافت معنوي تعريف فايده کوي . کما مرا.

(۱):- سورة الاعراف: آية ٤٤.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَقِيْل الدِّينُ الشَّرِيْعَةُ وَقِيل الطَّاعَةُ وَالمعنى يوِمُ جزَاء الدِّينِ).

**ترجمه**: او چا ویلي چې دین په معنی د شریعت دی او چا ویلي چې دین اطاعت ته وائي او معنی ئي داده چې مالک د روځې د جزاء د شریعت او یا مالک د ورځې د جزاء د اطاعت.

**تشریح دریم بحث**: دا دوه معاني ئې د دین روسته ذکر کړې ځکه په دې کې حذف د مضاف ته ضرورت دی.

## د دین ، ملة ، اسلام او شریعت تر منځ فرق

دین ، ملة، اسلام او شریعت معنی واحده ده فرق پکې اعتباري دی:

(۱). ملة ورته په دې اعتبار وايي (لانه تکتب وتملی) یعنې چې د دې کتابت او املاء کیږي.

(۲). او دین ورته په دې اعتبار سره وايي چې په دې کې جزا او بدله داعمالو ورکولی شي.

(۳). اسلام ورته په دې اعتبار سره وایي چې په د دې انقیاد او تابعداري کیږي.

(۴). او شریعت ورته په دې اعتبار سره وایي چې دا واضحه او ظاهره لار دی.

**سوال**: دین په معنی د شریعت او طاعت نه صحیح کې ځکه بیا به معنی داشي (مالک یوم شریعت) او (مالک یوم طاعت)

**جواب**: دلته ته حذف د مضاف دی یعنې مالک یوم جزاء الشریعت و مالک یوم جزاء الطاعت.

**تفسیر بیضاوي**: (وتَخصيصِ اليَومِ بِالِاضافةِ اِمَّا لِتعظيمِه أَو لِتفَرُّدِهِ تعالى بِنفُوذِ الأُمُورِ فيهِ).

**ترجمه**: او تخصیص د یوم په اضافت سره یا خو له وجې د عظمت د یوم دی او یا له دې وجې نه چې په دغې ورځ به یوازې د الله امر نافذیږي.

**تشریح**: داعبارت دفعه دیو اعتراض د هغه دی

**سوال**: مالکیت د الله جلّ جلاله یې ولې خاص کړ تر ورځ د قیامت پورې، الله جلّ جلاله لکه څنګه چې د ورځې د قیامت مالک دی دغسې د غیر قیامت هم مالک دی یعنې دټولو امکنه وو او ازمنه وو مالک دی؟

قاضي (رَحِمَهُ ٱللَّهُ) د دې لپاره دوه جوابه کوي :

**اول جواب**: دا چې دیکې عظمت ته اشاره دی چې د آخرت تصرفات په مقابل د تصرفاتو دنیا کې عظیم دي.

**دوهم جواب**: په دنیا کې حقیقي مالک الله جلّ جلاله دی خو مجازي مالکان هم شته اما په آخرت کې مجازي مالکان نشته هلته به تصرف د الله جلّ جلاله وي یعنې هلته بل نه ظاهري بادشاه شته او نه باطني شته یوازې به د الله جلّ جلاله امر نافذیږي.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَاجراءُ هذهِ الأَوصافِ على اللهِ تَعالى مِن كَوْنِهِ مُوجِداً لِلعَالمينَ رَبّاً لَهم مُنعِمًا عَليهِم بِالنِّعمِ كُلِّها ظاهِرِهَا وبَاطِنِها عَاجِلِها وَأَجِلِها مَالِكًا لأُمُورِ هم يَوم الثَّوابِ والعِقابِ لِدَّلالَةِ عَلى أَنّه الحقيقُ بالحمدِ لَاأَحدٌ أَحقُّ بِهِ منهُ).

**ترجمه**: او صدق د دې اوصافو په الله جلّ جلاله باندې له دې وجهې دی چې الله جلّ جلاله ایجاد کونکی د مخلوقاتو دی چې پالونکی د دوی دی انعام کونکی په دوی دی په نعمتونو ټولو سره که ظاهر انعامات دي که باطن دی نقد دي که نیټه دار دي او مالک د دوی دی د امورو په ورځ د ثواب او عقاب لپاره د دلالت کولو په دې خبره چې الله جلّ جلاله حقدار د حمد دی او بل هیڅوک د الله جلّ جلاله نه حقدار د زیادت حمد نه دی.

**تشریح**: دلته مصنف د دغه څلور اوصاف چې (۱) ربّ العالمین دی(۲) الرّحمن(۳) الرّحیم (۴) مالک یوم الدّین دی د ذکر کولو او د خاص کولو تر الله جلّ جلاله پورې وجه او لامل بیانوي.

## منطوق او مفهوم د صفاتو

یو منطوق دی د دې اوصافو دی او بل مفهوم دی:

**منطوق**: دا دی چې معبود به هغه څوک وي چې ربّ العالمین وي الرّحمن وي الرّحیم وي مالک یوم الدّین وي.

**مفهوم**: دا دی چې په چاکې دا څلور صفته نه وي هغه مستحق د عبادت نه دي د شوافعو په نزد خو مفهوم باندې څه اشکال نه راځي ځکه شوافع مفهوم مخالف معتبروي احناف خو د مفهوم

مخالف قایل نه دي نو بیا له دې ایت نه څنګه د غیر د استحقاق نفي رافهموي په ایت کې خو صرف د ذات د باري تعالی لپاره استحقاق د حمد ثابت دی او له غیر نه نفي نه دی راغلې.

**جواب**: دا څلور صفته علت د عبادت شو او په انتفاء د علت سره انتفاء د معلول راځې نو چې دا اوصاف اربعه په چاکې نه له هغه څخه به استحقاق د عبادت هم منفي وي.

(من کونه موجدا للعالمین) داول صفت دی.

**سوال**: موجدا للعالمین خو مخکې په صفاتو کې نه دی ذکر شوې ؟

**جواب**: فرمائي چې ربّ په موجد دلالت کوي هغه داسې چې رَب وائې: «تبلیغ الشئ الی کماله شیئًا فشیئًا» نو په صفاتو کې الله پاک انسان کمال ته رسوي یعنې په توابعو کې یې کمال ته رسوي او په توابعو کې کمال ته هغه څوک رسول کوي چې په متبوع کې ئې کمال ته رسوي او په متبوع کې کمال ته رسول ایجاد دی نو د «رب العالمین» معنا شوه موجد العالمین.

او د الرحمن الرحیم نه دا خبره ثابته شوه چې الله تعالی د ټولو انعاماتو منعِم دی هغه که ظاهر سره تعلق لري او که باطن سره قوري نعمتونه دي که نېټه دار دي ، او له مالک یوم الدین څخه دا ثابته شوه چې الله جل جلاله د تمام عالم د امورو مالک دی .

په دې (لَاأَحدٌ أَحقُّ بِهِ منهُ) عبارت سره معترض اعتراض کوي هغه دا چې

**سوال**: احقّ خو صیغه د اسم تفضیل دی معنا یې دا چې زیات حقدار نشته ،په دې سره خو تا نفی د زیات حقدار وکړه د مطلق حقدار نفي خو دې ونکړه یعنې مطلق حقدار د حمد خو شته!!

**جواب**: په لاندې عبارت سره جواب کوي هغه داسې چې په حقیقت کې د نفس استحقاق د حمد هم په حقیقت کې غیر الله ته نه دی ثابت نو دلته حصر دا استحقاق د حمد د واجب تعالی لپاره حقیقي دی

**تفسیر بیضاوي**: ( بَل لَایستحِقُّه عَلَی الحَقِیقةِ سِواهُ فَانَّ تَرتِیبَ الحُکم علی الوَصْفِ یُشعرُ بِعِلیّتِهِ لَه)

**ترجمه**: بلکه مستحق د حمد په حقیقت کې سواه د الله جلّ جلاله نه بل څوک نشته ځکه

ترتب په وصف تنبه کونکی وي په علت د دغې وصف حکم لره (دحکم نه مراد حمد دی او وصف نه داخلو صفات دي)

**تشریح**: دا عبارت اصلاً د ريې قاعدې په طرف اشاره دی.

**قاعده**: يو حکم چې مرتب شي په مشتقي باندې نو مبدأ الاشتقاق (مصدر) د دې مشتقې د دغه حکم لپاره علت وي ټول محامد الله جلّ جلاله لره دي ځکه الله جل جلاله پالونکی د ټولو مخلوقاتو لپاره دی اکتساب درب الله جل جلاله لره دی نو دلته علت ربوبيّة شو نو په الرّحمن الرّحيم کې هم دغه خبره دی نو ترجمه به داکوې چې الله جلّ جلاله رحمن او رحيم دی ولې ؟ لرّحمانيّة ولرحيميّته علت يې رحمانيت او رحيميت دی اومالک يوم الدّين دی ولي؟ لمالکليته علت يې مالکيت دی نو دا ټول صفات به مجموعه علت وي لپاره د استحقاق د حمد او په غيز کې به د دې ټولو اوصافو يو فرد هم نه موندل کيږي.

**تفسير بيضاوي**: ( وَلِلإِشْعار مِن طريقِ المَفْهومِ عَلى أَنَّ منْ لمْ يَتَّصِفْ بِتِلك الصِّفاتِ لَايَستَأْهلُ لأَنْ يُحْمَدَ فضلًا عنْ أَنْ يُعبَدَ لِيكونَ دلِيلًا على مَابَعدَهُ).

**ترجمه**: او دا لپاره تنبه د مفهوم مخالف دی نو څوک چې په دغه صفاتو مذکوره وو متصف نه وي هغه د حمد کولو لائق هم نه وي لا زياتي دا چې عبادت ئي وکړی شي چې شي دليل په مابعد باندې.

**تشريح**: اى و اجراء هذه الاوصاف على الله للاشعار. په اشعار سره مراد د قاضي (رَحِمَهُ اللّٰهُ) سلب لازم د اشعار دی هغه داسې چې تربية علت دی او خاص دی تر الله جل جلاله پورې اشاره دېته دی چې غير لره حمد مختص نه دی ځکه عدم علت مستلزم دی عدم معلول لره چې هغه (غير) مربى نه دی، تربية علت دی او اختصاص د حمد معلول دی چې غير لره علت (تربيه) ثابت نه شو نو معلوليت هم ورلره ثابت نشو چې حمد دی او دا خبره چې غير لره اختصاص د محامدو ولې نشته ؟ هغه ځکه چې غير لره تفضل (رحمانية او رحيمية) نشته چې علت د اختصاص د محامدو دی.

(لِيكونَ دلِيلًا على مَابَعدَهُ) له مابعد نه مراد اياک نعبد دی نو دا نفي د حمد د غير نه دی د راروان تخصيص لپاره دليل دی چې يا الله خاص تا ته بندګي کوو.

**تفسير بيضاوي**: ( فَالوَصف الأَوّل لِبيانِ مَا هو المُوجِبُ لِلحمدِ و هو اِيجادُ وَالتَّربيَةِ وَالثَّاني وَالثَّالثُ لِلدلالَةِ عَلى أَنَهُ مُتفضِّلٌ بِذالك مُختَار فِيهِ).

**ترجمه**: نو وصف اول چې رب دی لپاره دبيان : هر هغه شي دی چې موجب د حمد دی چې هغه ايجاد اوتربيت دی او وصف ثاني اوثالث چې رحمن او رحيم دی لپاره دلالت کولو چې الله جلّ جلاله مهربان دی په مخلوق باندې او دې مهرباني کې اختيارمند دی.

**تشريح**: تر دې ځايه اجمالي فوايد بيان شول اوس تفصيل کوي نو فرمايي چې وصف اول چې رب العالمين دی په ايجاد اوتربيت دلالت کوي او ايجاد او تربيت موجب د حمد دی نو باري تعالی يره استحقاق د حمد ثابت دی.

او دويم او دريم وصف چې رحمن او رحيم دي په دې دلالت کوي چې الله تعالی په خپلو انعاماتو کې مختار دي انعام په د تفضل او احسان په طور کوي.

او د مصنّف دا عبارت توطيه اوتمهيد دی لپاره د رد کولو په هغه دوه فرقو وو چې فلاسفه او معتزله ذي نو په دې سره په دواړو فرقو باندې ردّ کوي.

## (رد په فلاسفه اومعتزله وو)

فلاسفه اومعتزله وائي چې الله جلّ جلاله په صدور د مخلوق کې يعنې پيدا کولو کې مضطر دی يعنې غير اختياري ترينه صادر شوي دي لکه رڼا له لمر نه چې غير اختياري صادره شوي ده دغه شان معتزله وائې بدله د اعمالو حسنه وو په الله جلّ جلاله واجب ده نو مصنّف په دې عبارت سره پرې رد وکړ.

**تفسير بيضاوي**: ( لَيسَ يَصدُرُ منهُ لِايجَابٍ بِالذّات أَو وُجوبٍ عَليهِ قِضيةٍ بِسَوَابقِ الأَعمالِ حتّى يستحقّ به الحمد).

**ترجمه**: دا تفضل او ايجادات د الله جلّ جلاله نه په سبب د ايجاب بالذات نه صادريږي (اضطرارًا) يا د دې تفضل وجوب په الله جلّ جلاله باندې نشته د وجهې د تقاضا د سابقو اعمالو تر دې چې الله جلّ جلاله دې تفضل سره مستحق د حمد اوګرځي.

**تشريح**: دا «قصيره سوابق الاعمال» د «وجوب عليه» لپاره علت دى معتزله وائي چې جزاء د اعمالو په الله جلّ جلاله باندې واجبه ده ثواب د مطيع او عقاب د عاصي په الله جلّ جلاله واجب دى لكه چې ثواب د مطيع په الله جلّ جلاله واجب شو نو بيا خو دا تقاضا د عمل د مطيع شوه نو الله جلّ جلاله لپاره خو تفضل ثابت نشو چې تفضل ورلره ثابت نشو نو الله جلّ جلاله لائق د حمد هم و نه گرځيده.

حتّى يستحق به الحمد د «مختار فيه» پورې متعلق دى.

**تفسير بيضاوي**: ( وَالرَّابِعُ لِتَحقيقِ الاِختِصاصِ فاِنّه مِمّا لَايقبل الشَّرِكَةَ فيه وَتَضمِينُ الوَعدِ لِلحَامِدِينَ والوَعِيد لِلمُعرِضِينَ ).

**ترجمه**: څلورم صفت مالک يوم الدّين د تحقيق د اختصاص لپاره ذكر دى ځكه دا آخرنى صفت دى د هغه صفاتو نه چې په هغې كې هيڅ طريقه د اشتراک نشي قبليدلى (په يوم الجزاء كې به د بل چا تصرف نه وي) دې كې حامدينو ته ضمانت د وعدې ده او مخ اړوونكو ته وعيد دى.

**تشريح**: څلورم صفت مالک يوم الدين تخصيص د حمد كوي تر الله جل جلاله پورې ځكه كله چې استحقاق د حمد په مالک يوم الدين باندې مرتب شو د يوم الدين مالک كيدل علت دى د استحقاق د حمد لپاره او دا علت په غير كې هيڅكله نه حقيقتا او نه ظاهرا موندلى نو معلومه شوه چې حمد تر الله تعالى پورې خاص دى او په دې صفت كې حامدينو سره وعده ده او معرضينوعن الحمد لپاره وعيد دى په دې طريقه چې كله الله تعالى مالک د يوم الجزاء دى نو څوک چې د هغه حمد كوي هغه ته ثواب وركوي او څوک چې اعراض كوي نو هغه ته عقاب وركوي.

## د «إِيّاكَ نَعبُدُ» تحقيق

**تفسير بيضاوي**: (إِيَّاكَ نَعبُد و إِيَّاكَ نَستَعِين ثُمّ اَنّه لَمّا ذَكرَ الحَقِيقَ بِالحَمْدِ وَ وَصفَ بِصفاتِ عِظامٍ تَمَيَّزَ بِها عن سَائِرِ الذَّواتِ وتَعلَّقَ العِلمَ بِمَعلومٍ مُعيَّنٍ خُوطِبَ بذَالك أىْ يَا مَنْ هذا شأْنُهُ نَخُصُّک بالعبادةِ وَالِاستعَانةِ)

**ترجمه**: خاص تا لره عبادت كوو او خاص تا نه مدد غواړو بيا شان داسې دى چې كله يې الله جلّ جلاله حقيق بالحمد ذكر كړ بيا ئي لويو لويو صفاتو سره موصوف كړ د ټولو ذواتونه جدا

وګرځیده او علم د مخاطب په معلوم متعین پورې متعلق شو په (ایاک نعبد وایاک نستعین سره) ئې خطاب وکړی شو معنا دا شوه ای هغه ذات! چې دا څلور صفات په تاکې موجود دي مونږ تا خاص کوو په عبادت او استعانت سره.

**تشریح**: دلته دوه اجزاء دي لومړی (ایاک نعبد) دویم (ایاک نستعین) قاضي بیضاوی رحمه الله په ایاک نعبد کې درې بحثه کوي.

(۱) په کاف د ایاک کې (۲) په مجموعه د ایاک کې (۳) په تقدیم د ایاک په نعبد باندې او په تقدیم د ایاک په نستعین باندې.

لومړی بحث: بیا په کاف د ایاک کې دوه تحقیقه دي.

اول دا کاف د خطاب لپاره دی نو په دې اعتراض راځي هغه دا:

**سوال**: مخکې چې کومې صیغې تیرې شوې دي هغه د غائب وې ځکه هغه اسم ظاهر وو او اسم ظاهر صیغه د غائب وي لکه الحمد لله نه تر مالک یوم الدّین پورې او په ایاک کې دا کاف د خطاب لپاره دی یعنې صیغه د خطاب ده د دې صیغې د خطاب لپاره مجوّز څه شی دی او مرجّح څه شی دی؟

**جواب**: مصنف رحمه الله (ثُمَّ انَّه لَمَّا ذَکر الحَقِیقَ بِالحَمْدِ وَ وَصفَ بِصفاتٍ) سره دلته اوس د صیغې خطاب لپاره یو مجوّز او بل مرجح ذکر کوي خو مجوّز چې بیانوي دا په دوه ذوقونو سره بیانوي یو په ذوق د بلاغت او بل په ذوق د صوفیه کرامو.

**مجوّز**: دا چې مخکې څلور صفات د الله جلّ جلاله ذکر شوه (۱) ربّ العالمین (۲) الرّحمن (۳) الرّحیم (۴) مالک یوم الدّین دا څلور واړه الله جلّ جلاله پورې خاص وه او دا څلور صفات خو ظاهرًا او باطنًا الله جلّ جلاله پورې خاص وو نو په دې څلورو صفاتو الله جلّ جلاله د کل ماعدانه ممتاز او معلوم شو نو دا امتیاز (معلومیت) نازل شو په منزله د مشاهده والي او مشاهدې ته صیغه دخطاب استعمالیږي نو ځکه ئي دلته صیغه د خطاب راوړه چې کاف دی (ک) او دا «خوطب» جواب د «لمّا» دی.

نخصّک بالعبادت والاستعانة د ايّاک نعبد او ايّاک نستعين حاصل دی او دا د ابن عباس (رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) نه نقل دی یعنې مونږ تا په عبادت او استعانت سره خاص کوو .

**قاعده**: په باب د تخصيص کې دا قاعده ده چې باء په مقصور عليه داخله وي نه په مقصور او دلته بالعکس شوی نو اصل عبارت داسې پکار وه «و يا مَن هو شأنه نخصّ العبادة بک» الله جلّ جلاله خو په عبادت پورې خاص نه دی ځکه له عبادت نه پرته نور هم ډير کارونه دي نو وائي دا مجاز دی دا قسم مجاز په حروفو او جملو کې له محسناتو د کلام څخه وي د معنى لپاره به کلام اصل او حقيقت ته رد کوي چې هغه نخصّ العبادة بک دی الله جلّ جلاله عبادت پورې خاص نه دی بلکه عبادت الله جلّ جلاله پورې خاص دی.

تر دې ځایه نکته د مجوّز بيان شوه.

**تفسیر بیضاوي**: ( لِيكونَ أَدَلَّ على الِاخْتصَاصِ)

**ترجمه**: لپاره د دې چې دا طريقه د خطاب ډير دلالت وکړي په اختصاص.

**تشریح**: په دې سره نکته د مرجح بيانوي هغه داسې که ايّاهُ نعبد ووايو نو هم اختصاص دی که ايّاک نعبد ووايو هم اختصاص دی په دواړو کې اختصاص دی ځکه چې په دواړو کې تقديم د معمول راغلی په عامل باندې او دا تقديم د ماحقّه التّأخير دی او تقديم د ماحقّه التّأخير يفيد الحصر و الاختصاص.

خو دا صيغه د غائب (ايّاه) دي ولې ذکر نکړه او صيغه د خطاب چې (ايّاک) دي ذکر کړه دا ځکه چې په لفظ کې عبادت (نعبد) په کاف مرتب دی او کاف قائم مقام د تميز بالاوصاف دی نو د تميز بالاوصاف له وجهې نه يې کاف خطابي راوړي دی نو خلاصه دا چې دا عبادت مرتب په تميز بالاوصاف دی نو دا تميز بالاوصاف ورته علت شو دا علت الله جلّ جلا له پورې خاص دی نو دا معلول هم د الله جلّ جلاله پورې خاص شو نو دا په صيغې د خطاب کې دليل د تخصيص دی او په صيغې د غائب کې دليل د تخصيص نشته نو ځکه صيغه د خطاب اَدَلّ على الاختصاص دی او په صيغې د غائب کې مجرّد او نفس اختصاص دی.

**تفسير بيضاوي**: (وَللتَّرقِي مِن البُرهانِ إِلى العِيانِ وَ الانْتقَالُ مِن الغِيبَة إِلى الشُّهودِ
12 فَكأَنَّ المَعلومُ صارَ عَيَانًا وَالمَعقولُ مَشَاهدًا وَالغِيبةُ حضورًا)

**ترجمه**: او لپاره د دې چې ترقي شي له برهان نه عيان (ليدلو سترګو) ته او لپاره د دې چې دا خطاب انتقال کول شي له غائب نه حاضر ته ګويا چې دا معلوم (الله جلّ جلاله) وګرځيد چشم ديد (په سترګو ليدلی) او معقول (الله جلّ جلاله) محسوس وګرځيد او غائب حاضر وګرځيد.

**تشريح**: په دې عبارت کې دوه احتماله دي اول دا چې دا (للتّرقی) په ليکون ورعطف کړې نو بيا دا دوهمه نکته مرجحه ده لپاره د صيغې د خطاب معنی به دا شي چې صيغه د خطاب ئې ځکه راوړه لومړی: ليکون اَدَلّ علی الاختصاص دويم له دې وجهې: للتّرقی من البرهان الی العيان او که دا (للتّرقی من البرهان) په اختصاص ورعطف کړې بيا په دا دواړو کې يوه نکته مرجّحه ده نو معنی به دا شي ليکون ادلّ علی الاختصاص او ليکون الترقی من البرهان الی العيان.

اوبعض علماء وائي چې دا نتقال من الغيبة الی الشهود بعينه ترقی من البرهان الی العيان دی هيڅ فرق نشته په مابين د دې کې او بعض فرمائي چې فرق کې شته لکه محشّی صاحب چې فرق کړی دی هغه داسې چې په دې حيثيت چې دا صفات د الله جلّ جلاله دلالت کوي په آياتو افاقيه وو انفسيه وو نو په دې حيثيت بيا دا افاده من البرهان الی العيان ده.

او په دې حيثيت چې هريو صفت امتياز راولي د الله جلّ جلاله د کل ماعدا نه نو په دې کې انتقال دی غيبت نه شهود ته.

(فكأَنَّ المَعلومُ صارَ عَيَانًا) دې عبارت سره په ماقبل تفريع کوي هغه داسې چې کوم شی چې په درجه د علم کې و هغه په درجه د عيان کې شو او کوم چې په درجه د عقل کې و هغه په درجه د مشاهدې کې شو او کوم چې په درجه د غيبت کې و هغه په درجه د حضور کې شو نو فايده د تفريع دا شوه چې کوم شي طرفته طرقي کولی شي هغه په درجه د خطاب هغه وخت راځي چې کله د هغې مشاهده وشي.

**تفسير بيضاوي**: ( بَنى أوَّلَ الْكَلَامِ على مَا هُو مَبادِى حالَ العَارِفِ مِن الذِّكرِ والفِكرِ وَالتَّأَمُّل فى أسمَآئِه والنَّظر فى آلائِه والِاستِدلَال بصنَائِعِهِ فى عَظيمِ شَأنه وَبَاهرِ سُلطانِه

ثُمّ قَفى بِما هو مُنْتهى أمرِه وَ هوَ أنْ يَخُوضَ لجّةَ الوصولِ وبصيرَ منْ أهلِ الْمشاهَدَةِ فيَراهُ عيانًا ويناجِيه شفاهًا).

**ترجمه:** بناء ئي کړ اول د کلام په هغه طریقه چې هغه طریقه شروع د حال د عارف ذکر او فکر دی او سوچ کول په نعمتونو د الله جلّ جلاله کې او استدلال په مخلوق د الله جلّ جلاله په عظمت شان د الله جلّ جلاله او په ظاهري بادشاهي د الله جلّ جلاله کې بیا وروسته وي هرهغه شئ چې منتهی د امر د عارف وي چې په څپو د وصول الی الله کې داخل شي بیا د اهل مشاهدې نه وګرځې سترګو سره ئې وینې (په سترګو دزړه سره) او مخامخ ورسره مناجات کوي.

**تشریح:** تر دې ځایه پورې دا نکتې په ذوق د بلغاءوو بیان شوې اوس ئې په ذوق د صوفیه کرامو بیانوي.

## صوفي په دوه قسمه دی

صوفي په دوه قسمه دی (۱) صوفي مبتدي (۲) صوفي منتهي.

**صوفي مبتدي:** مبتدي هغه صوفي ته وائې (فان لم تکن تراه فانّه یراک) که چیرته ته الله لره نه وینې نو الله جلّ جلاله خو تا وینې، دا د مبتدي مرتبه ده.

**صوفي منتهي:** منتهي هغه صوفي ته وائي (ان تعبد الله کانّک تراه[1]) چې ته د الله جل جلاله داسې عبادت وکړه ګویا که ته الله لره وینې دا ده منتهي مرتبه ده.

---

(۱):- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا أَبُو حَيَّانَ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَارِزًا يَوْمًا لِلنَّاسِ، فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ فَقَالَ: مَا الإِيمَانُ؟ قَالَ: «الإِيمَانُ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللهِ وَمَلاَئِكَتِهِ، وَكُتُبِهِ، وَبِلِقَائِهِ، وَرُسُلِهِ وَتُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ». قَالَ: مَا الإِسْلاَمُ؟ قَالَ: «الإِسْلاَمُ: أَنْ تَعْبُدَ اللهَ، وَلاَ تُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا، وَتُقِيمَ الصَّلاَةَ، وَتُؤَدِّيَ الزَّكَاةَ المَفْرُوضَةَ، وَتَصُومَ رَمَضَانَ». قَالَ: مَا الإِحْسَانُ؟ قَالَ: «أَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ»، قَالَ: مَتَى السَّاعَةُ؟ قَالَ: «مَا المَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ، وَسَأُخْبِرُكَ عَنْ أَشْرَاطِهَا: إِذَا وَلَدَتِ الأَمَةُ رَبَّهَا، وَإِذَا تَطَاوَلَ رُعَاةُ الإِبِلِ البُهْمُ فِي البُنْيَانِ، فِي خَمْسٍ لاَ يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا اللهُ» ثُمَّ تَلاَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: {إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ} [لقمان: ٣٤] الآيَةَ، ثُمَّ أَدْبَرَ فَقَالَ: «رُدُّوهُ» فَلَمْ يَرَوْا شَيْئًا، فَقَالَ: «هَذَا جِبْرِيلُ جَاءَ يُعَلِّمُ النَّاسَ دِينَهُمْ» قَالَ أَبُو عَبْدِ اللهِ: جَعَلَ ذَلِكَ كُلَّهُ مِنَ الإِيمَانِ رواه صحيح البخاري ۱/ ۱۹رقم الحديث : ۵۰

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې (ان تعبدالله كانّک تراه) داحالت دمراقبې دی او(فان لم تكن تراه فانّه يراک) داحالت دمشاهدې دی .فتح الباری

نه «الحَمْد» نه تر «مَالِک يوم الدّين» د مبتدي مرتبه ده او «ايّاک نعبد وايّاک نستعين» د منتهي مرتبه دی

(وَهوَ أنْ يَخُوضَ لجّةَ الوصولِ) ک «هو» ضمير راجع دی منتهي ته يعنې دا منتهي چې ورننوځي په څپو او سمندر وصل الی الله کې تردې چې مشاهد وګرځې دې ته وحدت الشهود وائي او صوفيه کرام ورته وحدت الوجود وائي.

## وحدة الوجود او وحدة الشهُود

د وحدت الشهود مثال داسې دی لکه د شپې مونږ ته ستورې ښکاري خو دورځې نه ښکاري او حال دا چې د ورځې هم ستوري موجود وي او يو ستوری د ځمکې نه څوچنده غټ دی خو چې نه ښکاري دا د لمر په مقابل کې نه ښکاري نو ته وائي چې ستوري نشته دغسې صوفيه کرام هم داسې دي چې د الله جلّ جلاله د وجود په مقابل کې دا نور وجودونه ورته نه ښکاري نو دوی وائي چې نور وجودونه ماسوا د الله جلّ جلاله نه نشته.

لکه شاعر وائي:

کلّ مافى الکون وهم اوخيال................ اوعکوس فى مرايا اوظلًا[1]

او ديته بيا صوفيه کرام حال وائي.

**تفسير بيضاوي**: ( أللّهُمَّ اجْعَلنَا مِن الوَاصِلين لِلعَين دُونَ السَّامعينَ لِلاثرِ).

**ترجمه**: اې الله جلّ جلاله ته مونږ وګرځوې له واصلين للعين (چشم ديد) نه له او ريدونکو لپاره د قيصو يعنې چې ستا ديداريې نه وي کړی.

**تشريح**: کوم خلک چې مخلوق ترک کړي او خالق ته متوجې شي هغه په درې قسمه دي:

(۱) سالک (۲) عارف (۳) واصل.

(۱):- بل بيت ئي داسې دی : لاح فى الظلّ الکون وهم اوخيال.. . لاتکن حيران فى تيه الضلال بل عارف بالله بيا وائي: انّما الکون خيال وهو حق فى الحقيقة... بل من قال بهذا. جاز اسرار الطريقة.( نثرالدر وبسطه فى بيان کون العلم نقطة: ۱۸ .)

**سالک**: هغه کس ته وایي چې خپل ظاهر له بدو اخلاقو پاک کړي او خپل باطن هم له اوصافو رزیله و څخه صفا کړي، د سالک ابتداء له په شریعت باندې ابتداء څخه وي او انتهایي په اخلاق حسنه و ځان مزین کول دي.

**عارف**: هغه کس ته وایي چې د الله تعالی د معرفت قصد وکړي.

**واصل**: هغه کس ته وایي چې هغه ته مقام د مشاهدې حاصل وي.

او مشاهده هغه حالت ته وایي چې کوم چې بنده لره د الله تعالی طرفته له مکمل توجو نه روسته حاصلیږي نو د عارف د واصل ابتدا ر دی او د واصل درجه غیر متناهیة دی ځکه معرفت کې سیر الی الله کیږي یعني د ټول مخلوق پریښودل او الله تعالی طرفته متوجې کیدل او مخلوق متناهي دی او په وصول کې ابتداء شوي وي له د سیر فی الله نه یعني د الله تعالی په اسماء او صفاتو کې مشغولیدل دي او اسماء او صفات د الله تعالی غیر متناهي دي نو ځکه درجه د واص غیر متناهي دی.

**تفسیر بیضاوي**: (وَ مِن عَادَةِ العَرَبِ التَّفنُّن فى الكَلَامِ وَالعُدولُ مِن أسلُوبِ الى آخر تَطرِيةً لهُ وتَنشِيطًا لِلسَّامعِ فَيَعدِلُ من الخِطابِ الى الغِيبَة وَمن الغِيبَة اِلىٰ التَّكلُّم وَبالعَكْس كقوله تعالى (حَتّٰى اِذَا كُنتُم فِى الفُلك وجَرَيْن بِهم [1])) .

**ترجمه**: بعض د عاداتو د عربونه د کلام قسما قسم کول دی او دوی عدول او انتقال کوي د یوې طریقې نه بلې طریقې ته لپاره تجدید د کلام او لپاره د تشویق د سامع، له مخاطب نه غائب ته عدول کوي او له غائب نه متکلم ته او په عکس سره لکه دا قول د الله جلّ جلاله کله چې تاسو کشتۍ کې کینی او جاري شي په دوی.

**تشریح**: دلته مصنف د علم معاني یوه مسئله ذکر کوي کومې ته چې التفات وایي.

په عبارت کې مختلفې طریقې کارول لپاره د تحسین د کلام او لپاره د سامع د خوشالۍ دیته التفات وایي.

---

(۱):- سورة یونس: آية ۲۲.

د التفات په تعریف کې د علامه سکاکي او جمهورو اختلاف دي جمهور فرمايي چې په طرقو ثلاثه و د تعبير کې په يوه طريقه کلام تعبيرولو نه روسته بله طريقه د تعبير اختيارولو ته التفات وايي يعنې شرط په التفات کې دا دی چې دواړه صيغې (له کومې چې التفات شوی او کومې ته التفات شوی) به بالفعل په کلام کې ذکر شوي وي ورنه دا التفات نه دی.

او علامه سکاکي فرمايي چې له مقتضا د ظاهر نه خلاف کلام استعمالولو ته التفات وايي د علامه سکاکي[1] په نزد التفات اعم دی که دواړه صيغې بالفعل په کلام کې ذکر شوي وي دا هم التفات دی او که دواړه نه وي ذکر بلکه محل تقاضا د يوصيغې کوله او تا بله صيغه ذکر کړې وه دا هم التفات دی لکه په شعر د امراء القيس کې چې «ليلک» مقام د متکلم دی ځکه خپل ځان ته خطاب کوي نو ليلی پکار وه ده ليلک سره خطاب وکړه نو دا ده جمهورو په نزد التفات نه دی. يعنې د جمهورو په نزد د التفات لپاره سبقت د تعبير شرط دی او د علامه سکاکي په نزد شرط نه دی.

## د التفات اقسام

علامه تفتازاني (رَحِمَهُ اللّٰهُ) په مختصر المعاني کې التفات په شپږ قسمه کړی (۱) له غايب نه متکلم ته (۲) له غايب نه مخاطب ته (۳) له مخاطب نه غايب ته (۴) له مخاطب نه متکلم ته (۵) له متکلم نه غايب ته (۶) له متکلم نه مخاطب ته.

تفنّن نوع نوع د کلام ته وائي لکه کله د غائب صيغه ذکر کوي کله د مخاطب کله د متکلم لکه په دې آيت کې دا تفنن شوی دی چې کُنتم صيغه د مخاطب ده او جرين صيغه د غائب ده عدول ئې مخاطب نه غائب ته کړی.

**تفسير بيضاوي:** (وَقَوله تعالى وَاللّٰهُ الَّذِي اَرسَلَ الرِّيَاح فَتُثِيْر سَحَابًا فَسُقناهُ[2]).

**ترجمه:** الله جلّ جلاله هغه ذات دی چې ليږي بادونو لره دا بادونه بيا وريځې پورته کړي داسې علاقو ته ئې روانې کړي چې خشکې وي پس خړوب ئې کړي.

---

(۱) سراج الدين ابويعقوب يوسف بن ابي بكر بن محمد بن علي السكاكي الخوارزمي ولد سنة (٥٥٥) هـ وتوفى سنة (٦٢٦) هـ(معجم الادباء)

(۲):- سورة فاطر: آية (۹).

**تشریح**: دلته انتقال له غائب څخه دی چې ارسل دی متکلم ته چې سقناه دی.

**تفسیر بیضاوي**: (وقول امرءُ القَیس تَطَاولَ لَیلُک بالأُثْمد . ونامَ الخليُّ وَلم تَرقُد. . . وبَاتَ وباتَتْ لهُ لَیلَة کَلَیْلَة ذِی العَائِرِ الأرمَدِ وَ ذالِک مِن نَبَأ جَائنِي وَ خُبِرْتُهُ عن أَبِي الأَسوَدِ)

**ترجمه**: او لکه دا قول د امراءالقیس شاعر: اوږده شوه شپه ستا (خطاب نفس ته کوي) په اثمد مقام کې او دی (امرءالقیس[1]) ویده شو یوازې د معشوقې نه او خوب ورنه غی ده هم شپه تیره کړه او شپې هم شپه تیره کړه لکه شپه د هغه چاچې صاحب د دردناکو چخنو کوونکو سترګو او دا بې قرارې له وجې دیو خبروه چې ماته راغلی وو زه خبر شوی وم له دې خبر له ابي الاسود نه..

**تشریح**: امرءالقیس عربي د جاهلیت د زمانې مشهور شاعروو په شعرونو ئې ډیر زیات استدلال کیږي د ده اثمد مقام کې شپه وه هلته ورته خبر ورسید چې پلار دې مړدی د شپې کورته تللی نشو نو خوب نه ورتلو نو دغه خفګان وخت کې ئې له ځان سره خبرې کولې او ویل یې . د اثمد په همزې او میم باندې دوه قسمه حرکتونه جائز دی په کسرې د همزې سره (اِثمد) په فتحې د همزې سره (اَثمد) او اثمد په لغت کې هغه کاڼي ته ویل کیږي چې له کوم نه چې رانجه جوړیږي اوس د یو ځای نوم دی او (الخلي) وایي خالي عن الغم والعشق ته او (عائر) د سترګو لوندوالي ته وایي او (نباء) عظیم الشان خبر ته وایي په شعر کې د جمهورو په نزد دوه التفاته دي لومړي له خطاب نه غیاب ته یعني له (لیلک) نه د (باتَ) طرفته او دویم له غیاب نه تکلم ته یعنې له (بات) نه (جاءني) ته خو د جمهورو په نزد په (لیلک) کې التفات نشته ځکه له دینه مخکې بله صیغه نشته بلکې دا تجرید دی او علامه سکاکي په نزد دلته هم التفات شته ځکه دا مقام د (تطاول لیلی) دی خو ده (تطاول لیلک) وویل ګویا چې ده خلاف الظاهر کلام وکړو او له عبارت نه هم دا التفات ظاهریږي او د مصنف په نزد هم د علامه سکاکي مذهب راجح دی ځکه که د جمهورو مذهب غوره شي بیا دا مثال راوړل بې فایدې دي.

---

(۱) جندح بن حجر بن حارث الکندي ولد بنجد سنة (۵۰۱)م وتوفی سنة (۵۴۰)م فی الانقرة شاعر الجاهلیة یعد رأس شعراء العرب و اعظم شعراء العرب فی التاریخ (الجامع فی تاریخ ادب العرب) ۔

(ابو الاسود) دا يي د پلار نوم وه يا ابي الاسود د مرگ اسم كنيه دى.

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معنى | شمېره | لغات | معنى |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | رقد | خوب | ۴ | خلي | يوازې |
| ۲ | نبأ | خبر | ۵ | عائر | چخښي |
| ۳ | فُلک | کشتي | ۶ | ارمد | دسترگو درد |

## ( دوهم تحقيق په اياک کې )

**تفسير بيضاوي**: ( و إيّا ضَميرُ منْصوب مُنْفَصل ،وَمُايلحِقهُ مِن الْياءِ وَالْكَافِ وَ الهاءِ حرُوفٌ زِيدَتْ لِبيانِ التَّكلُّمِ وَالخِطَابِ والْغِيبَةِ لَامَحلَّ لَهَا مِن الإعرَابِ كَالتَّاءِ فى أنْتَ و الْكافِ فى أرَئَيتُك)

**ترجمه**: اياء ضمير منصوب منفصل دى او دا چې «ياء» «كاف» او «هاء» حروف دي دا حروف د متكلم او مخاطب او غائب د تميز لپاره زيات شوي دي د دې د اعراب لپاره محل نشته لكه تاء په انت كې او كاف په أريتک كې.

**تشريح**: مخكې مونږ ويلي وو چې په اياک كې دوه تحقيقه كوې يو په كاف كې او دوهم په مجموعه د اياک كې د كاف تحقيق ختم شو او اوس د مجموعې تحقيق كوي، فرمائې چې په اياک كې څلور مذهبه دي.

## په اياک كې څلور مذاهب

لومړى دا خبره زده كړه چې د محققينو نحويانو په دې اتفاق دى چې لفظ د (ايا) ضمير دى خو كاف، يا هاء، يا لفظ د ياء وغيره په اړه امام خليل وايي چې دا مضاف اليه دي د ضمير او نور نحات وايي چې دغه حروف دي لامحل لها من الاعراب د غايب، مخاطب او متكلم لپاره زيات كړى شوي دي.

(۱) **مذهب**: چې اياک مركبه كلمه نه دى بلكه بسيطه كليمه دى يعنې اياک ټول ضمير دى.

(۲) **مذهب**: دا دی چې ایّاک مرکبه کلمه دی چې ایّاک مرکبه کامه شي نو بیا په دې کې درې مذهبه دي.

(۱) **مذهب**: وايي چې ایّاک دا مرکبه ده له ضمیر چې «ایّا» دی او دا کاف له لواحقو د ضمیر څخه دی.

(۲) **مذهب**: وايي چې ایّاک مرکبه کلمه دی له ضمیر چې (ک) دی او ایاء له لوحقو د ضمیر څخه دی.

(۳) **مذهب**: دا دی چې دا مرکبه له ضمیر چې «ایّا» دی او دا (ک) اسم دی.

## (وجه د حصر)

دا یّاک به خالي نه وي یا به یوه کلمه وي یا به دوه کلمې وي که یوه کلمه وي دا اول مذهب چې دوه کلمې شي بیا به خالي نه وي یا به دواړه مستقلې وي یا به یوه مستقله وي او بله به ئې تابع وي چې د واړه مستقلې شي دا دوهم مذهب دا وائي چې دا دوه کلمې دي او دواړه اسمآء دي او که یوه پکې مستقله وي بیا به خالي نه وي یا به اوله مستقله وي دوهمه به ئې تابع وي او یا به دوهمه مستقله وي اوله به ئې تابع وي که اوله مستقله وي او ثاني ئې له لواحقو نه وي دا څلورم مذهب او که عکس وي دا دریم مذهب دی او په دې عبارت کې چې وَمَا یلحقه الخ دې کې څلورم مذهب ته اشاره ده.

مصنف (رَحِمَهُ اللَّهُ) (كَالتَّاءِ فِى أَنْتَ و الْكَافِ فِى أَرَئَيتُك) سره د لحوق لپاره مثالونه ذکر کړل علامه شیخ زاده رحمه الله د بصرینو قول را نقل کړی هغوی وايي چې په «انت» کې ضمیر «تاء» ده په «ان» باندې یې تکیه کړې ده او امام زفر (رَحِمَهُ اللَّهُ) وايي چې «انت» مجموعه ضمیر دی او جمهور وايي چې په «انت» کې ضمیر «اَن» دی «تاء»، تُما، او تُم او غیره د مفرد، تثنیه، جمع، مذکر، مؤنث، غایب، مخاطب او د متکلم د تمیز لپاره راوړل کیږي، لکه کاف په أرئیتک کې په اتفاق سره حرف دی او تا د خطاب ده. ارئیت په معنی د (اخبرني) دی ځکه ارئیت ملزوم او خبر ورسره لازم دی.

**تفسير بيضاوي**: ( وقَال الخَلِيلُ[1] إيَّا مُضاف اِليهَا وَ احتجَ بِما حكَاه عَن بعضِ العَربِ اذَا بلَغَ الرَّجلُ السِّتِّينَ فَايّاهُ وايّا الشَّوابَ وَ هُو شاذٌ لَايَعتمِدُ علَيه).

**ترجمه**: امام خليل ويلي دي چې «ايّا» د غه كاف او ياء او تاء ته مضاف دى او ده استدلال كړى په هغه څه چې ده د بعضې عربونه حكايت كړى دى چې كله سړى شپيتو كالو ته ورسيږي نو دى د ځوانو ښځو نه ځان وساتي او ځواني ښځې دي له ځانه څخه وساتي دا شاذ دى په دې اعتماد (استدلال) نشي كيدلى.

**تشريح**: امام خليل فرمائي چې دا دوه كلمې دي او دواړه مستقلې دي.

امام خليل د خپل قول لپاره په استدلال كې د عربو يو قول پيش كوي (اذا بلَغَ الرَّجلُ السِّتِّينَ فَايّاهُ وايّا الشّوابَ) دلته هم د لفظ د (ايا) اضافت د (الشواب) طرف ته شوى دى لكه څنګه چې دلته ايا مضاف دى دغه شان په اياك او اياه كې هم مضاف دى خو مصنّف رحمه الله د خليل په استدلال رد وكړو هغه دا چې تا په كوم حكايت د عربو استدلال كړى دى هغه شاذ دى او بل رد دا چې دلته خو ضمير مضاف شوى او ضمير خو معرفه وي او معرفه خو نه مضاف كيږي.

اى اتّق نفسه من الشوآب و اتّق الشوآب عن نفسه.

**تفسير بيضاوي**: (وَ قِيلَ هِىَ الضَّمائِرُ و ايّا عُمدَةٌ فَانَّها لَمَّا فَصلتْ عنْ الْعَوامِلِ تَعذَّرُ النُّطقُ بهَا مُفردةً فَضمَّ اليْهَا ايّا لِتَستقِلَّ بِهِ وَ قيْل الضَّميرُ هُوالمَجْموعُ)

**ترجمه**: او چا ويلي چې دا (ک) (هٔ) (تاء) ضمائر دي او ايّا د دوى لپاره تكيه ده نو كله چې دا ضمائر د خپلو عواملونه راجدا شو نو يوازې ورباندې نطق متعذر شو نو منضم ئې كړ له دې ضمائرو پورې ايّا چې مستقل شي چا ويلي چې ضمير مجموعه دا ايّاک دى.

**تشريح**: دا دريم مذهب كوفيانو ته منسوب دى دوى وايي چې دا (ک) (هٔ) (تاء) ضمائر دي خو چې كله له خپلو عواملو څخه جلا شول يوازې او جدا تلفظ ورباندې متعذر وي نو اَيا پورې مو متصل كړل نو ايا د دوى لپاره عماد او تكيه دى.

(۱) ابو عبدالرحمن خليل بن احمد الفراهيدي البصري ولد سنة (۷۱۸) م ببصرة وتوفى سنة (۷۹۰)م ببصرة

د عواملونه مراد دا ضرب و غیره افعلا دي لکه (ک) په ضربک کې مفعول دی او (هُ) په ضربه کې او یاء په ضربنی کې مفعول دی خو دا مذهب هم ضعیف دی ځکه عماد ئې اوږ دی چې ایا دی د اصل کلمې نه اصل کلمه یاء ، هاء دی.

او څلورم مذهب دا دی چې دا مجموعه ایاک ضمیر دی نو د دوی په نزد ایاک مرکب نه دی بلکې مفرد اسم دی.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَ قُرِءَ ایَاک بِفتح الهَمزةِ هَیّاک بِقلبِها هاءً)

**ترجمه**: او لوستلی شوی دی په فتحې د همزې سره په قلب(بدلولو) د همزې په هاء سره.

**تشریح**: اوس قرائت په ایاک کې ذکر کوي

## په ایّاک کې قرأتونه

فرمائې چې په ایّاک کې درې قرائته دي (۱) ایّاک په کسرې د همزې سره (۲) ایاک په فتحې دهمزې سره (۳) هیّاک په قلب د همزې په هاء سره.

## ( بحث د نعبد )

**تفسیر بیضاوي**: ( وَالعِبادَةُ أقصی غایَة الخُضوعِ وَالتَّزلُّلِ وَ منْه طَریقُ مُعبَّد ای مذَلَّل وَ ثَوَابُ ذُوْ عَبدَةٍ اذَا کانَ فِی غَایةِ الصَّفاقَةِ وَ لِذالِک لَاتسْتَعْملُ الَّا فی الْخُضوعِ للّٰهُ تَعالی).

**ترجمه**: او عبادت انتهائي درجه عاجزې او تزلل دی او د دې نه دا محاوره مأخوذ ده طریق معبد ای مزلل خلاصه لاره او خلاصه لاره د خلکو په قدمونو ذلیله شوي وي او د دې نه دا هم مأخوذ دي ثوب «ذو عبدة» کله چې دا جامه په غایة سختوالي کې وي له دې وجې نه چې دا انتهائي ذلت دی دا نه مستعملیږي مگر په خضوع الله کې.

**تشریح**: دلته دریم بحث په کلمه د (نعبد) کې کوي ، عبادت په لغت کې انتهائي عاجزې او ذلت ته وائي چې هغې نه اخوا ته نوره عاجزې نه وي او دا د هغه چا سره مناسب وي چې انتهائي منعم او لوئ وي او هغه نه دی مگر یو الله جلّ جلاله دی له همدې امله هغې لارې ته چې د خلکو تگ راتگ پرې زیات وي طریق معبد وایي ځکه دا هم خلکو په خپلو پښو سره زلیله کړې وي او همدغه شان (ثوب ذو عبدة)

هغې جامې ته وايي چې سخته جوړه شوې وي ځکه سخته جامه د زياتو ضرورياتو د پوره کولو صلاحيت لري ګو که دا د ټولو ضرورياتو په استعمال باندې دليله شوې دی دا چې عبادت عبارت له انتهايي تزليل دی ځکه خو لفظ د عبارت صرف د الله تعالى لپاره استعماليږي.

او عبادت په اصطلاح کې ځينې علماء داسې تعريف کوي : عبادت هغه فعل ته وايي کوم چې الله تعالى د بنده د اظهار عبدية لپاره علامه ګرځولې دی تعلق يې يا له ظاهر سره وي لکه ارکان خمسه او يا يې تعلق له باطن سره وي لکه اعتقاديات.

او ځينې علماء يې داسې تعريف کوي : عبادت هغه فعل اختياري دی کوم چې د نفس خلاف او د الله تعالى د رضا لپاره شوی وي.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَ الاِسْتِعانةُ [1] طَلبُ المَعُونةُ وَهىَ إمَّا ضَرُورِيَّةٌ او غَيرضرورِيَّة وَالضَرورِيَّة مَا لَايَتأَتَى الفِعلُ دُونهُ كَاِقْتداءِ الفاعِلِ وَتصَوُّرهُ وَ حُصولُ آلَة ومَادةِ يُفعلُ بهَا فِيها وَ عنْدَ اِسْتجمَاعهَا يُوصفُ الرَّجلُ بِالإسْتطَاعةِ و يَصحُ أنْ يُكلفَ بِالفعلِ)

**ترجمه**: او استعانة طلب د مدد کولو دی او دا (معونة) به يا ضروري وي او يا به غير ضروري وي ، ضروري هغه دی چې دا فعل د دې قدرت نه بغير بالکل نه کيږي لکه قدرت د فاعل په فعل باندې او تصور د دې فعل او حصول د آلې او مادې چې فعل وکړی شي په دې آلې سره په دې ماده کې او په وخت د جمعه کيدو د دې معوناتو ضروريه وو کې نو توصيف د سړي په استطاعت باندې کيږي نو بيا صحيح کيږي چې سړی بالفعل مکلف شي.

**تشریح**: دلته وضاحت د استعانت کوي فرمايي چې استعانت طلب د معونت ته وايي . دا سين او تاء لپاره د طلب دی مونږ په علم کلام کې وايو چې استعانة او استطاعة وائي «سلامة آلاتٍ وصحّت الاسباب» ته بيا په اصول فقه کې وايو چې استعانة او استطاعة په دوه قسمه دی.

---

(۱) استعانة په دوه قسمه ده يومافوق الاسباب ، دوهم ماتحت الاسباب، مافوق الاسباب چې د مخلوق په وس کې نه وي اوماتحت الاسباب چې د مخلوق په وس کې وي په اياک نستعين کې مطلق استعانة مراد نه دې بلکه مافوق الاسباب مراد دی د مافوق الاسباب طلب له غيرالله نه نشي کيدی او د ماتحت الاسباب طلب له غيرالله نه هم کولی شي لکه سبب نه.

## د قدرت اقسام

دوه قسمه دی (۱) قدرت میسرة (۲) قدرت ممکنه.

(۱) **قدرت میسرة**: مايتمكن به العبد من اداء مأمور به مع يسر وسهولة . لكه زاد او راحلة په حج کې.

(۲) **قدرت ممکنه**: ادنا مايتمكن به العبد من اداء مأمور به. يعنې دومره قدرت چې عبد د هغې په وجې اجراء د مأمور به كولی شي.

دلته هغه په علم کلام کې چې ورته استطاعة وائي لکه (سلامة د آلات وصحت الاسباب) او په علم اصول فقه کې ورته قدرت ممکنه وائي دلته ورته مصنف معونة ضرورية وائي او معونة غير ضرورية هغه دی چې په اصول فقه کې ورته قدرت میسرة وائي او مدار د تکليف معونة ضروري دی (استطاعة او قدرت ممکنه).

## معونة ضرورية

هغه ته وایی چې له هغې نه بغير فعل نشي حاصليدلی او قدرت د فاعل په فعل باندې راتلل او حصول د آلې او مادې چې فعل وکړی شي په دې آلې سره په دې ماده کې ددې ټولو شیانو د حصول په وخت کې چې انسان د هغه فعل مستطيع دی او په دې وخت کې انسان مکلف کول هم صحيح دي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَ غيرالضَّرورِيَّة تَحصِيلُ مَايَتيسَّربِه الْفِعلُ يَسهلُ كَالرَّاحِلةِ فى السَّفر لِلقادِرِ عَلى المَشْيِ أَوْ يُقرِّبُ الْفاعلَ الى الفِعلِ ويحُثُّه علَيهِ وَ هذا القِسمُ لَايَتوَقَّفُ عَليه صِحَّة التَّكْلِيفِ وَ المدارُ طلبِ المَعونَة فِى المُهمَّاتِ كُلِّها او فى أَدآءِ العِبادَاتِ).

**ترجمه**: او بل غير ضروري دي چې حاصلول د هغه شي دی چې په هغې سره فعل اسانيږي لکه په سفر کې سورلی لپاره د پیاده مزل طاقت لرونکی تهاو یا فاعل فعل کولو ته ور نزدې کوي او په دې باندې ئي باعث کوي او په دې (قدرت میسره) موقوف شوي نه دی صحت د تکلیف او (په نستعين کې) مدار د طلب د معونة (مدد) په ټول مهمو کارونو (مقاصدو) کې دی یا بالخصوص په اداء د عباداتو کې.

**تشريح**: يا خو د غيرضروري تعريف دا دی چې د هغه شيانو حاصلول چې: کومو په زريعه فعل اسان شي يا هغه فاعل فعل ته نزدې کړي او هغه فعل ته يې تيار کړي.

**سوال**: ته وائې چې قدرت ميسره پورې صحت د تکليف موقوف نه دی او دا خو موقوف دی لکه تکليف بالحج د قدرت ميسره پورې موقوف دی لکه راحله که له چا سره سورلي نه وي د حج اداکول پرې نه دي فرض.

**جواب**: توقف نه توقف شرعي نه دی مراد بلکه عقليي مراد دی او توقف عقلي بغير د قدرت ميسره نه هم جائز دی او توقف شرعي نه دی ورپورې موقوف.

**والمعونة**: معونت کې مصنّف رحمه الله دې خبرې ته اشاره کوي چې ايّاک نعبد او ايّاک نستعين دا نستعين متعدّې دی او دمتعدې لپاره چې په لفظ کې مفعول را نشي دلته بيا دوه توجهات کيږي (۱) کله نازليږي په منزله ده لازمي (۲) او کله نه نازليږي په منزله د لازمي چې نازل شي په منزله د لازمي هلته بيا خاص مفعول ورته نه مقدر کيږي لپاره د تعميم او کله چې نازل نشي په منزله د لازمي هلته به ورته يو خاص مفعول مقدر کولی شي دلته په نستعين کې دا دواړه توجهات جائز دي په اول قسم کې چې خاص مفعول ورته مقدر نه شي نو داسې به وائي ايّاک نستعين فی المهمّات کلّها او په دوهم قسم کې چې خاص مفعول ورته مقدرشي بيابه داسې وائي ايّا نستعين فی اداء العبادات.

## (د نعبد او نستعين د جمع په ضمير کې حکمت)

**تفسيربيضاوي**: ( وَ الضَّميرُ المُستَكَن فی الفِعلَينِ لِلْقارِی وَمَنْ معَهُ مِنَ الحَفظَةِ وَ حاضِری صَلاةِ الجَماعَة او لَهُ وَ لِسائِرالمُوحِّدِينَ أَدْرجَ عِبادتَهُ في تَضاعِيف عبَادتِهِمْ وَ خلَطَ حاجَتهُ بِحَاجتِهِم لَعلَّهَا تُقبَلُ بِبَركتِهَا وتُجابَ اِليهَا وَ لِهذا شُرِعتْ الجَماعةُ).

**ترجمه**: او ضميرمستکن (پټ) په فعلينو (نعبد اونستعين) کې لپاره د قاري او ورسره د حفظه ملائکو دي او لپاره د حاضرينو د جماعت دی او يا لپاره د قاري او ټولو موحدينو دی او قاري (لوستونکي) خپل عبادت په مينځ د عباداتو د مؤحدينو کې درج کړی دی او خپل حاجت

ئې خلط (گډوډ) کړو (په ایاک نستعین)کې له حاجت د نورو خلکو سره کیدای شي چې داقبول شي په برکت ددې نورو خلکو او اجابت (قبول) شي سره د نورو خلکو (موحدین) او د دې لپاره شروع شوی دی جماعت.

**تشریح**: دلته د نعبد او نستعین په ضمیر بحث کوي هغه داسې چې دا صیغې د جمعې يې د اظهار د عظمت لپاره نه دي راوړې ځکه دا مقام د عبادت دی او عبادت کې ذلت وي بلکې دا يې لپاره د کثرت د افرادو راوړي او کثرت د افرادو په دې طریقې سره دی چې لمونځ په دوه قسمه دی (۱) په جماعت سره (۲) انفرادي.

کله چې ته په حالت د جماعت کې لمونځ کوي نو نعبد او نستعین ئې صیغه د جمع راوړه ځکه چې دلته بیا عابدان او مستعینان ډیر دي عابدان ټول جماعت او حفظه ملائکي دي او مستعینان هم ټول جماعت او حفظه ملائکي دي او که په حالت د انفراد کې لمونځ کوي نو بیا يې ولې نعبد او نستعین صیغې د جمع راوړې ځکه چې په حالت د انفراد کې خو یا ځان او حفظه ملائکې یادوي او یا ځان او ټول موحدین (مسلمانان) یادوي.

او په دیکې یوه بله نکته هم د احنافو لپاره دی هغه دا چې د امام قرائت (فاتحه) د مقتدي لپاره کافي دی او په دې د عوي باندې احنافو سره ډیر دلائل دي د ځلویښتونه (۴۰) پکې زیات احادیث موجود دي خو یو دلیل دا هم دی چې امام وائي ایاک نعبد او ایاک نستعین صیغې د جمع دي امام ځان او مقتدیان هم یادوي نو که د امام قرائت (فاتحه) د مقتدیانو لپاره کافي نه وائي نو صیغه د جمعې به ئې نه ذکر کوله دغه سې په روژه کې په تراویحو کې کله کله وهابیان هم د قرآن ختم کوي ټول قرآن امام پسې ختموي او دوی چپ ولاړوي بیا چې پو ښتنه ترې وکړې چې په تراویحو کې دي قرآن ختم وکړ نو وائي هو الحمد لله چې ورته ووائې تا په خپله ولوست او که امام پسې ولاړ وې، وائي نه امام پسې ولاړوم نو هلته په روژه کې ټول قرآن امام پسې ستا لپاره کافي دی نو دې یو سورت څه ګناه کړې چې ستا لپاره نه کافي کیږي.

تر دې ځایه پورې ئې مجوز [۱] بیان کړ لپاره د صیغې د جمع اوس ورنه مرجح بیانوي هغه داسې چې دا د خپل عبادت د قبلولو لپاره حیله جوړوي چې دا خپل عبادت په پوره جماعت کې داخل کړي که اوس په جماعت کې دیو کس عبادت هم قبول شي نو ـ ټول جماعت عبادت ورسره قبلیږي نو ځکه ئې نعبد او نستعین په صیغې د جمع سره ذکر کړي دي که د بعض خلکو لمونځ قبول کړي او د بعض رد کړي بیا خو تفریق الصفقه لازمیږي.

## (تفریق الصفقه) ﴿۲﴾

مونږ په هدایه شریفه وویل چې تفریق الصفقة حرامه ده تفریق الصفقه داده چې زه اوس په تا دا ټول کتابونه په یو عقد باندې خرڅ کړم خو که په بعضو کې عیب وي نو ته داسې نشي کولی چې عیب جن واپس کړې او روغ واخلې یا به ټول واپس کوې یا به ټول اخلې ځکه بیا خو تفریق الصفقه لازمیږي او دا حرامه دی [۳] نو دلته هم چې د پوره جماعت لمونځونه د الله جلّ جلاله حضورته ور وړلی شي نو الله جلّ جلاله به یا ټول قبلوي یا به ټول رد وي ټول خو نشي رد کولی ځکه په دې ټول جماعت کې خو به د یو کس لمونځ خامخا قبلوي او که صحیح قبلوي او غیر صحیح رد کوي بیا خو تفریق الصفقه زلازمیږي او تفریق الصفقه الله جلّ جلاله پر مونږ حرامه کړې نو د الله جلّ جلاله غیرت دا تقاضا نه کوي چې دا دې په خپله تفریق الصفقه وکړي نو ځکه ټول قبلیږي.

---

(۱):- وائي نعبد او نستعین د جمعیت لپاره مجوّز دی فقط مفرد ئې هم ویل شي اعبد او استعین لکه څنګه ئې چې جمع ویل شي.

(۲):- تفریق په لغت کې ضد د اجتماع ده او فقهاء ئې هم په همدې معنی کې کاره وي یعنې د دوه تړون کونکو جلاوالي ته تفریق وائي کذا فی دررالاحکام شرح مجلة الاحکام: ۱ / ۱۲۸. شرح المادة ۱۷۷ . او صفقه په لغت کې د بیعې د تړون پر مهال یولاس پر بل یا د بل چا په لاس و هلو ته صفقه وائي کذا فی المعجم مالصطلاحات المالیة والاقتصادیة فی اللغة الفقهاء: ۱ / ۱٤٤ . او په اصطلاح د فقهاء وو کې په معلومو روپیو یوې سودا.ته صفقه وائي (فهی العقد الواحد بثمن واحد کذا فی المعجم الصطلحات : ۱ / ۱٤٤. صفقه په درې دوله ده تفریق الصفقه ، تبعیض الصفقه ، تجزء الصفقه ، زمونږ فقهاء فرمائي کله چې صفقه واحده وي بیا ئې تفریق روا نه دی لکه په دې خبره علامه ابن نجیم، علامه خالد آتاسی، او علامه وهبةالزحیلي رحمهم الله تصریح کړي ده فرماني لابدّ من معرفة ما یوجب اتحاد الصفقة و تفریقها و ذالک امّا بسبب العاقدین او بسبب المبیع. . . . و امّا بالنسبة للمبیع فان اتّحد الساقدین و قبل احدهما فی بعض المبیع دون بعض لم یصح العقد لتفریق الصفقة: الفقه الاسلامي وادلّته : ٤ / ۱۳۲ . وشرح مجلة الاحکام لعلامة خالدالاتاسي : ۱ / ٤۷.

(۳):- الهدایة : ۳ / ۳٦ . مکتبه حقانیة.

(فِي تَضاعِيف عبَادتِهِمْ)ضعاف ويلی شي مینځ د خطبې ته لکه په حدیث د سنن ابن ماجه کې راځي چې نبي علیه السلام به د خطبې په مینځ د خطبې کې تکبیر ویلې.[1]

او دا قول چې (لعلّها تقبل ببركتها) دا په نعبد کې.

**تفسير بيضاوي**: ( وَ قُدِّمَ المَفعولُ لِتعظِيْمِ وَ الاِهْتمَام بِهِ)

**ترجمه**: او مقدم کړی شو مفعول (اياک په نعبد أو نستعين) ل. وجې د تعظيم او مهتم بالشان کيدو.

**تشریح**: دلته څلورم بحث ذکر کوي چې تقدیم د ایاک دي په نعبد او نستعین باندې ځکه داسې چې اياک په نعبد او نستعين دواړو باندې مقدم کړی شو او حال دا چې اياک معمول دی او نعبد و نستعين عاملين دي او مرتبه د عامل مقدمه وي په معمول باندې او دلته معمول مقدم شوی نو د تقديم د معمول لپاره پنځه وجې بیانوي.

## د تقدیم د معمول لپاره پنځه وجې

(۱) لفظ د اياک نه مراد الله جلّ جلاله او نعبد نه مونږ(عباد) نو له وجې د تعظيم نه مقدم کړی شو.

(۲) لفظ د اياک نه الله جلّ جلاله مراد دی او نعبد نه مونږ مراد یو نو له وجې د اهتمام مقدم کړی شو.

**تفسير بيضاوي**: ( وَ الدّلالَة عَلَى الحَصرِ وَ لِذالِك قَال ابنُ عبَّاس رضِيَ الله عنهمَا مَعناهُ نَعبُدكَ و لَانَعبدُ غَيرَكَ)

**ترجمه**: او دلالت په حصر باندې پیدا کوي او د دې حصر له امله عبد الله ابن عباس رضي الله عنه فرمايي: يا الله مونږ ستا عبادت کوو ستا نه بغير د بل چا عبادت نه کوو.

---

(۱) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَعْدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ سَعْدٍ الْمُؤَذِّنِ قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «يُكَبِّرُ بَيْنَ أَضْعَافِ الْخُطْبَةِ، يُكْثِرُ التَّكْبِيرَ فِي خُطْبَةِ الْعِيدَيْنِ» رواه سنن ابن ماجه (۱/ ۴۰۹)رقم الحديث - ۱۲۸۷

**تشریح**: دا دریمه وجه ده لپاره د تقدیم د ایاک په عاملینو

(۳) ایّاک په نعبد او نستعین ځکه مقدم کړی شو چې دلالت په حصر باندې وکړي ځکه 13
تقدیم ما حقه التاخیر یفید الحصر و الاختصاص.

خو دلته په دې حصر کې خفاء ده علامه ابن حاجب رحمه الله له حصر نه منکر دی ځکه هغه وائي چې دا جمله ایّاک نعبد سره مخاطب مؤمنان دي او مؤمنان د غیر الله عبادت نه کوي نو ځکه حصر ته په ایّاک نعبد کې ضرورت نشته او هم د غه رنګ ایاک نستعین دی چې حصر ته پکې هیڅ اړتیا نه لیدل کیږي ځکه مسلمان په مافوق الاسباب کې له غیر الله څخه مدد نه غواړي نو دلته نه قصر افرادي شته او نه قصر قلبي او کله چې دا دواړه قصرونه نشته نو حصر هم نشته.

مصنف رحمه الله وایي چې دلته حصر شته په تائید کې د عبد ابن عباس (رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ) قول پیش کوي حصر او اختصاص «مایوجد فیه ولایوجد فی غیره» ته وائي په «نعبدک» کې «مایوجد» دی «ولانعبد غیرک» کې و«لایوجد فی غیره» دي، کومه خفاء چې د علامه ابن حاجب له قول پیدا شوې وه هغه ختمه شوه په دې طریقه چې دلته حصر حقیقي دی او حصر حقیقي د رد د خطا مقتضي نه وي نو له قصر افرادي او قصر قلبي څخه په خو له حصر نه بلکل انکار نشي کیدی.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَ نقْدِیمُ مَاهُو مقدَّمٌ فِی الوُجُودِ)

**ترجمه**: تقدیم د هغه چا ئې او کړچې هغه په وجود کې مقدم وه.

**تشریح**: دا څلورمه وجه بیانوي لپاره د تقدیم د ایّاک په نعبد باندې.

(۴) ایّاک په نعبد او نستعین مقدم کړی شو له وجې د موافقت د تقدیم ذکري له تقدیم وجودي سره الله جلّ جلاله په وجود کې مقدم وه ځکه دا مبدأ دی د تمامو کائناتو لپاره نو په ذکر کې هم مقدم کړ له وجې د موافقت نه.

**تفسیر بیضاوي**: (وَ التَّنِبه علی أنَّ العَابدَ یَنْبغِي أنْ یکونَ نَظرهُ الی المَعبُودِ أوّلًا وَ بِالذّات).

**ترجمه**: او تنبه ده په دې خبره چې مناسب خبر داده چې د عابد نظر اوّلًا او بالذات خپل معبود ته وي.

**تشریح**: دا پنځمه وجه دی لپاره د تقدیم د ایاک په نعبد باندې.

(۵)ایاک په نعبد او نستعین ځکه مقدم کړی شو چې ایاک نه الله جل جلاله مراد دی او د عابد لپاره مناسب هم دی چې اول نظر ئې په الله جل جلاله لږیږي نو ځکه ئې مقدم کړو.

**تفسیربیضاوي**: (وَ مِنهُ إلى العِبادَةِ لَامِنْ حيثُ أَنَّها عِبادةٌ صَدَرتْ عَنهُ بَلْ مِنْ حَيثُ أَنَّها نِسْبةٌ شرِيْفَةٌ الَيهِ وَ وَصْلةٌ سَنِيَّةٌ بَينَهُ وَ بَينَ الْحَقِّ فَانَّ العَارفَ إِنَّمَا يَحِقُّ وُصُولُه اذا اسْتَغْرقَ فِى مُلاحَظَة جَنابِ الْقُدْسِ وَ غَابَ عَمَّا عَداهُ حَتَّى أَنَّه لَايُلاحَظ نَفسَهُ وَ لَاحَالًا مِّن أَحوَالِها مِن حيثُ أَنَّها مُلاحَظةٌ لَه وَمُنْتَسِبَةٌ الَيهِ).

**ترجمه**: او بیا له معبود نه نظر عبادت ته وي خو په دې حیثیت نه چې دا عبادت دی او له څخه صادریږي بلکه په دې حیثیت به ورته ګوري چې دا الله جلّ جلاله ته یو نسبت شریفه دی او یوه وسیله ده په منځ د ده او الله جلّ جلاله کې ځکه عارف بالله ته وصول الی الله حاصلیږي کله چې دا مستغرق شي په ملاحظه د ذات او صفاتو کې او غائب شي له ماسوا څخه تردې چې عارف بالله د خپل ځان لحاظ هم نه کوي او نه د یو حال د احوالو د لمونځ لحاظ کوي مګر د حال ملاحظه کوي له دې وجې نه چې دا ملاحظه ده له رب خپل سره او نسبت دی له الله جلّ جلاله سره.

**تشریح**: عبادت ته به په دې نیت نظر نه کوي چې دا زه کوم بلکه په دې نیت به ورته نظر کوې چې دا ما الله جلّ جلاله ته رسوي نو بیا نظر الله جلّ جلاله ته شو ورنه نظر الی الله نه دی ځکه عبادت خو یوه وسیله ده مقصود پکې معبود دی ته چې عبادت کوې په دې حیثیت یې کوه چې دا یو نسبت او وسیله ده ستا او د معبود په مینځ کې.

د ځان لحاظ به نه کوي هغه داسې چې یو سړی د ځان لحاظ کوي یو سړی د جنت لحاظ کوي اویو سړی د الله جلّ جلاله لحاظ کوي، څوک چې د جنت لحاظ کوي دیته ذُهد وائې. ذاهد وائي یاالله لمونځ کوم د دې لپاره چې جنت ته داخل شم اوڅوک چې د ځان لحاظ کوي دا د عبودیت مرتبه ده لکه وائي یا الله لمونځ کوم د دې لپاره چې لوی ولي الله رانه الله جلّ جلاله جوړ کړي او

څوک چې د الله جل جلاله لحاظ کوي دا مرتبه د عبادت ده لکه وائي يا الله لمونځ کوم نه د جنت حصول لپاره او نه د جهنم څخه د نجات لپاره او نه د خپل ځان لپارة ، خاص ستا لپاره لمونځ کوم.

## عبادت، عبودية او عبودة

علماء کرام فرمائي چې يو عبادة دی بل عبودية دی او بل عبودة دی عبادة مقام اياک نعبد ده او عبودية مقام داياک نستعين ده عبودة مقام د شهود العبان دی ځيني بيا وائ:

(۱) فالعبادة عمل العبدلله و العبودية عمل العبد بالله و العبودة عمل العبد فى الله

(۲) العبادة العمل بالشريعة والعبودية سلوک الطريقة والعبودة مشاهدة الحقيقة

(۳) العبادة عمل المعبود والعبودية عمل المريد والعبودة عمل العارف

(۴) العبادة عمل اصحاب اليمين والعبودية عمل المقربين والعبودة مقام السابقين

(۵) العبادة عمل الظالم لنفسه والعبودية عمل المقتصد والعبودة عمل السابق بالخيرات

(۶) العبادة عمل العالم والعبودية عمل الولي والعبودة عمل العارف الكبير

(۷) العبادة عمل الجوارح والعبودية عمل القلب والعبودة عمل الرّوح.

## (عارف) (صوفي يا پير) (چاته وائي)

علامه الوسي رحمه الله صاحب د روح المعاني د دې آيت لاندې ( اِنْ اَوْلِيَاءُهُ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ [1]) ليکي چې ولي متقي ته وائي او په دې آيت کې الله جلّ جلاله د ولي تعريف کړی بيا وروسته وائي چې ما ډير داسې کسان وليدل چې تنور به ئې ځانته گرم کړو او پکې ورننه به وتل خو او حال دا چې دابه فاسقان و يعنې په خارق العادت کارونو سره څوک ولي نشي جوړيدلی او نه داسې کړنې نښې د ولايت نه دي ،په هوا الوتل يا دچا ازار څوک ووهل تر بزرگۍ پورې تړاو نه لري ځکه د کافر ازار هم لګيږي په سنتو عمل او په شريعت استقامت يوازې او يوازې د ولايت نښه ده نو خلاصه دا چې عارف هغه چاته وائي چې د هغه نظر يوازې او يوازې خپل رب او معبود ته وي خپل

---

[1]:- سورة الانفال: آية (٣٣).

ځان او دنیا ئې بالکلیة ترک کړي وي په دې کې چې کوم صفات دي دیته یې نظر نه وي او وائي چې داځه صفات چې ساکې موجود دي دا د الله جلّ جلاله په قدرت کې دي بیر ته ئې هم زانه اخیستلی شي او دا بل هم زما په شان انسان دی په ده کې دا صفات نشته نو الله جلّ جلاله نه دي ورکړي نو دا زما کمال نه دی او نه زما پکې اختیار شته نو بیا دا سړی له کبرنه خالي وي او دا چې له خپل ځان نه ورته بل څوک په دنیا کې نه ښکاري دا بیا هیڅ کله عارف نه دی شیخ صاحب (رحیم الله حقاني حفظه الله) وائي چې ما ته یو پیر وویل چې فلاني شیخ زما دومره عزت کوي چې ما نه مخکې هم نه ځي وائي ما ورته وویل چې ته پیر نه ئې ځکه ستا خپل ځان ته نظر دي نو د تصوف غټ مقصد دا دی چې انسان کې عاجزي پیدا کوي.

اشرف علی تهانوي رحمه الله نه چا پوښتنه وکړه چې په تصوف کې سړی ښه مخکې لاړشي آخر کومې مرتبې او مقام ته رسیږي او څه ترینه جوړیږي اشرف علی تهانوي رحمه الله ورته فرمائي چې تصوف کې مرتبه او مقام نشته په تصوف کې چې څومره مخکې ځې هغومره به پکې خاورې کیږي دا نفس به دي خاوې ایرې شي خپل ځان به په هیڅ ا وچت و نه ګڼې.

**تفسیربیضاوي:** ( وَ لِذَالك فُضِّل مَاحَكَى اللّهُ عنْ حَبيْبِه حِينَ قَالَ ( لَاتَحْزَنْ اِنّ الله مَعَنَا وَ عَلى مَاحَكَاهُ عنْ كَلِيمِهِ حِينَ قَالَ( اِنّ مَعِىَ رَبِّى سَيَهْدِين [1] ). .

**ترجمه**: له دې وجې نه فضیلت ورکړی شو هغې ته چې حکایت کړی الله (جَلَّجَلَالُهُ) له خپل حبیب محمّد رسول الله (صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) نه هغه وخت کې چې هغه وویل مه خفه کیږه الله جلّ جلاله مونږ سره دی او په هغه چې حکایت کړی الله جلّ جلاله د خپل کلیم (موسی (عَلَيْهِالسَّلَامُ)) نه کله چې وویل (موسی (عَلَيْهِالسَّلَامُ)) خپل قوم ته یقینًا ما سره مدد د ربّ زما دی زر ده چې هغه به ما ته لار وښائي.

**تشریح**: دا حکایت د رسول الله (صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) څخه کوي چې د هجرت په موقع رسول الله (صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) او ابو بکر صدیق (رَضِيَاللَّهُعَنْهُ) په غار ثور کې د کفارو نه پناه اخیستي وه چې کله کفار د غار ثور خواته را ورسیدل نو ابوبکر (رَضِيَاللَّهُعَنْهُ) په رسول الله (صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ) باندې ډیر

(۱):- سورة التوبة : آية (۹۲).

خفه شو چې هسې نه زانه شهید نې کړي نو رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ورته وویل «لَاتَحزَن اِنّ الله معَنا» د رسول الله (صلى الله عليه وسلم) اول نظر په الله جل جلاله و.

او د غسې چې کله چې فرعونیان له موسی (علیه السلام) او قوم د هغه پسې شوه نو موسی علیه السلام ته مخکې رود نیل راغې او روسته فرعونیان وو نو د موسی (علیه السلام) نظر اول په ځان وو ځکه ئې «مَعِیَ» ذکر کړ د دې وجې د رسول الله (صلى الله عليه وسلم) فضیلت (مرتبه) په موسی (علیه السلام) باندې لوړه او اوچته ده.

## ایاک یې ولې مکرر ذکر کړ

**تفسیر بیضاوي**: ( وَ كَرَّرَ الضَّمِيرُ لِلتَّنْصِيصِ عَلَى أَنَّهُ الْمُسْتَعَانُ بِه لَاغَيْرُ)

**ترجمه**: او مکرر ئې کړ ضمیر (ایّاک) لپاره د تنصیص ذکر کړ چې مدد یواځې له تا نه مطلوب دی بل چا نه مطلوب نه دی.

**تشریح**: دا عبارت دفع د یو سوال دی هغه دا

**سوال**: ایّاک ضمیر دې ولې مکرر ذکر کړ داسې به دې ویلي و ایّاک نعبد ونستعین تکرار ته څه حاجت و؟

(۱)**جواب**: یو زَوق د عامو شاریحینو دی هغوئ وائې چې ایّاک مکرر راوړل شوی دا لپاره د استقلال ځکه که یو ایّاک باندې اکتفا شوی وائي بیا به متوهم دا وهم کاوه چې مجموعه د عبادت او استعانت خاص تر الله پورې دی او هر یو به ځان ځان ته الله جلّ جلاله پورې خاص نه وي نو چې نعبد سره ئې ذکر کړ عبادت خاص شو تر الله جلّ جلاله پورې بیا یې چې نستعین سره ئې ذکر کړ نو استعانت هم خاص شو تر الله جلّ جلاله پورې نو په دې سره وهم د متوهم زائل شو.

(۲)**جواب**: او یو زَوق د علامه سیالکوټي رحمه الله دی هغه وائې چې دا ځکه مکرر ذکر کړی شو چې دلته تصریح په حصر دی که ایّاک نعبد ونستعین ئې ویلي وائی متوهم به دا وهم کولو چې د نستعین معمول روسته مقدر دی یعنې په استعانت کې به حصر تر الله جلّ جلاله پورې نه وي نو چې ایّاک نعبد و ایّاک نستعین ئې وویل تصریح ئې په حصر وکړه چې څنګه په عبادت کې حصر دی د غه شان په استعانت کې هم حصر دی.

## تقديم د عبادت په استعانت

**تفسيربيضاوي**: ( وَقُدمَتِ العِبادَةُ على الِاسْتعَانةِ لِيتوَافَقَ رُؤُوس الآيِ وَ يُعْلَمَ مِنهُ أنّ تَقْديمَ الوَسِيْلةِ عَلى طَلبِ الحَاجةِ أدْعى اِلى الِاجَابةِ).

**ترجمه**: عبادت په استعانة مقدم کړی شو يو له دئ وجې چې موافق شي آخري سرونه د آياتونو او له دې وجې او معلومه کړی شي دا خبره چې د ضرورت او حاجت د سوال نه مخکې وسيله کول د قبوليت لپاره زيات داعي او طلب کونکی وي.

**تشريح**: **سوال**: اياک نعبد ولې مقدم کړی شو په اياک نستعين ؟

(۱)**جواب**: «ليتوافق رؤوس الآی» چې موافق شي سرونه د آياتونو ځکه مخکې د ټولو آياتونو په آخرکې حرف متحرک ماقبله ساکن دی لکه العالمين الرّحيم يوم الدّين ايّاک نستعين نو ټول آياتونه په آخرکې متحرک ماقبل کې ساکن دی نو که نعبد مو مؤخّر کړی وائی بيا توافق نه راتلو په سرو د اياتونو کې .

(۲)**جواب**: ځکه نعبد مقدم کړی شوی په ايّاک نستعين باندې چې کله د الله جلّ جلاله نه مدد غواړې نو مخکې ورته وسيله وړاندې کړه نو ځکه دلته ورته عبادت مخکې کړی شو او دیته وسيله بالعبادت وائي.

### (د وسيله اقسام او حکم)

وسيله په لغت کې نزديکت او قرب ته وائي [۱] وسيله هم يو له هغو مسئلو څخه ده چې نن صبا د اهل حقو او اهل بدعو ترمنځ معرکة الاراء گرځېدلې ده، وسيله که څه هم ځيني ناروا صورتونه لري لکه الله جلّ جلاله فرمائي چې کفارو به د غير الله عبادت کولو او ويل به ئي (مايعبدهم الّا ليُقرّبنا الى الله زلفى) خو هغه وسيله چې د اهل السنّة والجماعة په نزد مستحبّة ده په شپږ قسمه ده.

(۱) (توسّل بالايمان و بالاعمال الصّالحة) بيا خپل عمل وي که دبل.

---

(۱):- مصباح اللغات: ۹٤٦ .والنهاية فى غريب الحديث لابن الاثير

(٢) د يو انسان له پيدائش نه مخکې د هغه ذات وسيله کول.

(٣) د نبي يا ولي څخه دعا غوښتل.

(۴) د نبي يا ولي له پيدائش نه روسته د هغه ذات وسيله کول.

(۵) د نبي يا ولي له وفات نه روسته د هغه ذات وسيله کول.

(۶) د توسّل سره متعلق مسئله د يو نبي يا ولي په آثارو باندې تبرک حاصلول دا ټول د توسّل هغه اقسام دي چې په دعاکې ئې وسيله کول مستحب دي لکه امام شاولی الله دهلوي رحمه الله فرمائي په دعا کې انبياء عليهم السلام او اولياء وسيله کول د دعا د اداښو څخه ده [1] په دې موضوع کې په احقاق الحق کې شيخ صاحب ښه وضاحت کړی او په هر قسم د توسّل ئې ښه پوره دلائل راوړي او په لسګونو فتوګانې ئې د امّت داکابرو راجمع کړې دي نو که په بحث ځان مړول غواړي د احقاق الحق څلورم جلد رسالة التّوسل ته مراجعه وکړه.

**تفسير بيضاوي:** (وَ أقولُ لَمَّا نَسبَ المُتكَلِّم العِبادةَ اِلى نَفسِهِ أَوهَم ذَالک تَبَجّحًا وَ اعْتِداذًا منْهُ بِمايَصدُرُ عَنهُ فَعقِبَهُ بِقَولِه وَ اِيّاک نَستَعِين لِيدلَّ عَلى أَنّ العبادةَ أيضًا مِمّا لَايتمّ وَ لايسْتَتبُ لهُ اِلّا بِمعُونة منْهُ وَتوفِيقٍ).

**ترجمه:** او زه وايم چې کله متکلّم د عبادت نسبت خپل ځان ته وکړي په ايّاک نعبد سره دغه نسبت په ځان باندې د فخر وهم پيدا کوي او شماري د اعبادت له ځان څخه چې دا خو مانه صادرېدلی شي دې نه پس يې دا قول ذکر کړو چې ايّاک نستعين د دې لپاره چې دا دلالت وکړي چې عبادت هم د هغه قسم څخه دی چې نه پوره کېږي او نه برابرېږي مګر په مدد او توفيق د الله (جَلَّجَلَالُهُ).

**تشريح:** دلته قاضي بيضاوي (رَحِمَهُاللَّهُ) په تقديم باندې خپله يوه نکته بيانوي فرمائي چې د عبادت او استعانت څخه د الله تعالی د معبوديت اظهار مقصد دی نه د مستعان کيدلو او د خپل ځان د تذليل او خاکساري اظهار مقصد دی نو کله چې سړی ووائي ايّاک نعبد مونږ عبادت کوو

(١):- عزيزالفتاوی: ٨ / ١٧١. حجة الله البالغة : ٢ / ٦.

يعنې د عبادت نسبت ځان ته وکړي نو په سره سړي کې يو څه عجب راځي چې زه هم عبادت کولی شم خو چې نستعين ووائي دا عجب ختم شي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَ قِيلَ الوَاوُ لِلحالِ وَ المَعْنى نَعبدُك مُستَعِينِينَ بِك).

**ترجمه**: او چا ويلي دي چې واو په (وايّاک نستعين) کې د حال لپاره دی نو معنی دا شوه چې يا الله مونږ ستا عبادت کوو په داسې حال کې چې ستا نه مدد غواړو.

**تشريح**: دا واو عاطفه دی خو ځينې علماء وايي چې دا واو حاليه دی:

**سوال**: ايّاک نستعين کې خو آينده کې مدد غوښتل شوی نو دا خو بيا مضارع شوه او مضارع چې کله حال واقع شئ هغه له ذوالحال سره يوازې مربوطه بضميروي او دا مربوطه بالواو ده او واو د جملې اسميي په صورت کې راوړلی شي او په نستعين کې ضمير نشته نو دا به څنګه حال شي!

(۱) **جواب**: علامه ابن مالک په الفيه کې داسې جواب کړی چې مضارع مربوطه بضمير هغه وخت کې وي چې مضارع مثبته په صدر د کلام کې راغلي وي او دلته په صدر کې ايّاک دی چې معمول د مضارع دی نو د جملې د اسميې سره د مشابهت ساتلو له وجې يې په واو سره مربوطول کافي دي.

(۲) **جواب**: ستا سوال به هغه وخت وارد وي چې دا جمله فعليه وای بلکې دا جمله اسميه دی هغه داسې چې دلته (نحن) مقدر دی اصل عبارت داسې دی (نحن اياک نستعين) او د جملې اسميې ارظباط په واو سره صحيح وي.

**تفسيربيضاوي**: (وَ قُرِءَ بِكسْرِالنُّونِ فِيهِمَا وَهِى لُغةُ بَنِى تَمِيم فَانَّهُم يُكْسِرُونَ حُروفَ المُضَارِعَة سِوَى الْيَاءِ اذَا لَم يُنْضَمَّ مَابعدهَا).

**ترجمه**: او لوستلی شوی دی په دواړو (نعبد او نستعين) کې په کسرې د نون سره چې دا ده بني تميمو لغت دی ځکه دوی حروف مضارعت مکسور کوي سوا د ياء نه چې کله ما بعد د حروفو د مضارعت نه مضموم نه وي.

**تشريح**: دلته په نعبد او نستعين کې د قرأت بحث کوي فرمايي چې بني تميم علامات د مضارع ته کسره ورکوي سوا د ياء نه خو په دې شرط چې روسته ترينه مضموم حرف نه وي او دلته

خو له نون څخه ورسته حرف (عین کلمه)مضموم دی بعض علماء دا جواب کوي چې دا قرأت بیا شاذ دی او مصنف فرمایي چې (اذَا لَم يُنْضَمَّ مَابعدهَا) مطلب دادي چې له حروف اتین څخه روسته متصل چې کوم حرف دي هغه به مضموم نه وي او په نعبد کې متصل عین دی او دا غیر مضموم دی نو عبارت به داسې شي اِيّاکَ نَعْبُدُ وَاِيّاکَ نَسْتَعِيْن.

## (۵) اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ.

**تفسیربیضاوي**: ( إِهْدِنا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ) بَيانٌ لِلمَعُونةِ المَطلُوبةِ فكَأنّه قَالَ كَيفَ أُعِينُكمْ فَقالَ اِهدِنا أَو إفرَادُ لِماهُوالمَقصُودُ الأَعْظمُ).

**ترجمه**: الله مونږ ته وښه ئې سمه لاره دا د مطلوب مدد بیان دی ګویا چې الله ﷻ فرمایل چې زه ستا څنګه مدد وکړم نو دوی وائې اهدنا یا دا افراد د هر هغه شي دی چې هغه مقصود اعظم دی.

**تشریح**: دلته قاضي بیضاوی رحمه الله درې بحثه کوي (۱) د دې آیت له مخکې آیانو او جملو سره د ربط بیان (۲) د هدایت متعلق تحقیق (۳) د صراط المستقیم تحقیق.

**لومړی بحث**: هغه دا چې دا یا جمله مستأنفه ده یا جمله مستقله ده.

## جمله مستأنفه او جمله مستقله

**جمله مستأنفه**: که دا جمله مستأنفه شي دا به واقع شي په جواب د سوال د سائل کې لکه الله جلّ جلاله چې سوال کړی وي کیف اعینکم زه ستاسو څنګه مدد وکړم مونږ ورته وایو اهدنا الصراط المستقیم یا الله نیغه لار راته وښایه نو دا جمله مستأنفه شوه په نزد قاضي بیضاوي رحمه الله او جمله مستأنفه مصدره په واو نه وي او دا مصدره په واو نشوه.

**جمله مستقله**: نور شارحین ئې ربط داسې بیانوي چې دا جمله مستقله ده په ایّاک نستعین او اهدنا الصراط المستقیم کې څلور احتماله دي.

دوه احتماله په نستعین کې دي:

(۱)احتمال دا دی چې د ایّاک نستعین لپاره مفعول به عام شي چې (فی مهمات کلّها)

(۲)احتمال دا چې مفعول به د نستعین خاص شي (ای فی اداء العبادات).

او دوه احتماله په اهدنا الطراط المستقیم کې دي.

(۱) احتمال چې صراط المستقیم څخه عامه معنی واخلې ای طریقة الحق.

(۲) احتمال دا چې صراط المستقیم نه خاص معنی واخلې ای ملت الاسلام او که د دواړو نه عامي معناګانې واخلې نو دا به د یو بل لپاره بیان شي نو د دواړو په مابین کې به کمال اتصال راشي نو بیا د کمال اتصال له وجې حرف عطف ته ضرورت رانغی، او که د دواړو نه خاص معناګانې واخلې نو بیا هم یکې کمال اتصال دی ځکه حرف عطف نه راوړي.

دریم دا که د اول نه عامه معنی واخلې او د دوهم نه خاصه واخلې په اول کې فی مهمات کلها دی او دوهم کې ملت الاسلام نو دا ذکر د جزئي دی بعد الکلي او ذکر د جزئي بعد الکلي بیان وي نو بیائې هم ځکه واو حرف عطف پرې ښې چې ضرورت ورته نه و نو په دې درې وو کې د حرف عطف د پرېښود مجوز شته څلورم که اول نه خاصه معنی واخلې او دوهم نه عامه معنی واخلې چې په اول کې ادآء العبادات او په دوهم کې طریق الحق دی نو دا اخیستل نه دي جائز ځکه دلته د حرف عطف لپاره مجوز نه جوړیږي.

خو قاضي بیضاوي رحمه الله اولنی ربط بیاوي چې دا جمله مستأنفه ده.

یا په ایاک نستعین کې فی المهمات کلها ذکر دی او په اهدنا الصراط المستقیم کې ملت الاسلام مراد دی نو دا ذکر د فرد عظیم دی روسته د کلي نه (ذکر د جزئي روسته کلي نه).

## (بحث هداية)

**تفسیربیضاوي:** (وَالهِدَايَةُ دَلالَة بِلطُفٍ وَلِذالِكَ تَسْتعمَلُ فِي الخَيرِ).

**ترجمه:** هدایة په نرمۍ سره ښودنې کولو ته وائي له دې وجې نه د هدایت استعمال د خیر په کارونو کې کیږي.

**تشریح:** په هدایت کې هغه مشهور بحث دی لنډه دا چې معتزله وائي هدایة ایصال الی المطلوب ته وائي د دوی په نزد په هدایة کې مطلوب ته رسیدل شرط دي.

په دوی اعتراض راځي چې (فَاَمّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنَا هُمْ) دې کې خو ایصال الی المطلوب نشته ځکه دوی خو ایمان نه وو راوړی دا خو الله جلّ جلاله په حالت د کفر کې هلاک کړل.

**اشاعره علماء وايي:** هدایت ارائت الطریق ته وائي یعنې علی مایوصل به الی المطلوب په دوی هم اعتراض راځي چې( اِنَّکَ لَاتَهْدِيْ مَنْ اَحببتَ) دلته خو معنی د ارائت الطریق نه صحیح کیږي

ځکه رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)خو ارائة الطریق کړی وو او الله جلّ جلاله په دې ایت کې فرمائي چې هدایة (ارائة الطریق) نشي کولی ؟ نو په دواړو معناګانو اعتراض راغلو اول اعتراض نه جواب کوي چې (فامّاثمود فهدیناهم) کې ارائة الطریق معنی مراد ده

بیا ورته وائي چې دا معنی حقیقي ده که مجازي که حقیقي وي نو هدایت دې مشترک کړو او که مجازي وي نو مجاز ته دې عدول وکړو او اشتراک او مجاز دواړه خلاف الاصل دي ځکه اصل په لفظ کې حقیقت دی.

او له دوهم اعتراض نه چې (انّک لاتهدی من احببت) جواب کوي چې دلته معنی د ایصال الی المطلوب مراد دی بیا ده ته هم وائې چې دا معنی حقیقي ده که مجازي که حقیقي وي نو اشتراک راځي او که مجازي وي نو مجاز ته دې عدول وکړ او دواړه خلاف الاصل دي علامه تفتازاني رحمه الله هم په حاشیه د کشاف کې په دوی کې محاکمه کړي هغه داسې چې هدایة کله مفعول ثاني ته متعدي وي بالذات او کله بالواسطه چې کله هدایة متعدّي وي مفعول ثاني ته بالذات لکه

(اهدنا الصراط المستقيم) نو دلته به د معتزله وو معنى مراده وي چې ايصال الى المطلوب ده او چې كله هداية مفعول ثاني ته متعدي په واسطې د الى يا مِن سره وي لكه (والله يهدى من يّشاء الى صراطٍ مّستقيم) نو دلته به د اشاعرو معنى مراد ده وي چې ارائة الطريق دى.

نو قاضي بيضاوي د دې وجې نه دا دواړه معناګانې نه كوي بلكه يوه داسې معنى كوي چې دې دواړو ته ورمتناوله او شامله وي يعنې اعمه معنى وي چې (دلالة بلطف) ده دا بيا كه په ضمن د ايصال الى المطلوب كې وي او كه په ضمن د ارائة الطريق كې وي نو اعتراض پرې راځي دلالت بلطف وائي (خلق اسباب الطاعات) پيدا كوي د اسبابو د طاعاتو لكه عقل بلوغ ليږل د رسول او نازلول د كتاب او داسې نور.

**تفسيربيضاوي:** (وَقَوْلهُ تَعالى(مِنْ دُونِ الله فَهْدُوْهُم اِلى صِرَاطِ الجحيم [1]) وَارِدٌ عَلَى التَّهَكُّم وَمِنهُ الهِدايةُ الهَوادِي الوَحِشِ لمُقدِماتِهَا) .

**ترجمه:** او هر چې دا قول د الله (جَلَّجَلَالُهُ) دى هدايت وكړئ د دوى لارې د جهنم ته دا تهكم سخريه ده او د دې نه هديه (تحفه) هم ده او صحرائي ځناور چې مخكې روان وي د خپلې رمې ته ارنه كوي.

**تشريح:** په دې سره دفع د اعتراض دى.

**سوال:** تا وويل چې هدايت په خيركې مستعمليږي په ذكر شوي آيت كې خو په شركې استعمال شوى چې ښودنه د جهنم دى!

**جواب:** (وارد على التهكم) د امجاز دى په طريقې د سخريه سره استعمال شوى لكه ګنجي ته چې وائې ځښې دي ځنګه دي.

تحكم وايي احد الضدين د اخر په معنا سره استعمالول.

او هديه هم له هدايت ځخه دى ، هديه مقدمه د محبت ته وائي نو د خير مقدمه شوه د غه شان هوادي الوحش هغه ځناورو ته وايي چې په ځنګل كې له رمې نه مخكې روان وي نو دا ياله دي

[1]:- سورة الصافات: آية (۲۳).

وجې مخکې ترینه ځي چې هسې نه کوم زمری یابل حیوان حمله پرې ونکړي نو دغه مخکینو ځناورو ته هوادي وائي.

**تفسیربیضاوی**: ( وَ الْفِعلُ مِنهُ هَدَی وَ أَصلُه أَنْ یُعَدی بِاللَّامِ أو اِلی فَعُومِلَ مُعَامَلة أختَار فِی قوله تعالی( وَاخْتَارَ مُوسَی قَومَه [1]).

**ترجمه**: د دې هدایت نه فعل هدی راځي او اصل د دې (هدی یهدی) دا دی چې دا به په لام او یا الی سره متعدي کیږي له دې سره عمل وشو په شان د عمل د اختار لکه په دې آیت کې و اختار مُوسَی قَومَه..

**تشریح**: دلته په هدایت کې صرفي بحث کوي . خلاصه دا چې دا د باب ضرب یضرب نه ناقص دی. اصل د دې دا دی چې دا دې متعدي شي په لام یا الی سره نو ځکه عبادت پکاردی (اهدنا لِلصراط المستقیم یا اهدنا الی الصراط المستقیم) خو دلته په یو سره هم متعدي نه شو دیته حذف الایصال وائي.

**سوال**: دې آیت کې خو صراط سره لام او الی نه دي ذکر ایآ بل ځای کې داسې مثال ښودلی شي چې هلته نه لام او نه الی ذکر وي یعني حذف ایصال شوی وي؟

**جواب**: هو داسې مثال په قرآن کې هم موجود دی اختیار لازمي دی متعدي کیږي په مِن سره او مِن نه دې ذکر نو دلته هم حذف الایصال شوی دی.

(۱):- سورة الاعراف: آیة (۵۵).

## (د هداية انواع او اجناس)

**تفسيربيضاوى**: ( وَ هِدَايةُ اللهِ تعالى تَتنَوَّعُ أنواعًا لَايُحصِيهَا عَد كمَاقَالَ اللهُ تعالى (وان تَعدَوا نِعمَةَ الله لاتُحصُوها[1]) وَلَكنّها تَنحصرُ فى أجْناسٍ مُتَرتبَةٌ ألاوّلِ أفاضَة القُوى ألّتى بِها يَتمَكّنُ المَرءُ منْ الاهْتِداءِ الى مَصالِحِهِ كَالقُوَّة العَقْليّةِ وَ الحَواسِ البَاطِنةِ وَالمُشاعِرِ الظّاهرةِ).

**ترجمه**: د الله جلّ جلاله هدايت ډيرو اقسامو ته تقسيمږي چې شمار ئې راګيرولى نشي لکه الله جلّ جلاله فرمائي که تاسو د الله جلّ جلاله د نعمتونو شمار کوئ نو وبه ئې نه شمارئ؛ خو لکن دا هدايت په څو اجناسو کې مرتب دى اول بنده لره هغه قوتونه ورکول چې د غو قوتونو سره خپلو مصالحوته د سمې لارې قدرت مومي لکه قوّة عقلية او حواس باطنه او مشاعر ظاهره.

**تشريح**: انواع او اقسام د هدايت خو غيرمتناهي دي اما اجناس ئې څلور دي.

(۱) قوتونه ورکول دي ، يعني اسباب د طاعت الله جلّ جلاله درکوي لکه عقل حواس باطنه او ظاهره.

## حواس ظاهره او باطنه

حواس ظاهره پنځه دي (۱) باصره (۲) سامعه (۳) شامه (۴) ذائقه (۵) لامسه.

حواس باطنه پنځه دي (۱) حس مشترک (۲) وهم (۳) خيال (۴) متصرفه (۵) خزانه.

او دا قوتونه الله جل جلاله انسان ته په ابتداء کې يعني ماشوم توب کې ورکوي او بيا په هرقوت کې بې شميره نعمتونه پراته دي.

**تفسيربيضاوي**: (ألثَانِي نَصبُ الدّلائِلِ الْفَارِقَةِ بَينَ الحَقِّ وَالباطِلِ وَ الصَّلاحِ وَ الفَسَادِ وَ الَيهِ أشَارَ حَيْث قال (وَهَدَيْنَاهُ النّجدَين[2]) وقال وَاَمّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُم فَاستَحَبّوا العَمى على الهدى[3]) .

(۱):- سورة ابراهيم: آية (٣٤).

(۲):- سورة البلد: آية (١٠) .

(۳):- سورة السجدة : آية (١٧).

**ترجمه**: دویم هغه دلائل قائمول دي چې د حق او باطل او د صلاح او فساد په مینځ کې فرق پیداکوي دې خبرې ته الله جلّ جلاله په دې آیات کې اشاره کړې ده مونږ انسان ته د خیر او شر ښودنه کړې ده او الله جل جلاله په حق د ثمودیانو کې فرمائې مونږ ثمودیانو ته هدایت وکړو نو هغوی روندوالی (کفر) په هدایت غوره کړ.

**تشریح**: دا دوهم جنس د هدایت دی چې نصب الدلائل دي او دا په هغه وخت کې الله جلّ جلاله انسان ته ورکوي چې کله بلوغ ته په رسیدو شي یعنې مراحق شي نو په دې وخت کې بیا په دلائلو کې سوچ او فکرکولی شي او دلائل فارقه بین الحق او باطل او بین صلاح او فساد پیژني.

د بین الحق و الباطل نه قوت عملي مراد دی او د صلاح او فساد نه قوت نظري مراد دی.

**تفسیربیضاوي**:(وَالثَّالثُ أَلهِدَايَةُ بِارْسالِ الرّسُل وَ اِنْزَالِ الكِتَاب وَايَّاها عَنى بِقوله (وَجَعلْناهُم اَئِمَة يَهدون بِاَمْرنا [۱]) .

**ترجمه**: دریم جنس د هدایت په لیږلو د رسولانو او نازلولو د کتابونو او دا معنی ئې په خپل دې قول سره مراد کړې ده مونږ دوئ (انبیاء علیهم السلام) د دین امامان گرځولي وو دوی به زمونږ د حکم مطابق خلکو ته حق ښوده او د اقول د الله جلّ جلاله: یقینا دا قرآن هغه طریقه ښائې چې نیغه او سمه ده.

**تشریح**: دا دریم جنس د هدایت دی داروسته له قوت عملي او قوت نظري څخه انسان ته الله تعالی ورکوي چې ارسال الرّسل دی او انزال الکتب دي نو الله جلّ جلاله په دې سلسله کې یولک او څلیریشت زره پیغمبران او سل صحیفي او څلور کتابونه نازل کړي دي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَالرّابع أَن يَكشِفَ على قُلوبِهمْ السَّرَائِر وَ يُرِيهمْ الأشيَاءِ كمَاهِىَ بِالوَحْى أو الالهَام وَالمَنامَات الصّادقَه وَ هَذا قِسمٌ يَختَصُّ بنَيلهِ الأنْبِياءِ وَالأوْلِياءِ وَايّاهُ عَنى بقوله( اولئك الّذين هَدى الله فَبِهُداهم اقتده [۲]) وقوله (والّذين جَاهَدُوا فِينَا لَنَهدِيَنّهم سُبُلنا [۳]).

---

(۱):- سورة الانبياء: آية (۷۳).

(۲):- سورة الانعام: (۹۰).

(۳):- سورة العنكبوت (٦٩).

**ترجمه**: (څلورم دا چې الله جلّ جلاله د دوی زړونو ته پټ رازونه ښکاره کړي او داسې اشياء ورته وښائي لکه څنګه چې دا اشياء په نفس الامر کې وي په واسطې د وحې (انبياء ووته) او يا په واسطې د الهام (اولياء وو ته) اويا په واسطې د ربنتيا خوبونو (کاملو مؤمنانوته) او دا قسم (څلورم) ته په رسيدو خاص دی انبياء عليهم السلام او دا هدايت الله جلّ جلاله په دې قول کې مراد کړي دی : انبياء عليهم السلام هغه څوک دي چې الله جلّ جلاله ورته هدايت کړی وو نو ته ای پيغمبره د دوی طريقو پسې اقتداء اوکړه.

**تشريح**: دا څلورم جنس د هدايت دی کله چې درې واړه قسمه د هدايت مکمل حاصل شي او مجاهدو او رياضتونو خپل زړونه منور کړل شي نو الله تعالی دې کس ته څلورم قسم هدايت په دې ډول کوي چې دغه کس اسرار او حقايق د اشياؤ منکشف کړي نو که چيرته نبي وي د کشف د وحي په زريعه وي او که نبي نه وي هغه ته د الهام او ربښتونو خوبونو په زريعه منکشف کيږي؛ دا څلورم قسم د وحي په زريعه هدايت خاص دی تر انبياء عليهم السلام او که دالهام او ربښتونو خوبونو په زريعه وي بيا دا اولياء ؤو پورې خاص دی او دا قول د الله جلّ جلاله (والذين جَاهَدُوا فِينَا لَنَهدِيَنّهم سُبُلنا) چې هغه کسان چې زمونږ په لاره کې کوښښ کوي نو خامخا به ورته خپلې لارې اوښايو انبياءعليهم السلام وو ته کشف په ټولو رازونو کولو باندې دلالت کوي خو کلا نه بلکه بعضًا خو د انبياء عليهم السلام وو کشف(پټ رازونه) د ټول مخلوق نه زيات وي او د اولياؤو کشف بيا د عامو خلکونه زيات وي بلکه په بعضو اشياؤو وي او اعطائي وي يعنې عطائي جزئې دی مفتي فريد رحمه الله ليکي چې څوک ووائي چې رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) لره علم غيب کلي ذاتي ثابت دی نو دا سړی کافر دی.

مسئله د غلم الغيب په نن دور کې د علماؤ تر مينځ معرکة الاراء دی له هم دې امله د پا دې مسئلې يو څه وضاحت ضروري دی.

## مسئله د علم الغيب

14 د علم الغيب په مسئله کې زه د رته شيخ صيب مقاله وړاندې کوم هيله ده چې تنده په مو پرې ماته شي د اهل سنت والجماعت عقيده:

(١)-علم غيب په اصطلاح کې ذاتي او کلي وي . لهذا علم غيب صرف د الله تعالى صفت دی، عالم الغيب صرف الله تعالى دی، څوک چې په اصطلاحي معنى باندې علم الغيب بل چاته ثابتوي او يا په اصطلاحي معنى باندې بل چا ته عالم الغيب وايي هغه کافر دی.

(٢)- انباء الغيب او اخبار بالغيب چې د دې څخه وروسته لغوي علم الغيب راځي دا غير الله ته ثابت دی، او په دې کې د نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) برخه د نورو انبياء عليهم السلام څخه زياته ده، نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته د ډيرو غيوبو خبر ورکړل شوی دی، د دې څخه منکر هم ملحد او زنديق دی.

خلاصه دا چې علم الغيب اصطلاحي او شرعي ما فوق الاسباب او محيط يعنې ذاتي او کلي وي او علم الغيب لغوي، ماتحت الاسباب وي، علم الغيب اصطلاحي د الله تعالى خاص صفت دی.

مفتي محمد فريد رحمه الله ليکي چې: دعلم الغيب دوه معناګانې دي، يو علم ما فوق الاسباب، يعنې بغير د اسبابو نه علم لرل، او دا شرعي او اصطلاحي معنى ده، دويم: دا چې علم په هغه شيانو چې د حواسو او عقل نه او چت وي او دېته غيب لغوي وايي، علم غيب په اولنۍ معنى سره د الله تعالى سره مختص دی، ځکه چې د ممکن د ټولو کارونو ذات او صفات د الله تعالى ورکړه ده، لکه فرمايي: ومابکم من نعمة فمن الله، او دويم قسم انبياء عليهم السلام ته ورکړی شوی خو په قدر د ضرورت، نه دا چې ټول په ټوله الخ (١)

٣- څوک چې نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته عالم الغيب وايي او معنى لغوي مراد وي چې د وحي الهام او کشف په ذريعه وي، يعنې اظهار الغيب مراد وي نو دا ګناهګار شو، ځکه چې موهِم لفظ يې استعمال کړو، د علم الغيب د لفظ څخه متبادر علم غيب اصطلاحي دی، د شريعت په

---

(١) فتاوى فريديه ج١ص ٨٦

اصطلاح کې همدې اصطلاحي ته علم الغیب وایي او په همدې اصطلاحي علم الغیب باندې د احکامو مدار دی، لکه د صلوة، زکوة، حج وغیره څخه چې اصطلاحي معنی ګاڼې مرادې دي او په همدې اصطلاحي معناګانو باندې یې احکام مرتب دي.

۴- دلته درې شیان دي، یو د نبي (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) علم، دوهم غیب او دریم علم الغیب دی. اختلاف په دې دریم کې دی یعنې په علم الغیب کې، نو هغو دلایلو ته اعتبار دی چې په هغې کې علم الغیب راغلی وي د علم په دلایلو علم الغیب نه ثابتیږي لکه: (وعلمناه من لّدنا علما) دعلم دلیل دی ، د علم الغیب دلیل نه دی، همدارنګه (أوتیت علم الأولین والاخیرین) دا د علم دلیل دی خو د علم الغیب دلیل نه دی .

۵- علم الغیب په شریعت کې هغه دی چې ذاتي وي او کلي وي د اسبابو د علم په وجه به نه وي، اساب د علم درې دي حواس، خبر صادق او عقل، د دې اسبابو د علم په وجه چې کوم علم راغلی وي هغه علم غیب شرعي او اصطلاحي نه دی، یو څو حوالې وګوره :

۱-علامه الوسي رحمه الله فرمایي: «فاالعلم به لکونه بواسطة الاسباب لایکون من علم الغیب[1]

۲-مایدرک بالدلیل لایکون غیباً[2]

۳-هو مالم یقم علیه دلیل ولا اطلع علیه مخلوق.[3]

۴- ماغاب عن المشاهد ولم یقم علیه دلیل.[4]

---

(۱) روح المعانی ج ۲۰، صـ۲۹۹

(۲) تفسیر نسفي ج ۲صـ ۷۲۳

(۳) تفسیر نسفي ج ۲صـ ٦١٧

(٤) تفسیر مظهري ج ۷ص- ۱۲۷

۵- والتحقيق ان الغيب ما غاب عن الحواس والعلم الضروري والعلم الاستدلالي وقد نطق القرآن بنفى علمه عمن سواه تعالى فمن ادعى انه يعلمه كفر ومن صدق المدعى كفر واما ما علم بحاسة او ضرورة او دليل فليس بغيب.[1]

۶-وما اعلم الله لخيار عباده بالوحى او الالهام الحق لم يبق بعد الاعلام غيبا.[2]

۷-ان علم الانبياء والاولياء هو باعلام من الله تعالى لهم وعلمنا بذلک هوباعلامهم لنا وهذا غير علم الله الذي تفرد به وهو صفة من صفاته القديمة الازلية الدايمة... فلايعلم الغيب احد الا هو وما سواه ان علموا جزئيات منه فهو باعلامه واطلاعه لهم وحينئذ لايطلق انهم يعلمون الغيب اذ لا صفة لهم يقتدرون بها على الاستقلال بعلمه.[3]

۸- فان لبعض الغيوب اسبابا قد استدل بها عليه لكنه ليس بحقيقى.[4]

د دې څخه معلومه شوه چې علم الغيب په شريعت او اصطلاح کې ذاتي او کلي وي، نو د علم الغيب تقسيم ذاتي او عطائي ته غلط دی، ځکه چې تقسيم يې ذاتي ته الى نفسه دی او عطائي ته الى غيره دی، همدارنګه چې علم الغيب شرعي او اصطلاحي د الله تعالى خاص صفت شو، نو غير الله ته بالکل نه دی ثابت، نه کلي او نه جزئي، څوک چې د الله تعالى خاص صفت غير الله ته کلي ثابت کړي، هغه کلي مشرک دی او څوک يې چې جزئي ثابت کړي هغه جزئي مشرک دی.

**فائده**:(۱) جديد بريلويان (چې په افغانستان، کوزه پښتونخوا او بلوجستان کې په ښکاره ځان ته بريلويان نه وايي، بلکې وايي چې نه ديوبنديان يو اونه بريلويان يو، په حقيقت کې (۹۸) فيصده بريلويان دي) دوي وايي چې نبي کريم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته علم الغيب جزئي عطائي ثابت دی، نو دوي شپږ غلطياني کوي.

---

(۱) نبراس على شرح العقايد صـ ۳۴۳

(۲) فتاوى بزازيه ج ۶صـ ۱۱۹

(۳) رسائل ابن عابدين ج ۲صـ ۴۵۹

(۴) فتح البارى صـ ۴۹۱

**اول**: تقسيم د علم الغيب كوي ذاتي او عطائي ته ،حالانكې علم الغيب په اصلاح كې فقط ذاتي دى.

**دوهم**: تقسيم دعلم الغيب كوي كلي او جزئي ته . حالانكې علم الغيب په اصطلاح كې فقط كلي وي.

**دريم**: داچې د يو فن عالم هغه چاته وايي چې د دې فن اصول . كليات او قواعد ورته معلوم وي او د غيبو قواعد يواځې الله تعالى ته معلوم دي ، نو عالم الغيب يواځې الله تعالى دى (وَ عِنْدَه مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَ) د مفاتحو څخه همدا قواعد مراد دي. مثلا ډاكټر هغه چاته وايي چې د طب اصول . كليات ،قواعد او فارمولې ورته معلومې وي ، د جزئياتو د علم په وجه چاته ډاكټر نه شې ويلى، مثلا مونږ ته دا جزئي معلوم دى چې ډيسپرين ګولۍ د سر درد علاج دى ، نو د دې جزئي او همداسې د سلو او زرو جزئي نسخو د علم په وجه چاته ډاكټر نه شې ويل كيدلى، تر څو چې د طب قواعد زده نكړي ، نو د غيبو د جزئياتو د علم په وجه چاته عالم الغيب نه شې ويلى. تر څو چې د غيبو قواعد ورته معلوم نه وي او د غيبو قواعد صرف الله تعالى ته معلوم دي.

**څلورم**: پكار دى چې د دوي په نيز هر مسلمان او كافر عالم الغيب شي ، ځكه چې علم الغيب عطائي كه ثابت شي، نو بيا الله تعالى نبي كريم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته اعطاء كړې ده او نبي كريم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نورو انسانانو ته اطلاع كړې ده،نو ټولو ته علم الغيب ثابت شو، فرق صرف په مطلع كې شو، چې نبي كريم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته الله تعالى او جبرئيل (عَلَيْهِ السَّلَامُ) اطلاع وركړه او نورو انسانانو ته نبي كريم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) اطلاع وركړه ، همدارنګه فرق په قِلت او كثرة كې شو.

**پنځم**: د علم الغيب تقسيم جزئيْ اوْ عطائي ته يوه بدعتي اصطلاح ده، د عقائدو په هيڅ كتاب كې نه ده راغلې.

**شپږم**: د مخلوق علم ملكې ته وايي ، نو په مخلوق كې به عالم الغيب هغه چا ته وايي چې ملكه او قوت د غيب دانۍ ولري او په ملكه د غيب دانۍ كې كلي او جزئي ،ذاتي او عطائي ته تقسيم غلط دى.

(۲) قديم بريلويان(چې اقراري بريلويان دي) وايي چې دنبي كريم (صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره علم الغيب كلي عطائي وو. نو دوی دري غلطۍ كوي: ۱- چې تقسيم د علم الغيب كوي ذاتي او عطائي ته، حالانكې علم الغيب فقط ذاتي وي.

۲- دنبي كريم (صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په ذريعه ټولو انسانانو ته اطلاع شوې ده، نو بيا پكار دي چې هر انسان عالم الغيب شي.

(۳) د مخلوق علم ملكې ته وايي، نو په مخلوق كې به عالم الغيب هغه چا ته وايي چې ملكه او قوت د غيب دانۍ ولري او په ملكه دغيب دانۍ كې كلي او جزئي، ذاتي او عطائي ته تقسيم غلط دی.

## دغيب او علم الغيب په مابين كې فرق

دغيب او علم الغيب په مابين كې فرق دا شو چې: غيب په دوه قسمه دي، ماتحت الاسباب، يعنې ما يدرک بالخبر الصادق او العقل او مافوق الاسباب يعنې ما لايدرک بالاسباب، لكه د قيامت د ورځې علم، قاضي بيضاوي فرمايي چې: وهو (اى الغيب) قسمان: ۱- قسم لا دليل عليه. ۲- وقسم نُصب عليه دليل، نو اول مافوق الاسباب دی او دوهم ماتحت الاسباب دی او علم الغيب اصطلاحي فقط ما فوق الاسباب دی.

خلاصه دا چې أهل سنت والجماعت فرمايي چې علم غيب اصطلاحي يعنې علم ذاتي، محيط، تفصيلي چې بلا استثناء په ټولو معلوماتو باندې حاوي وي، د الله تعالى د ځانګړې صفت دی، په دې كې ورسره نه رسول شريک دی او نه غيررسول، بيا چې الله تعالى چاته وغواړي، نو دوحې يا د الهام او يا د عقل استدلالي په ذريعه باندې ډير غيوب ورته ښكاره كوي، د يته علم الغيب لغوي وايي چې د انباء او اخبار په ذريعې سره وي، چې په دې كې دملايكو او انبياوو برخه دنور مخلوق څخه ډيره ده او د محمد (صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) برخه د هر چا په نسبت ډيره ده.

په علم غيب اصطلاحی كې ذاتي او عطائي همدارنګه كلي او جزئي ته تقسيم نشته، ځكه چې علم غيب اصطلاحی فقط ذاتي او كلي وي او دا دالله تعالى خاص صفت دی، دبعضې اكابرو

په کلام کې چې د علم الغیب تقسیم کلي او جزئي ته راغلی دی .نو هغه علم الغیب لغوي دی چې انباء بالغیب او اطلاع علی الغیب هم ورته وایي. علم الغیب لغوي کلي هم د مخلوق سره نشته.

**تنبیه**: علم الغیب لغوي ماتحت الاسباب وي سبب ورته کله عقل وي او کله خبر صادق چې د وحي یا د کشف یا د الهام وغیره په ذریعه اطلاع حاصله شي ، لکن بعد الاطلاع بیا دا غیب مشاهَد ګرځي مثلاً: زید د دیوال شاته چې تا ته معلوم نه وي غیب دی. لکن که څوک اطلاع درکړي چې د دیوال شاته زید دی، نو بعده الاطلاع همدا زید مشاهد شو او بعد الاطلاع علم ، علم الغیب نه شو ، بلکې علم الشهادة شو ، نو دا په حقیقت کې علم الغیب نه دی،صاحب د فتاوی بزازیه فرمایي چې : لم یبق بعدالاعلام غیباً .[1] نو قبل الاطلاع غیب وو او بعد الاطلاع مشاهد شو. نو د اطلاع څخه وروسته علم الغیب نه راځي ، بلکې علم الشهادة راځي ،نو بعضې خلک چې وایي چې د انباء څخه وروسته علم الغیب راځي،نو دا مغالطه ده، ځکه چې د انباء څخه وروسته علم المشهود راځي، ځکه چې بعد الاطلاع دا معلوم غیب نه دی کما قال صاحب الفتاوی البزازیه وما اعلم الله لخیار عباده بالوحی او الالهام الحق لم یبق بعدالاعلام غیباً.[2]

## دأهل سنت والجماعت دعقیدې وضاحت

یو غیب دی او بل علم الغیب دی، د غیب تعریف علماء داسې کوي چې (ما لایدرکه الحواس ولاتقتضیه بداهة العقل) د دې تعریف تشریح دا ده چې اسباب د علم درې دي، حواس سلیمه، عقل او خبر صادق، چې وحی هم په دې قسم کې داخله ده ، بیا په عقل باندې کله بداههٔ علم مرتبیږي او کله استدلالاً، نو (۱) غیب دیته وایي چې په حواسو باندې به یې ادراک نه کیږي ، د کوم شي ادراک چې د حواسو په ذریعه باندې کیږي هغه غیب نه دی،او په دې مَدرک باندې علم هم علم غیب نه دی.

(۲) همدارنګه مدرک بالعقل بداههٔ هم غیب نه دی او په دې مدرَک باندې علم هم علم غیب نه دی ، فبعد هذا نقول: چې غیب په درې قسمه دی، دوه په اسبابو د علم باندې مرتب وي، یو دا

---

(۱)فتاوی بزازیه ج ۱صـ ۱۱۹

(۲)فتاوی بزازیه ج ۱صـ ۱۱۹

چې: مدرَک بالعقل وي استدلالاً لکه د الله تعالی وجود ا و دوهم دا چې: مدرَک بالخبر الصادق وي لکه حالات د برزخ، دقیامت او دجنت او د جهنم و غیره د ماتحت الاسباب.

(۳) دا چې په دې اسبابو سره یې ادراک نه کیږي، نه په حواسو. نه په عقل او نه په خبر صادق، لکه د سبا د ورځې د کارونو علم، د مرګ د ورځې علم، د قیامت د ورځې علم دا مافوق الاسباب دي، نو د غیب د اول او د دوهم قسم علم او ادراک ذاتي نه دی. بلکې د ذرایعو او د اسبابو په وجه دی ،لهذا ماتحت الاسباب ورته وایو او د دریم قسم علم او ادراک ذاتي دی د اسبابو او د زرایعو په وجه نه دی، لهذا مافوق الاسباب ورته وایو، د اول او د دوهم قسم غیبو علم مخلوق ته ثابتیدلی شي خو د الغوی علم الغیب دی او د دریم قسم غیبو علم د الله تعالی خاصه ده، مخلوق ته نه شي ثابتیدلی او دېته اصطلاحي علم الغیب وایي، لغوي علم الغیب ماتحت الاسباب وي او اصطلاحي علم الغیب ما فوق الاسباب وي، په قرآن او په سنت کې د غیبو اطلاق په درې واړو قسمونو باندې کیږي، لکن چې کله د غیب سره د ایمان او د اظهار لفظ راشي نو هلته اول او دوهم قسم غیب مراد وي، ځکه چې ایمان فرع د علم ده او علم په اولو دواړو قسمونو باندې راتللی شي.

او کله چې د غیب سره د علم لفظ راشي، نو هلته دریم قسم غیب مراد وي او چونکې د هر انسان بلکې د هر مخلوق علم د زرایعو او د اسبابو په وجه دی، له دې وجې د مخلوق لپاره لفظ د ایمان بالغیب اظهار علی الغیب، اطلاع علی الغیب او انباء علی الغیب استعمالیږي، او د الله تعالی علم بغیر د اسبابو ځخه دی، نو د الله تعالی په جانب کې لفظ د(علم الغیب) او د(عالم الغیب) مستعملیږي په قرآن او په حدیث کې د مخلوق لپاره لفظ دعالم الغیب نه دی مستعمل شوی، (وعنده مفاتح الغیب لایعلمها الا هو) الانعام ۵۹) عالم الغیب فلا یظهر علی غیبه احداً، الجن).

نو اوس که یو ځوک غیر الله ته عالم الغیب وایي په دریمه معنی باندې یعنې چې د علم لپاره یې هیڅ سبب او ذریعه نه وي، هغه مشرک دی ځکه چې دا د الله تعالی صفت او خاصه ده، او که ذکر د عالم الغیب کوي او مراد یې ترینه اظهار علی الغیب او اطلاع الغیب وي، نو دا اګر چې شرک نه دی لکن بیا هم غلطه وینا ده، ځکه چې د قرآن او د حدیث په اصطلاح کې اظهار علی

الغیب او اطلاع الغیب ته علم الغیب نه دی ویلی شوی ، دا داسې ده لکه چې یو سړی ووایي چې ان الله لایعلم الغیب او مطلب یې دا وي چې د الله تعالی څخه هیڅ شی غایب نه دی او یا لکه یو سړی چې د حق څخه مرګ، د فتنې څخه اولاد، او رحمت څخه باران مراد وي او وایي چې: (انی اکره الحق واحب الفتنة وأفر من الرحمة).

## حکم

څوک چې په اصطلاحی معنی سره غیر الله عالم الغیب ګڼي هغه کافر دی.

**تفصیل**: که څوک غیر الله ته عالم الغیب وایي، نو دا ظاهراً مشرک دی. بیا یې که خپله عقیده بیان کړه چې زما مراد علم الغیب اصطلاحي او شرعي دی، نو دا په حقیقت کې هم مشرک دی او که خپله عقیده یې داسې بیان کړه چې زما مراد اظهار الغیب او علم الغیب لغوي دی، نو بیا مشرک نه دی. لکن داسې ویل نه دي پکار، ځکه چې دا لفظ موهم د شرک دی لکه یو سړی چې ووایي چې زه صلوة نه منم ، نوظاهراً دا کافر دی ، بیا یې که خپله عقیده داسې بیان کړه چې زه صلوة اصطلاحي یعنې ارکان مخصوصه نه منم ، نو دا په حقیقت کې هم کافر دی او که خپله عقیده یې داسې بیان کړه چې زه صلوة لغوي یعنې تحریک الصلوین نه منم ،نو بیا کافر نه دی ، لکن دا وینا یې صحیح نه ده، ځکه چې موهمه د کفر ده.

(۱)په فتاوی حقانیه کې د یو سوال په جواب کې داسې فرمایي چې علم غیب کلی او علم محیط د الله خاصه ده له الله تعالی څخه پرته له هیچا سره علم غیب کلي او علم محیط نه شته، همدارنګه نبي کریم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) هم علم غیب کلي نه درلود ، بلکې د ځینو مغیباتو علم ورته الله تعالی دوحې په ذریعه ورکړی وو ، یعنې د نبي کریم (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره علم الغیب شرعي او اصطلاحي نشته او علم الغیب لغوي ورسره شته، بیا وروسته لیکي چې څوک چې د حضور (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په اړه دا عقیده لري چې هغه د جمیع ما کان ومایکون علم لري هغه د قطعي نص

څخه مخالف دی، نو د داسې عقیدې لرونکی سړی کافر دی او باید چې خپل ایمان نوی کړي او که واده یې وي نو د نکاح تجدید هم پرې ضروري دی.[۱]

(۲) ملا علی القاري رحمه الله فرمایي چې: فالعلم بالغيب أمر تفرد به سبحانه تعالى ولا سبيل للعباد اليه الا با علام منه والهام بطريق المعجزة او الكرامة او الارشاد بالامارات فيما يمكن فيه ذلک، ولهذا ذكر فى الفتاوى ان قول القايل عند رؤية هالة القمر اى دايرته (يكون مطرٌ) مدعيا علم الغيب لابعلامة كفر.[۲]

(۳) علامه ابن عابدين رحمه الله فرمايي چې: قلت وحاصله ان دعوى علم الغيب معارضة لنص القران فيكفر بها[۳].

(۴) رجل تزوج بشهادة الله ورسوله كان باطلا لقوله عليه السلام لانكاح الا بشهود وكل نكاح يكون بشهادة الله ورسوله معظهم جعلوا ذلک كفرا لانه يعتقدان الرسول (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) يعلم الغيب وهو كفر.[۴]

---

(۱) فتاوى حقانيه ج ۱صـ ۱٤۱

(۲)شرح الفقه الاكبر .صـ ۱۵۱) تصديق الكاهن فيما يخبر

(۳) ردّالمحتار، باب المرتد، مطلب فى دعوى علم الغيب

(٤) قاضي خان على هامش الهنديه ، باب مايكون اسلاما من الكافر وما لايكون ج ۱صـ ۳۳٤)(۵) په خلاصة الفتاوى کې راخي چې :رجل تزوج امرأة ولم يحضره شهود فقال: خدا ورسول يا فرشتګان را ګواه كردم ، بطل النكاح وكفر الناكح، لاعتقاد أن الرسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والملايكة تعلم الغيب)

(٦) لو تزوج بشهادة الله ورسوله لاينعقد ويكفر لاعتقاده ان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب

۷- تزوجها بشهادة الله والرسول صلى الله عليه وسلم لاينعقد ويخاف عليه الكفر لانه يوهم ان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب.

۸- اگر كسى بدون شهود گفت كه خدا و رسول راگواه كردم يا فرشته راگواه كردم كافر شود.

(۹) ذكر الحنفية فى فروعهم بالتكفير باعتقاد ان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالى قل لايعلم من فى السموات والارض الغيب الا الله.

(۱۰) زوج امرأة بشهادة إلله و رسوله هل يكفر؟ ففيه الفاظ كفر.

## داهل بدعتو (بريلويانو) عقيده

**قديم بريلويان:** احمد رضاخان بريلوي ليکي چې: د عالم د پيدايش څخه شروع تر محشر او تر دخول د جنت او د جهنم پورې د ټولو جزئي او کلي، د يني او دونيوي، تفصيلي او محيط علم نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته ورکړل شوی وو.[1] بيا دا علم محيط نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته د کوم وخت څخه ورکړل شوی وو؟ نو په دې کې بريلويان مختلفې عقيدې لري:

بعضې وايي چې کله چې نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د مور په ګيډه کې وو نو په همغه وخت کې ورته د ماکان او د مايکون علم ورکړل شو[2]

بعضې وايي چې دمعراج په شپه باندې نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته علم د ماکان او د مايکون ورکړل شو (حواله سابقه)

احمد رضاخان وايي چې نبي کريم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته علم دماکان او د مايکون دټول قرآن د نزول څخه وروسته ورکړل شو (انباء المصطفى صـ ۴) دا د قديمو بريلويانو عقيده ده، چې علم الغيب کلي عطائي غير الله ته ثابتوي او د افغانستان، کوزې پښتونخوا او بلوجستان جديد بريلويان، علم الغيب جزئي عطائي غير الله ته ثابتوي.

## دأهل بدعتو بريلويانو دلايل

**فائده:** د عقيدې د اثبات لپاره داسې دليل پکار دی چې قطعي الثبوت او قطعي الدلالة وي بريلويان هم دا اصل مني احمد رضا خان په رسايل علم غيب صـ (۱۴۵) کې ليکي چې:

**اعتقاديات ميں قطعيات کا اعتبار ہوتا ہے نہ ظنيات صحاحا کا.**

**قرآني دلايل:**

الله تعالى فرمايي: (وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ)[3]،

مَا كَانَ حَدِيْثًا يُّفْتَرٰى وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ كُلِّ شَيْءٍ (يوسف/۱۱۱)

(۱) انباء المصطفى صـ ۳ والكلمة العليا صـ ۲۳)

(۲) انوار افتاب صداقت لز قاضى فضل احمد لدهيانوى صـ ۱۳۷

(۳) سورت النحل ايت ۸۹)

قال الله تعالی: مافرطنا فی الکتب من شیء (انعام آیت ۳۸)

احمد رضاخان لیکي چې: نکره په سیاق دنفی کې عموم راولي او په کلمې دکل کې داسې تعمیم دی چې کله هم تخصیص نه قبلوي او بغیر ددلیل شرعي څخه نصوص همیشه په خپل ظاهر باندې حملیږي (انباء المصطفی صـ ۴)

درسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) علم دشرق څخه ترغربه پوري، د أزل څخه تر أبده پوري دی، دهر صغیر کبیر، دهر رطب او یابس علم نبي (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته حاصل دی او یوائې اجمالاً نه بلکې تفصیلا ورته حاصل دی.[1]

**اول جواب**: دا درې واړه آیتونه مکي دي او احمد رضاخان وایي چې نبي کریم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته علم د ماکان ومایکون د ټول قرآن د نزول څخه وروسته ورکړل شو (انباء المصطفی صـ ٤)

**دوهم جواب**: مفسرین فرمایي چې په دریم ایت کې د الکتب څخه لوح محفوظ مراد دی.[2]

**دریم جواب**: که ددې مکي ایتونو څخه نبي کریم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته د هرې ذرې علم ثابت شي او عالم الغیب شي، نو بیا ددې ایتونو څخه وروسته دوحې نزول ته څه ضرورت وو؟ ځکه چې د را روانو ایتونو علم بهِ هم له همدې ځای څخه نبي کریم (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته حاصل شوی وي، نو ایا ددې ایت دنزول څخه وروستني ایتونه او را روان احکام په ماکان وما یکون کې نه دي داخل؟.

**څلورم جواب**: چې نکره په سیاق دنفی کې دعموم لپاره ده او کل هم داستغراق حقیقي لپاره دی، نو په قرآن کې دهر شي بیان راغلو او بیا یوائې بیان نه دی بلکې مفصل بیان دی، نو بیا سوال دادی چې په قرآن کې دمانځه د رکعتونو تفصیلات او د زکوة د نصاب تفصیلات کوم دي؟

**پنځم جواب**: خپله احمد رضاخان صاحب په یو ځای کې وایي چې کله د کل څخه اکثر مراد وي.[3]

---

(۱)(جاء الحق صـ ۲۰ مقیاس حنفیت صـ ۲۹٤)

(۲) بغوي، معالم التنزیل، تفسیر کبیر)

(۳) فتاوی رضویه ج ۱صـ ۷۳۷

۲-الله تعالى فرمايي چې: (عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِه اَحَدًا اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّه يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْه وَمِنْ خَلْفِه رَصَدًا[1])

بريليان وايي چې الله تعالى نبي كريم (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته خاص علم غيب حتى چې د قيامت علم هم وركړو ، نو اوس كم شى دى چې دنبى كريم (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دعلم څخه پاتې دى.[2]

**اول جواب**: دا ايت مكي دى، ددې څخه وروسته هم دقرآن ډيره حصه نازله شوه، نو كه ددې ايت څخه دعلم الغيب لپاره استدلال صحيح شي نو بيا سوال دادى چې ايا دقران باقي حصه په علم الغيب او په علم دما كان او مايكون كې داخله ده او كه نه؟ كه داخله وي نو دهغې نزول ته بيا څه ضرورت دى؟

**دوهم جواب**: داستثناء څخه علم الغيب كلي مراد دى او كه جزئي؟ كه جزئي مراد وي نو ستاسو مدعى نه ثابتيږي او كه كلي مراد وي نو بيا يې د راروان ايت سره تعارض راځي چې (قُلْ اِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ يَجْعَلُ لَه رَبِّيْٓ اَمَدًا[3]) ځكه چې په دې ايت كې دعلم غيب كلي نفى ده .

**دريم جواب**: ددې ايت څخه ټول مفسرين دبعضې غيوبو اظهار مراد وي (روح المعاني تحت هذه الايت) .

۴- الله تعالى فرمايي چې: (وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِه مَنْ يَّشَاءُ) (ال عمرن ايت ۶۰)

په دې آيت كې راغله چې الله تعالى چې چاته وغواړي نو هغه ته دغيبو علم وركوي.

**اول جواب**: دا ايت دسورت آل عمران ايت دى او دغزوې دأحد په وخت كې نازل شو، ددې څخه وروسته دقرآن شپاړس سورتونه نازل شو، نو كه ددې ايت له وجې نبي كريم (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته دما كان وما يكون علم حاصل وي نو بيا خو پكاروه چې داشپاړس سورتونه نه وې نازل شوى.

**دوهم جواب**: ټول مفسرين ددې ايت څخه بعض غيب مراد وي.

---

(۱)الجن ايت اية ۲٦

(۲) جاء الحق صـ ۵۵ خالص الاعتقاد صـ ۲٤)

(۳)الجن ايت ۲۵)

۵- وَعَلَّمَکَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ (نساء آيت ۱۱۳)

كلمه دما دعموم لپاره ده، نو ددې څخه معلوميږي چې نبي كريم (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته دټولو تيرو شوو او د درا روانو واقعاتو خبر وركړل شوى وو[1]

**اول جواب:** دا دسورت نساء ايت دى، چې په څلوړم كال دهجرت باندې نازل شوى دى، ددې ايت څخه وروسته ډير سورتونه نازل شو. چې سورت توبه پكې په خاصه طريقه باندې دذكر كولو قابله ده، نو كه ددې ايت څخه دټولو غيوبو علم مراد وى نو بيا خو ددې ايت دنزول څخه وروسته دهيڅ سورت نزول ته ضرورت نه وو.

**دوهم جواب:** دا استدلال په دې باندې بنا دى چې كلمه دما دعموم او داستغراق لپاره ده، حالانكې په ډيرو ځايونو كې دعموم او داستغراق معنى غلطه وي لكه (ويعلمكم ما لم تكونوا تعلمون) البقره ۱۵۱) وعلمتم مالم تعلموا انتم ولا أباءكم (انعام ۹۲) نو بيا خو ددې آيتونو له وجې هر أمتي ته علم الغيب ثابت شو.

**دريم جواب:** مفسرينو په دې ايت كې د ما مصداق احكام او امور ددين ښودلي دي وګوره بغوي تحت هذه الاية، بعضو مفسرينو چې دلته خفيات الامور ذكر كړي دي نو دهغوي ترجمه هم بالكل صحيح ده ځكه چې نبى كريم (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته الله تعالى د ډيرو امورو غيبيه وو اطلاع وركړې وه.

## داحاديثو څخه استدلالات

۱-عن حذيفه (رضى الله عنه) قال: قام فينا رسول الله (صلى الله عليه وسلم) مقاماً ماترک شيئا يكون فى مقامه ذلک الى قيام الساعة الا حدث به، حفظه من حفظه ونسيه من نسيه.[2]

**جواب:** دحضرت حذيفه رضي الله عنه ټول روايات چې مخې ته كينبودل شي نو نتيجه ترينه دا راوزي چې رسول الله صلى الله وسلم چې كوم شى بيان كړى دى، دهغې تعلق دفتنو او

(۱)(جاء الحق صـ۱۹)

(۲) صحيح مسلم، كتاب الفتن و اشراط الساعة ج ۲ صـ۳۹۰)

دعلاماتو دقيامت سره دی ټول اشياء نه دي، لکه څرنګه چې خپله حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې: والله ماترک رسول الله صلى الله وسلم من قايد فتنةٍ الى أن تنقضى الدنيا يبلغ من معه ثلاثمأةٍ فصاعدا الاسماه لنا باسمه واسم ابيه واسم قبيلته (ابوداؤد کتاب الفتن ج ۲ صـ ۴۲) همدارنګه فرمايي چې: والله انى لاعلم بكل فتنةٍ هى كاينة فيما بينى وبين الساعة (مسلم ج ۲ صـ ۳۹۰)

۲-حضرت عمر (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) فرمايي چې: قام فينا النبى صلى الله وسلم مقامافأخبرنا عن بدء الخلق حتى دخل أهل الجنة منازلهم، وأهل النار منازلهم جفظ ذلک من حفظه، ونسيه من نسيه[1]

**جواب**: د حضرت عمر (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) د حديث تعلق هم د علم غيب كلى سره نه دي، ځکه چې خپله حضرت عمر (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) فرمايي:

أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قبض ولم يفسـر ها لنا[2]

حضور (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وفات شو خو مونږ ته يې د سود تفصيلات ونکړل.

۳- د حضرت عمرو بن اخطب انصارى (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) حديث دی چې: صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم الفجر وصعد المنبر فخطبنا حتى حضرت الظهر، فنزل فصلى ثم صعد المنبر، فخطبنا حتى حضرت العصر ثم نزل فصلى ثم صعد المنبر فخطبنا حتى غربت الشمس، فأخبرنا بما كان وبما هو كاين فاعلمنا أحفظنا[3]

همدارنګه د ابو سعيد خدري (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) حديث دی چې: صلى بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم يوما صلوة العصر بنهارٍ ثم قام خطيباً فلم يدع شيئا يكون الى قيام الساعة الا أخبرنا به حفظه من حفظه ونسيه من نسيه (جامع الترمذی ج ۲ صـ ۴۲)

---

(۱) صحيح بخارى كتاب بدء الخلق ج ۱ صـ ۴۵۳)
(۲) ابن ما جه كتاب التجارات صـ ۱۶٤)
(۳) مسلم كتاب الفتن واشراط الساعة ج ۲ صـ ۳۹۰)

**جواب**: ددې دواړو حديثونو تعلق هم دفتنو سره دی ، علامه ابن خلدون رحمه الله دداسې قسم احاديثو د ر انقلولو څخه وروسته ليكي چې: وهذه الأحاديث كلها محمولة على ماثبت فى الصحيحين من احاديث الفتن والاشراط لاغير لانه المعهود من الشارع صلوات الله وسلامه عليه في أمثال هذه العمومات.[1]

## دأهل سنت والجماعت دلايل

**قرآنې دلايل**:

١- وَعِنْدَه مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهآ اِلَّا هوَ (انعام صـ ٥٩)

٢- فَقُلْ اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلهِ (يونس / ٢٠)

٣- (وأطلق الإيمان على معنى أنهم ليسوا من الإيمان في شيء) (هود / ٣١)

۴- وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (هود / ١٢٣)

۵- قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ (نمل / ۶۵)

۶- اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (فاطر / ٣٨)

٧- عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِه اَحَدًا اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّه يَسْلُكُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْه وَمِنْ خَلْفِه رَصَدًا (الجن / ٣٠)

٨- وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ (اعراف/١٨٨)

٩- يَسْئَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُها عِنْدَ اللّٰهِ (احزاب/۶٣)

١٠- وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ (ملك/٢۶)

١١- اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَه عِلْمُ السَّاعَةِ.

مفتى احمد يار خان دي ټولو ايتونو ته دځپل ځان څخه توجيهات كوي، لكن ددې توجيهاتو حواله نه په كوم صحابي باندې وركوي او نه په كوم تابعي او دده دعوى داده چې (نبى عليه السلام ته علم الغيب د ولادت څخه مخكې وركړل شوى وو) جاء الحق احمد يار خان صـ ١١٨)

(١) مقدمة ابن خلدون ، الفصل الثالث والخمسون فى ابتداء الدول صـ ٣٣٣)

## داحاديثوڅخه دلايل

١- دجبريل عليه السلام په حديث کې راځي چې (ما المسؤل عنها بأعلم من السائل) همدارنګه پکې راځي چې: (فى خمس لا يعلمهن الا الله)

داپه دې خبره کې صريح دى چې دقيامت علم دالله تعالى څخه ماسوى هيچا ته هم نه دى حاصل حتى چې جبريل او نبى کريم صلى الله عنه ته هم ندى حاصل.

٢-دحضرت جابر (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ)څخه روايت دى چې: سمعت النبى صلى الله عليه وسلم يقول قبل أن يموت بشهرٍ تسألونى عن الساعة وانما علمها عند الله.[١]

٣-دحضرت حذيفه (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ)څخه روايت دى چې: سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الساعة قال: علمها عند ربى لايجليها لوقتها الا هو، (مسند احمد ج ٥ صـ ٢٩٨)

همداسې مفهوم دابو موسى اشعرى (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ)په روايت کې هم دى (حاکم کتاب الفتن ج ٤ صـ ٤٨٨)

٤-حضرت عبدالله بن مسعود (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ)د رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څخه دمعراج واقعه رانقلوي په دې حديث کې داسې جمله هم شته چې (اما وجبتها فلايعلمها أحد الاالله)[٢]

---

(١) صحيح مسلم کتاب الفضايل ج ٢صـ ٣١٠)

(٢) مستدرک الحاکم کتاب الفتن والملاحم ج ١صـ ٤٨٨)٥-دحنين په غزوه کې نبى کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو رضى الله عنهم څخه دهوازن دبنديانو دخوشې کولو مطالبه وکړه، تولو صحابه وو رضى الله عنهم وويل چې زمونږ خوښه ده لکن نبى کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: انى لا أدرى من أذن منكم ممن لم يأذن ، فارجعوا حتى يرفع الينا عرفاء كم أمركم) صحيح البخارى، کتاب الجهاد باب اذا بعث الامام رسولا فى حاجة ج ١صـ ٤٤٢)

ددې څخه صفا معلوميږي چې دنبى کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره علم غيب کلي نه وو ځکه خو دهريو يو صحابي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه فردا فردا دپوښتنې ضرورت راغلو.

٦-دحضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه دحجة الوداع واقعه رانقل شوې ده په هغې کې دنبى کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا قول هم ذکر شوى دى چې: (لتأخذ أمتى منسكها فانى لا أدرى لعلى لاالقاهم بعد عامهم هذا(مسند احمد ج ٣ صـ ٣٣٢)

٧-د غزوې دخندق څخه وروسته نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسلحه اينښې وه او غسل يې کولو، حضرت جبريل عليه السلام ورته راغلو او ورته وې فرمايل چې: تاسواسلحه کېښوده او ملايکو نه ده ايښ (أخرج اليهم ، قال فالى اين ؟ قال ههنا، وأشار الى بنى قريظه

## (كشف ، كرامت اوسحر)

يو كشف دى بل كرامت دى كرامت خاص اولياؤو ته كيږي ځكه كرامت عزت ته وائي او له دې وجې نه دا په مرګ سره هم نه ختميږي ځكه دا له اعمالو صالحه سره لازم دى نو چې ملزوم (ايمان او اعمال صالحه) په مرګ نه ختميږي نو لازم به ئې څنګه ختميږي او دا د اهل السنة والجماعة عقيده ده خلاف للمعتزله دوى وائي كه كرامت حق ومنل شي بيا به د جادوګر ، ولي او نبي ترمينځ هيڅ فرق پاتې نه شي ځكه د هريو له لاسه خارق العادة كار صادريږي او كشف [1]

---

(صحيح البخارى، كتاب المغازى ج ۲ صـ ۵۹) كه درسول الله ﷺ سره علم غيب كلي وى نو ضرور به ورته دا معلومات هم وو چې دغروې دخندق څخه وروسته دبنى قريظه وو ته تلل دي.

۸-دبنى قريظه وو په باره كې چې كله دا فيصله وشوه چې بالغان دې يې تول قتل شي ، نو دقريظه وو په بنديانو كې عطية القرظى رضي الله عنه هم وو، دده په باره كې دا شک شو چې دا به بالغ وي او كه نه؟ نو نبى كريم ﷺ حكم وكړو چې دده دنوم څخه لاندې ويښتان دې وكتل شى او بيا دې دده دبلوغ او يا دعدم بلوغ فيصله وشي، چې بيا دليدلو څخه وروسته ثابته شوه چې نابالغ دى ،(مستدرک، كتاب الجهاد ج ۱صـ ۱۲۳) كه دنبي كريم ﷺ سره علم الغيب وي ، نو بيا يې دنوم څخه دلاندې ويښتانو دكتلو حكم ولې كولو؟

۹-دحيبر په غزوه كې يوې يهودنې نبى كريم ﷺ ته د ووزې (چيلى)په غوښه كې زهر أچولي وو نبى كريم ﷺ ته په اوله لقمه كې معلومات وشو. (ابوداؤد كتاب الديات ج۲صـ ۲٦٤)

كه دنبى كريم ﷺ سره دماكان اودمايكون علم وى نو بيا يې زهر ولې خوړل؟

۱۰- په يوه غزوه كې دحضرت عايشې رضى الله عنها هار ورک شو ، نوصحابه كرامو او خپله نبي كريم ﷺ دير ولتولو ،كله چې ما يوسه شو او نوريې حركت كولو نو چې سورلۍ يې اوچته كړه ديوې سورلۍ لاندې راپيدا شو (صحيح البخارى، كتاب التيمم ج ۱صـ ٤٨)

نو كه دنبي كريم ﷺ سره دما كان او دمايكون علم وى نو بيا دهار دومره لټولو ته څه ضرورت وو؟

۱۱-دقيامت په ورځ به بعضې خلک دجهنم طرف ته روان كړلى شي، نبى كريم ﷺ به عرض وكړي چې يا الله تعالى دا خوزما أمتيان دي، الله تعالى به ورته وفرمايي چې: (لاعلم لک بما أحدثوا بعد ک ) صحيح البخارى، كتاب الحوض ج ۲صـ ۹۷٤)

۱۲-دحضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه مرفوعا روايت دى چې: انى وجدت تمرة ساقطة فأكلتها ، ثم تذكرت تمراً كان عندنا من تمر الصدقة فلا أدرى أمن ذلک كانت التمرة أومن تمر أهلى (المستدرک، كتاب البيوع ج۲صـ ۱٤) -

-ددې احاديثو څخه ماسوى نورهم دير احاديث دي چې په هغوي كې دنبى كريم ﷺ څخه دماكان او دمايكون دعلم نفى راغلې ده.

دزيات تفصيل لپاره دامام أهل سنت علامه سرفراز خان صفدر رحمه الله كتاب وګورئ په نوم د(ازالة الريب عن عقيدة علم الغيب

(۱):- الكشف فى اللغة رفع الحجاب، وفى الاصطلاح هو اطلاع على ماوراء الحجاب من المعاني العلية والامور الخفية وجودًا و شهودًا (دستورالعلماء)

اشرف علی تهانوي رحمه الله فرمائي د کشف حاصل دا دی چې کوم واقعات په عالم مثالي کې وي خو دعامو نظرونو نه مستور وي دغه واقعات چاته ښکاره شي دېته کشف وايي.

خو دا عمومًا هغه چاته کیږي چې د چا زړه له مادیاتونه فارغ وي دېته بیا اسلام او تقوی شرط نه ده [1] کشف د جادوګر نه هم صادریږي ځکه دا له ریاضت (مجاهدې)پورې تعلق لري خو که دا ریاضت په شرعي طریقه وي نو دا ولي دی او که په غیر شرعي طریقه وي نو دا غیر ولي دی بهر تقدیر کشف اعم دی او کرامت اخص دی خو کله کشف په طریقې د کرامت وي بیا دا کس ولي متقي وي لکه مخکې تیر شو

## دتقوی درې مراتب دي

(۱) تقوی عن الشرک او دا قسم تقوا په هر مسلمان کې شته.

(۲) تقوی عن الکبائر دا د کاملو مؤمنانو تقوا ده.

(۳) تقوی عن للکبائر و مشتبهاتها دا تقوی د اولیاؤو ده او علماء د دې دریم قسم تعریف داسې کوي: ان لایراک الله حیث نهاک ولایفقدک حیث امرک [2].

( **سحر**):

سحرهم په پټو امورباندې بنا وي خو فرق ئي دا دی:

(۱) سحر د یو فن په څیر زده کولی شي په خلاف د معجزې او کرامت

(۲) سحر کې د شیطان د خل وي او معجزه او کرامت الٰهی فعل وي

(۳) سحر په اسبابو او مادیاتو بناوي او معجزه او کرامت د الله جلّ جلاله یو مخفي قوة او د ارادې نتیجه ده.

(۴) سحر کې انانیت او عجب دی کرامت او معجزه کې عجز او انکساري وي [3].

---

(۱):- مجالس حکیم الامت : ۳/ ۸۹، ص ۱۱۹ . ومأرب الطلبه: ٤٧٥.

(۲):- حدثنی ابن سماک قال اوصاني اخی داود بوصیة انظر ان لایراک الله حیث نهاک وان لایفقدک حیث امرک واستلح فی قربة منک وقدرته علیک. (حلیة الاولیاء لابن نعیم: ۹ / ۲٥، ترجمة داود بن نصیر الطائی.

(۳):- مأرب الطلبة نقلًا از علوم القرآن ٤۹۰.

**تفسيربيضاوي**: (فَالمَطلُوب اِمَّا زِيادة ما مَنحُوه منَ الهدى أوالثُّباتِ عَليهِ اوحُصُول المرتب المَرتبَةِ عليه).

**ترجمه**: مطلوب په اهدنا کې یا زیادت د هدایت مراد دی یا اثبات (په ایمان) مراد دی اویا حصول د مراتبو دی.

**تشريح**: په دې عبارت سره دفعه د اعتراض کوي هغه دا

**سوال**: په «اهدنا الصراط المستقيم» کې مسلمان دا دعا کوي چې یاالله ما ته هدایت وکړې اوله دینه مخکې په ایاک نعبد او ایاک نستعین کې وائي چې یاالله مونږ خالص ستا عبادت کوو او خاص ستانه امداد غواړو، له دینه خومعلومیږي چې دا مهتدي(په هدایت) دی نوچې بیا اهدنا الصراط المستقيم وائي نو دا خو تحصيل د حاصل دی.

(۱)**جواب**: مراد له هدایت نه زیادت د هدایت دی نه نفس هدایت.

(۲)**جواب**: مطلوب له هدایت څخه ثبات دی په هدایت باندې یعنې یاالله جل جلاله چې کوم هدایت دې راکړی په هغې مې ثابت قدمي کړه.

(۳)**جواب**: مطلوب له هدایت څخه یاحصول د مراتبو د هدایت دي چې یاالله جلّ جلاله هدایت خو دې راکړی خو هغه مراتب چې په هدایت باندې مرتب دي هغه مې نصیب کړه.

بعضې علماء دا درې جوابه مستقل د دې ټولو مهتدینو لپاره ګرځوي اوبعض یکې تفصیل کوي داسې چې «امّا زیادة ما منحوه» دا څلور مې مرتبې د هدایت ته راجع کوي او «والثبات عليه » دا د اولی مرتبې د هدایت ته راجع کوي او حصول المراتب المرتبة دا دوهمې او دریمې مرتبې ته راجع کوي.

**تفسير بيضاوي**: (فَاذَا قالهُ الْعَارِفُ الوَاصِل عَنِّي به أَرشِدنَا الطَّرِيق السَيْر فِيك لِتَمحُو عَنا ظُلماتِ احْوالنَا وَتمِيطُ غَوَاشِي أبْدَانِنَا لنَسْتَضئَ بِنورِ قُدسِك فَنَراك بِنورك).

**ترجمه**: عارف بالله چې کله واصل وي اهدنا ووائي نو اهدنا سره ئي مطلوب دا وي چې مونږ ته د سير في الله لارې وښائي د دې لپاره چې مونږ نه تاريکي د حالاتو لرې کړې اوته مونږ نه

لري کړي پردې د بدنونو زمونږ (پردې ګناهونو) لپاره د دې چې مونږ ستاپه مقدسې رڼا سره روښانه شو چې بيا په نور ستا باندې تالره وينو.

## (سير فی الله او سير الی الله)

**تشريح**: قاضي رحمه الله دلته د تحصيل د حاصل د دفعې لپاره بله وجه بيانوي خو لومړی داخبره ياده کړه چې د صوفيه کرامو په اصطلاح د الله تعالى طرفته د سير کولو دوه طريقې دي يوه سير فی الله او بله سير الی الله دی او دا دوه مرتبې دي.

(۱) **سير الی الله**: ديته وائي چې شهوات د دنيا پرې ښودل او ځان الله جلّ جلاله ته رسول او متوجه کول لکه ابن عربی رحمه الله فرمائي «مَن ترک الدّنيا فقد خاص من شهد الخلق لا فعل لهم فقد فاز و من شهد الخلق لاحيوة لهم فقد جاز و من شهد الخلق عن العدم فقد وصل وهذا مرتبة عين اليقين و عند هذا يتم سير الی الله» چاچې دنيا پرېښوده دا له خواصو څخه شو او کوم انسان چې مخلوق ته په دې نظر وګوري چې هغه د هيڅ فعل فاعل هم نه ګڼي نو دا کس کامياب شو او انسان چې مخلوق ته په دې نظر وګوري چې موجود يې ګڼي خو د هغو حيات حيات نه ګڼي هغه کس له اولنۍ مرتبې څخه نوره ترقي هم وکړه او چا چې مخلوق عين العدم وګڼلو نو هغه په درجه د وصول فايز شو او همدا مرتبه د عين القين دی.

د سير الی الله يوه ابتداء ده او بله انتهاء ده ابتداء ئې ترک د شهواتو د دنيا ده او انتهاء ئې دنيا کالعدم فرض کول دي يعنې دا مرتبه متناهي دی انتها يې وصول دی.

(۲) **سير فی الله**: وائي د الله جلّ جلاله په جمال او جلال کې استغراق ته، ابتداء د سير فی الله هغه انتهاء د سير الی الله ده چې دنيا کلعدم فرض کول دي چې دا مرتبه د مشاهدې ده او انتهاء ئې معلومه نه ده يو ژور سمندر دی ځکه صفات د جمال او جلال غير متناهي دي يعنې دا مرتبه غير متناهي دی.

نو دفعه د اعتراض په دې طريقې سره کوي چې دلته د تحصيل د حاصل نه لازميږي ځکه چې کله واصل (اهدنا الصراط المستقيم) وايي نو مقصود يې دا وي چې اې! الله موږ ته د سير الی الله د لارې رهنمايي وکړې چې زموږ د احوالو ګندګي رانه ختمه شي او زموږ د بدنونو پردې

او چتې شي چې موږ ستا د پاکوالي له نور څخه روښانه شو له دینه معلومه شوه چې د وصول کې فنا ده او ګویا چې د فناء په درجه کې حجاب دی نو چې کله د سیر فی الله درجه حاصله شي نو په دې کې بقاء وي نو تحصیل د حاصل لازم نه شو.

**تفسیربیضاوی**: (وَالأَمرُ وَالدُّعَاء يَتَشارَكانِ لفظًا وَمعنًا وَيتَفَاوتَانِ بِالاسْتِعْلاءِ وَالتَّسَفُلِ وقِيلَ بِالرتْبَة).

**ترجمه**: امر او دعا په لفظ او معنی کې یو شان دی او فرق پکې د استعلاء سره دي او چا ویلي دي چې فرق په اعتبار د رتبې سره دي.

**تشریح**: دلته مصنف د امر او دعا ترمینځ فرق بیانوي فرمایي اهدنا صیغه د امر دی او امر او دعا لفظاً او معنًا یو شان وي فرق په ئي په دې کې دی چې که طلب د اعلی نه ادنا ته وي د امر دی او که طلب له ادنا نه اعلی ته وي نو دا دعا ده او که طلب د مساوي له مساوي څخه وي دا التماس دی نو دا هم صیغه دامر دی خو په معنی د دعا ده.

خو له علوي نه علوه حقیقي نه دی مراد بلکه علوه معنوي مراد دی.

په دې مسئله کې د اشاعره و او معتزله و اختلاف دی اشاعره وایی اَمر هغه چاته وایي چې ځان لوی او عالي ګڼي په واقعې کې لوی وي او که نه وي او دعا کونکی هغه چاته وایي چې ځان کمزوری ګڼي بیا په واقعې کې کمزوری وي او که نه وي.

معتزله وایي امر هغه چاته وایي چې په حقیقت او واقعې کوې لوی وي بیا که هغه ځان لوی ګڼي او که نا او دعا کونکی هغه چاته وایي چې په واقعې کې کمزوری وي هغه ځان کمزوری ګڼي او که نا.

## (بحث الصراط)

**تفسیربیضاوي**: (وَالسِرَاطَ: مِن سَرِطَ الطُّعَام اِذَا ابْتَلعَهُ فَكأَنَه يَسْرُطُ السَّابِلَةَ وَلذالِك سُمّي الطَّرِيق لَقَمًا لأنَه يَلتَقمهم وَالصِّراط: مِن قَلبِ السِّينِ صادًا لِيُطابقَ الطَاء فِي الأَطْباقِ وَقدْ يُشمُّ الصَّاد صَوت الزاي لِيَكُون أقرَبَ الى المُبْدَل عَنه).

**ترجمه**: سراط له سرط الطعام نه مأخوذ دی کله چې دا طعام تیروي ګویا که دا قافله تیروي او له دې وجې لارې ته لقم وائي ځکه لارهم خلک تیزوي اوپه صراط کې قلب د سین په صاد سره شوی دی چې صاد له طاء سره په اطباق کې موافق شي او صاد نه او از د زاء بویولی شي د دې لپاره چې مبدل عنه یعنې سین ته نزدې شي.

**تشریح**: دلته مصنّف دوه بحثه کوي (۱) بحث د قرأتونه او لغات په اعتبار سره چې (۲) بحث د معنا په اعتبار سره.

**لومړی بحث**: په الصراط کې درې قرائته دي لومړی دا چې صراط په اصل کې په سین سره و (سراط) سین په صاد سره بدل شو نو صراط شو او دا ځکه بدل شو چې د سین او صاد صفات متضاد دي نو د دوی د جمعه کیدو له امله ثقل لازمیده هغه داسې چې یو طاء ده بل سین دی او بل صاد دی او بل زاء ده.

(۱) په طاء کې درې صفات دي:

(۱) له حروفو مجهوره [۱] څخه دی (۲) اوله حروفو مطبقه [۲] وو څخه دی (۳) له حروفو مستعلیه [۳] وو څخه دی

(۲) سین دوه صفته لري (۱) له حروفو مهموسه څخه ده (۲) له حروفو منخفضه [۴] وو څخه ده

(۱):- مجهوره هغه حروفو ته ویل کیږي چې په زور سره اداء کیږي ددې مقابل همس یعنې حروف مهموسه دي اودا حروف لس دي چې مجموعه ئې (فحثه شخص سکت) له دې علاوه نور ټول حروف مجهوره دي

(۲) - مطبقه هغه حروف دي چې د اداکولو په مهال ژبه تالو سره لګیږي اودا او(۷) حروف دي چې مجموعه ئې (صططظض)دي.

(۳) مستعلیه هغه حروف دي چې د اداکولو په پرمهال ژبه اکثره دتالویه لور پورته کیږي مجموعه ئې (خص ضغط قظ) دي.

(٤):-حروف منخفضه (ح، ف، م، ح، ض.

نو د طاء سره بلكل تضاد دى ځكه طاء مجهوره اوسين له مهموسه دى اوطاء مستعليه وو څخه دى اوسين دمنخفضه وو څخه ده نو اصل كې السراط په سين سره وه خو دسين او طاء په منځ كې تضاد وو او له دې څخه ثقل لازميده نوله دې وجې نه مو سين په صاد سره بدل كړو

(۳) صاد له حروفو مهموسه وو مطبقه و اومستعليه وو څخه ده نو په مهموسه وو كې د سين سره مشابه دى او په مطبقه او په مستعليه كې د طاء سره مشابه دى نوځكه مو سين په صاد سره بدل كړو نوصراط شو

(۴) او زاء له حروفو منفتحه[1] وو څخه ده.

او بعض علماء سين په صاد يره د بدليدونه پس اشمام كوي اوايي يو حرف له بل حرف سره يو ځاى كولوته دلته سين له زاء سره يوځاى كوي دا خبره چې د زاء داواز اشمام ولي كوي دا ځكه چې صاد له خپل مبد عنه سره زيات نژدې شي ځكه چې سين او زاء منخفضه او منفتحه دي او صاد مستعليه مطبقه دى نو چې صاد كې د زاء اواز اشمام شي نو سين ته نژدې كيږي.

لكه چې سين سره لوستلى شي نو ګويا په الصراط كې درې حالته وموندل شول (۱) حالت اصلي بالسين (۲) حالت منقلبه بالصاد (۳) حالت بالاشمام او په صراط كې همدا درې قرأتونه راغلي هم دي.

**تفسيربيضاوي:** (وَقَرأَ ابنُ كَثيْرِ بِروَايةِ قُنبَلَ و رُوَيْس عَن يَعقُوبَ بِالأَصْلِ، وَحَمْزة بِالاشْمَام وَالبَاقونَ بِالصَّادِ و هُو لُغةُ قُرَيْش وَالثَّابِت فِى الامَامِ).

**ترجمه:** او قرائت كړى ابن كثير په روايت د قنبل او رُويس له يعقوب نه په اصل سره (په سين سره) حمزه اشمام سره او باقي قاريانو صاد سره لوستلى دى او دا لغت د قريشو دى او په هغه مصحف كې چې د حضرت عثمان (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) مصحف دى هغې كې ثابت او ليكل شوى دى.

**تشريح:** دا هغه درې قرائته بيانوي اول په سين سره چې ابن كثيرپه روايت د رُويس او قنبل سره كړى او دوهم د حمزه دى په اشمام سره.

---

(۱):- منفتحه هغه حروف دي چې دمطبقه وو ضد دي اوله حروفو مطبقه وو نه علاوه نور حروف منفتحه دي

اشمام وائي چې دوه مخرجونه سره خلط کړی شي او بين بين اداء کړی شي نو دلته اشمام په صاد اوزاء کې دی او دا بعينه د سين سره اشمام راځي او دريم قرائت د باقي قاريانو دی چې داد قريشو قرائت دی په صاد سره او همدا د حضرت عثمان رضي الله عنه په مصحف کې موجود دی[1].

**تفسيربيضاوي**: ( وَجَمعُهُ سُرُط كَكُتُب وَهوَ كَالطَّرِيقِ فِي التَّذكِير وَالتَّأنيث)

**ترجمه**: او د صراط جمع سرط راځي لکه د کتاب جمعه کتب او دا صراط په تأنيث اوتذکير کې په شان د طريقې دی.

**تشريح**: **دويم بحث**: سراط له سرط الطعام څخه مأخوذ دی دا هغه وخت ويلی شي چې کله انسان ډوډی تېره کړي نو سراط ته هم سراط ځکه وايي چې قافله تېروي او دېته لقم هم وايي ځکه چې لارې لقمه کوي او جمعه يې سرط راځي لکه د کتاب جمه کتب داځي د صراط لفظ کې تأنيث معنوي سماعي دي يعنې دواړو ته استعماليږي.

**تفسيربيضاوي**: (وَالْمُستَقيْم المُستَوِي والْمُرادُ بِهِ طرِيقُ الحقِّ وَقيْلَ هُومِلَّةُ الِاسْلامِ).

**ترجمه**: (او د مستقيم معنی مستوي ده (سمه لار) اومراد په دې سره طريقه د حق دی اوچا ويلي چې صراط نه ملت اسلام مراد دی.

**تشريح**: دلته د مستقيم دوه معنی ګاني ذکر کوي يوه خاصه او بله عامه اوله معنی ملت الاسلام او دوهمه معنی طريق الحق دی.

اومعنی د ملت الاسلام ئې په صيغې د قيل ذکرکړه ځکه داکمزورې معنی دی که ملت الاسلام مراد کړي نو روسته انعمت عليهم منعم عليهم نبيين دي صدّيقين دي، شهداء دي اوصالحين دي د هغوئ طريقه يوازې ملت الاسلام نه وه او بل صراط الذّين انعمتَ عليهم دا بدل دی د صراط مستقيم نه او د بدل اومبدل منه مصداق يو وي نو د انعمت عليهم مصداق عام دی او دصراط المستقيم مصداق خاص شو.

---

(۱):- دعلم قرائت لس (۱۰) امامان دي (۱) امام نافع مدني (۲) امام ابن کثير عبدالله مکي (۳) امام ابوعمرو بصري (٤) امام ابن عامر شامي (٥) امام عاصم کوفي ٦٧) امام حمزه کوفي (۷) يا امام کسائی کوفي (۸) ابو جعفر مدني (۱۹) امام يعقوب حضرمي (۱۰) امام خلف براز.

## (صراط مستقيم نه څه مراد دی)

امام مجاهد رحمه الله فرمائي له صراط المستقيم نه مراد حق دی دغه راز ابن ابي خاتم او ابن جرير رحمهما الله له ابي نضر هاشم بن قاسم هغه بيا له حمزه بن مغيره هغه له عاصم الاحوال او هغه له ابو العالية نه روايت کوي چې صراط مستقيم نه رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او د هغه صحابه کرام مراد دي[1]

حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائي چې عبد الله ابن عباس او جابر بن عبد الله (رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا) فرمائي چې له صراط مستقيم نه مراد اسلام دی او عبد الله ابن مسعود او على (رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا) فرمائي چې د صراط مستقيم نه مراد قرآن دی او سهيل بن عبد الله (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) فرمائي چې صراط مستقيم نه مراد اهل السنة والجماعة دی[2].

**تفسيربيضاوي**: ( صِراطَ الّذِينَ اَنعَمتَ عَلَيهِم ) بَدلٌ مِنَ الاوّل الكُل وَهوَ فِي حُكمِ تَكرِير الْعَامِلِ مِن حيثُ اِنّه المَقصُود بِالنِّسبَةِ وَفَائِدته التَّوكِيدُ والتَّنْصِيصُ على انّ طَرِيقَ المُسْلِمِينَ هُوالمَشْهودُ علَيهِ بِالاستِقامَة عَلى أَكّد وَجْه وَأَبلغهِ لأنَهٗ جعل كَالتَّفسِيرِ وَالبَيانِ لهُ فَكأَنّه مِن البَيّنِ الذّي لاخَفَاء فِيه أنّ الطَرِيقَ المُستَقِيم مَايَكونُ طرِيْقُ المؤْمِنِينَ ).

**ترجمه**: صراط (منصوب) د اول صراط نه بدل الكل راغلى دى او دا په قوت د تكرار د عامل كې وي په دې حيثيت چې ۱۰ بدل مقصود بالنسبة وي او بدل او مبدل منه کې فائده د تاکيد وي او دې کې تنصيص په دې خبره هم دی چې د مسلمانانو لار هغه لار دی چې د هغې د مستقم كېدو شهادت ورکړی شوی دی په تاکيد او بليغي وجې سره (چې دا لار سمه ده) ځکه دا بدل ئې د تفسير او بيان پشان د مبدل منه لپاره ګرځولی ګويا که دا حقيقت او استقامت د لارې د مسلمانانو هغه ښکاره شئ دی چې پټوالی پکې نشته چې طريقه مستقيمه د مسلمانانو دی.

**تشريح**: دلته اوس نحوي بحث کوي چې دا صراط د مخکې صراط المستقيم نه بدل الكل دی په دې اعتراض واردېږي.

---

(۱):- تفسير ابن كثير: ۱ / ٥٤. تفسير قرطبي: ۱ /٤٧ و تفسير طبري.

(۲):- مدارج السالكين: ۱ /۸، ونضرة النعيم: ۱ /٤٥٦

**سوال**: د بدل الكل او مبدل منه مصداق خو يو وي نو چې مصداق يو شو بيا د دې په ذكر كولو كې فائده نشته نو ذكر كولو ته يې څه اړتيا وه.

**جواب**: د دې په ذكر كولو كې دوه فائدې دي يو فائده ئې تاكيد دى هغه داسې چې په بدل او مبدل منه كې مقصود بالنسبت بدل وي يعنې د كوم فعل نسبت چې متبوع طرفته شوې دى په دغه نسبت كې متبوع نه بلكې تابع او بدل مقصودى هر كله چې بدل مقصود بالنسبت نو دا تقاضا دا كوي چې د فعل نسبت دې دده طرفته براه راست وشي او راه راست نسبت هغه وخت كيږي چې كله فعل مكرر ذكر شي نو چې كله فعل مكرر شو همدا تاكيد شو.

او بله فايده يې تنصيص دى هغه داسې چې دا خبره په صراحت سره بيانوي چې د مومنانو لار مشهود بالاستقامت دى او دا تصريح بليغه دى ځكه كله كله مبدل منه كې ابهام وي او بدل رفعه د ابهام كوي او دا هغه مهال كيدى شي چې بدل زيات واضحه او مشهور وي ګويا چې

دلته په صراط المستقيم كې خفا وه په صراط الذين انعمت سره يې رفعه د خفا وكړه.

مايكون طريق المؤمنين: دې سره اوله ترجمة د انعمت عليهم بيانوي چې هغه څلور ډلې دي (١) انبياء عليهم السلام (٢) صدّيقين (٣) شهداء (۴) صالحين.

## (د اَنعَمتَ عليهم مصداق)

**تفسير بيضاوي**: (وَقيلَ الّذِينَ اَنْعَمْتَ علَيهِم )ألأنبِياءُ وَقِيل أصْحابُ مُوسى وَعِيسى عَليهِما الصّلوة والسّلام قَبلَ التَّحرِيفِ وَالنَّسخِ وَقرَءَ صِرَاطَ مَن اَنْعَمتَ عَلَيْهم).

**ترجمه**: اوچا ويلي دي چې انعمت عليهم نه انبياء عليهم السلام مراد دي اوچا ويلي دي چې د موسى او عيسى عليهما السلام اصحاب مراد دي مخكې د تحريف او منسوخ كيدونه چې كوم وو او دا صراط مَن انعمت عليهم هم لوستلى شوى دى.

**تشريح**: دلته مصداق د انعمت عليهم بيانوي په دې كې څو قوله دي لومړي جمهور مفسرين دوى وايي چې مصداق د انعمت عليهم انبياء عليهم السلام، صديقين، شهداء او صالحين دي او د خپل قول په تائد كې دا قول دالله تعالى پيش كوي (﴿ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ

عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَئِكَ رَفِيقًا[1] دې ايت کې الله تعالی څلور قسمه خلک منعم عليهم شمارلي دي نو د انعمت عليهم نه په هم دغه خلک مراد وي له يو حديث: خه هم ددوی د قول تائد معلوميږي چې رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د انعمت عليهم په باره کې ويلي دي چې: (هم الملائکة والصديقين والشهداء ومن اطاعه وعبده)

دويم قول دا دی چې د انعمت عليهم نه انبياء عليهم السلام مراد دی ځکه انعمت مطلق ذکر شوی او شئ چې مطلق ذکر شي نو مراد ترينه فرد کامل وي نو ځکه ترينه انبياء عليهم السلام مراد دي.

دريمه قول داده چې اصحاب د موسی او عيسی عليهما السلام مراد دي او د دوئ دليل دا دی چې انعمت عليهم نه روسته الله جلّ جلاله فرمائي غير المغضوب عليهم ولا الضآلين د مغضوب عليهم نه يهود مراد دي او ولا الضآلين نه نصاری مراد دي خو دا بعد التحريف او نسخ دی نو له دينه مخکې به قبل التحريف و النسخ هم يهود ونصاری مرادوي بيا بعض علماء وائي چې تحريف اصحاب د عيسی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته راجع دی او نسخه اصحاب موسیٰ (عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته راجع دی او بعض عکس کوي خو راجحه دا دی چې تحريف او نسخه دواړو ته راجع ده او بعض وائي چې دا نسخه يوازې اصحاب د عيسی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته راجع دی ځکه زمونږ دين يوازې د عيسی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) دين منسوخ کړی د يهودو دين خو د عيسی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) په دين سره منسوخ شوي دی.

دا روستني دواړه قولونه قاضي صيب په قيل سره ذکر کړل اشاره ده ضعف د دې اقوالو ته.

**تفسيربيضاوي**: (وَالإِنعَام اِيصَالُ النِّعمَةِ وَهِيَ فِى الأَصلِ الحَالَةُ الَّتِي يستَلِذُّهَا الإِنسَان فَأُطلِقَتْ لِمَا يَستلِذُّهُ مِنَ النِّعمَةِ وَهِيَ اللِّين).

**ترجمه**: انعام رسولو د نعمت ته وائي او دا په اصل کې هغه حالت وي چې انسان تلذّذ حاصلوي نو بيا هر هغه شي ته وويل شو چې لذّت ورنه حاصليږي او دا له نَعمَةٌ نه مأخوذ دی نرمي ته وائي.

**تشريح**: د انعام درې معنی ګانې (۱) ايصال النعمت (۲) د سترګو يخوالی (۳) يو چا ته نعم ويل.

---

(۱) سورة النساء: اية ٦٩].

## د نعمتونو اقسام

**تفسيربيضاوي**: (وَنِعم اللهِ وَانْ كَانتْ لَاتُحصى كماقَالَ (وَانْ تَعُدّوا نِعمَتَ الله لَاتُحْصُوهَا) تَنحصِرُ فى جِنسَينِ دُنيَويٌ وَ أُخروي)

**ترجمه**: او د الله جلّ جلاله نعمتو اګر که بي شماره دي لکه څنګه چې الله جلّ جلاله فرمايلي دي که تاسو د الله تعالى نعمتونه شمارئ نو شماربه ئې نکړئ دا په دوه جنسونو کې منحصردي دنيوي او اخروي.

**تشريح**: اقسام او انواع د نعمتونو غيرمتناهي د ي خو اجناس ئې دوه دي يعنې په دوه جنسونو کې منحصردی (۱) دنيوي (۲) اخروي بيا دنيوي په دوه قسمه دي (۱) وهبي (۲) کسبي بيا وهبي په دوه قسمه دي (۱) روحاني (۲) جسماني.

**تفسيربيضاوي**: (وَالأَوّل قِسمانِ: مَوهَبِي وَكِسْبِي وَالموهَبِي قِسمانِ رُوحانِي كَنَفخِ الرُّوحِ فِيه وَإِشرَاقِه بِالعَقلِ وَمَايَتّبِعه مِن القَوي كَالفَهمِ والفِكرِ والنُّطق وَجِسمَانِي كَتَخْلِيق البَدنِ وَالقوى الحَالةِ فيه والهَيئَات العَارِضةِ له مِن الصّحّة وكَمَالِ الأَعضاءِ).

**ترجمه**: او اولنی (دنيوي) په دوه قسمه دی وهبي اوکسبي بيا وهبي په دوه قسمه ده روحاني لکه پو کول دروح په انسان کې او روښانه کول د انسان دي په عقل سره او په هغه شيانو چې د عقل تابع دي لکه نور قوتونه لکه فهم او فکر او خبرې کولو او بل جسماني نعمتونه دي لکه د بدن پيدا کول او هغه قوتونه چې بدن کې يې پيدا کړي دي او د صحت ځينې هيئت عارضه او کمال د اعضاء وو.

**تشريح**: وهبي وائي مالادخل فيه للکسب العبد: چې د عبد کسب لره پکې دخله نه وي اوکسبي ئې عکس دی يعنې چې د انسان په کسب سره حاصليږي.

**تفسيربيضاوي**: (وَالْكسْبِي تَزْكيةُ النَّفسِ عَنِ الرَّذَائِل تَحلِيَتها بِالأَخلاقِ السَّنيّة وَالمَلكاتِ الفَاضِلة وتَذيِين البَدَن بِالهَيئاتِ المَطبُوعة وَالحِلي المُستَحْسنَة وَحصُول الجَاهِ وَالمَالِ).

**ترجمه**: او کسبي لکه تزکیه د نفس د بدو اخلاقو نه او ښایست په ښو اخلاقو سره حاصلول د ملکاتو فاضله وو او ښایسته کول د بدن په ښایسته کالیو ښکلی کول (په ګاڼو ښایسته وو) او د مال او مرتب حاصلول.

**تشریح**: کسبي هم په درې قسمه ده یو روحاني لکه تزکیه د نفس له رزائلو او ښایسته کول د نفس په اخلاقو حسنه وو او بل جسماني دي لکه ښایسته کول دبدن په هیئاتو مطبوعه و هیئت مطبوعة دا معنی چې لکه ته مولانا سړی یې د شرعې موافق دې سپینې جامې ښکلې پګړۍ تسبیح او مسواک دې په لاس کې وي داهم د الله جل جلاله یو نعمت دی او دا دریم چې نه روحاني اونه جسماني وي لکه حصول المال او جاه.

**تفسیربیضاوی**: ( وَالثَّانی أَن یُغفَر مَافَرَطَ منْهُ وَیرْضی عنْه وَیُبوئَه فی أَعلی عِلّیین مَع المَلائِکة المُقرّبِین أَبد الآبدینَ وَالمُراد هُو القِسم الآخِر وَمایَکونُ وَصْلةً اِلی نَیلهِ مِن القِسم الآخِر فَانّ مَاعدَا ذالک یَشترِک فِیه المُؤمِن وَالکَافرُ).

**ترجمه**: او دوهم (اخروي نعمتونه) چې سړی ته د هر هغه شیانو بخښنه وشي چې کوم تجاوز د دغه بنده نه شوی وي او راضي شي له ده نه الله تعالی او اووسوي (ځای ورکړي) الله جلّ جلاله ده لره په هغه تړلو بلندو مکاناتو کې د مقرّبینو ملائکو سره همیشه همیشه اومراد دلته ځلور واړه نعمتونو کې قسم آخیرنعمتونه دي (اخروي) او هغه چې د قسم آخر رسیدو ته وسیله دي ځکه چې دی نه ماسوا نعمتونو کې مؤمن او کافرشریک دي.

**تشریح**: دلته د اخروي نعمتونو امثال بیانوي. بعض علماء اخروي نعمتونه هم په دوه قسمه کوي: وهبي او کسبي . د وهبي مثال لکه مغفرت د الله تعالی د کسبي مثال لکه جزاء الاعمال او کسبي بیا په دوه قسمه دی: روحاني لکه د الله جلّ جلاله رضا او بل جسماني لکه دجنت میوې اونور نعمتونه ځینې بیا وایي چې د جنت تمام نعمتونه وهبي دي خو قاضي صیب فرمایي چې اخروي نعمتونه دا دي چې له انسان ځخه په دنیا کې کوم ګناهونه شوي وې الله تعالی هغه ورته وبښي او ترینه راضي شي او هغه ته په علین کې له ملایکو سره تل پاتې ځای ورکړي پاتې شوه دا خبره چې دلته له

انعمت علیهم څخه کوم نعمتونه مراد دي نو فرمايي چې اخروي نعمتونه او دنیوي هغه نعمتونه کوم چې د اخروي نعمتونو د حصول وسیله وي او دا نعمتونه ولې مراد دي ځکه چې دلته منعم علیهم نه خاص مؤمنان مراد دي او تخصیص د مومنانو هغه مهال راځي کله چې د غه نعمتونه مراد شي ځکه له دې نه علاوه خو په نورو نعمتونو کې مؤمنان او مشرکان شریک دي.

صراط االّذين انعمت عَلَيْهِم غَيرِالمَغضوب عليهم ولاالضّآلين (۷)

**تفسیربیضاوي:** (غَيرِالمَغضُوبِ عَلَيهم وَلَاالضَّآلِّين بَدلٌ مِن الّذِينَ عَلَى مَعنى أَنّ المُنعِم علَيهِم هُم الّذينَ سَلِمُوا مِن الغَضَب وَالضَّلال أو صِفَةٌ لهُ مُبَيِّنه اومُقيِّدةٌ على مَعنى أنّهم جَمعُوا بَينَ النّعمةِ المُطلَقةِ وهِىَ النِّعمةُ الايمَان وَبَين السّلامَة مِن الغَضبِ وَالضَّلال).

**ترجمه:** دا غير المغضوب عليهم ولاالضّآلين بدل دی د الّذين څخه معنی دا چې په کومو انعام کړی شوی دا هغه خلک دي چې د غضب او ضلالت نه بچ دي او يا دا صفت مبينه دی (چې صرف مؤمنان مراد شي) اوياصفت مقيّده دی (چې مؤمنان او کافران دواړه شي) په دې معنی سره چې منعم عليهم دلې په منځ د نعمت مطلقه چې نعمت د ايمان دی او په منځ د سلامتيا کې د غضب او ضلال نه جمع والی کړی دی.

**تشريح:** دلته اول ترکيب کوي منعم عليهم مبدل منه دی او غير المغضوب عليهم ورنه بدل دی او بدل ئې مطلق ذکر کړی دی او مراد ترينه فرد کامل دی چې بدل الکل دی او بدل او مبدل منه ذاتًا اومصداقًا يو وي نو دا دواړه به هم يووي نوچې يو (متحد) شو بيا ئې يو په بل حمل هم صحيح کيږي نومعنا به دا شي چې کوم خلک منعم عليهم دي هم د غه خلک سالم دي له غضب او ضلال څخه.

دويم ترکيب دا دی چې دا صفت دی د منعم عليهم لپاره. صفت وائې التابع الّذی يدلّ على معنى فی متبوعه نو غير المغضوب عليهم تابع دی او متبوع الّذين انعمت دی نو په الّذين کې دوه جهته دي يو د موصوليت دی او بل د موصوفيت دی نو په جهت د موصوليت ئې د صلې معنى واخيسته او په جهة د موصوفيت ئې د صفت معنى واخيسته.

## د صفت اقسام

صفت بیا په درې قسمه دی (۱) صفت مبینه یا کاشفه (۲) صفت مقیده (۳) صفت مادحه.

(۱) **صفت کاشفه**: دیته وائي چې رفعه د ابهام د موصوف راولي او دا صفت له موصوف سره مساوي وي.

(۲) **صفت مقیده**: دیته وائي چې مقصود پکې تخصیص د موصوف وي.

(۳) **صفت مادحه**: دیته وائي چې نه پکې رفع د ابهام د موصوف وي او نه پکې تخصیص د موصوف وي بلکه محض مدحه د موصوف وي اوس د انعمت علیهم نه که نفس ایمان واخلی نو د نفس ایمان په وجه دخول ابدي په جهنم کې نشته خو دخول اولی شته نو نفس ایمان والا سالم د غضب او ضلال نه نه دي ځکه چې جهنم ته داخل شو نو غضب او ضلال نه سالم نشو.

او که ایمان کامل واخلی نو د ایمان کامل والا دخول اولې هم جهنم ته نه کیږي نو سالم شوه د غضب او ضلال نه.

اوس که د انعمت علیهم نه نفس ایمان واخلی چې دا سالم د غضب او اضلال نه نه دي نو په غیر المغضوب سره ئې تقید راوستئ د نفس ایمان والا او که ایمان څخه ایمان کامل واخلی نو بیائې په غیر المغضوب صفت مبینه دی ځکه موصوف ئې سالم دی له غضب او ضلال نه او صفت ئې هم سالم دی.

**سوال**: دلته دې له نعمتونه نعمت د ایمان مراد کړ او مخکې دې ترېنه اخروي نعمتونه اخستي و دا خو ستا په کلام کې تدافع دی.

**جواب**: دلته هم ټول نعنتونه مراد دي لکن په وخت د تقابل د صفت او صِلې کې د نعمت مطلقه نه فرد کامل مراد دی چې ایمان دي.

**تفسیربیضاوي**: (وَ ذالك اِنّما يَصِحُّ بِاحدِ تَأويلَينِ اِجراءَ المَوصُولِ مَجرى النَّكِرةِ اِذَا لَم يَقصدْ بِهِ مَعهود كَالمُحلى فى قوله وَلقدْ اَمُرُّ على اللَّئِيم يَسبُّنى وقولِهِم اِنِّى لأَمرّ على الرّجلِ مِثلِك فيَكرمني أو جُعلَ غَيْرمَعرفَة بِالاضَافةِ لأَنَّه أُضِيْفَ الى مَالهُ ضِدٌّ وّاحِدٌ وهو المُنعِم علَيهِم فَيَتَعيّنُ تَعِين الحَركة مِن غَيرالسُّكون)

**ترجمه**: او دا صفت کیدل په یو د دووه تاویلینو سره صحیح کیږي چې الذی په ځای د نکرې جاري شي چې په دې سره معلوم مقدار قصد نه کړئ شي لکه په دې قول کې ولقد امر الخ زه تیریدم په یو رزیل چې کنځلي ئې راته کولې او دا قول د عربو: ستا په شان په یو سړي تیریدم هغه زما عزت وکړ یا غیر معرفه کولی شي په اضافت سره ځکه د دې اضافت یو داسې شي ته شوی (مغضوب) چې د هغې ضد یو دی چې هغه منعم علیهم دي له دې سره هغه متعین شو لکه تعین په الحرکت غیرالسکون کې.

**تشریح**: قاضي صیب دلته د دې لپاره چې الف لام عهد ذهني په حکم د نکرې کې دي دوه دلایل بیانوي اول دلیل شعر دویم قول دی

پوره شعر داسې دی: ولقد امرّ علی اللّئیم یسبّنی. . فمضیت ثمّه وقلت لایعنینی، غضبان ممتلئا علی اهابه. . انّی وربّک سخطه یرضینی [1]. د دې شعر په اړه مشهوره دی چې دا د حضرت علی (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) شعر دی خو دا خبر غلطه ده علامه بهاءالدّین السبکي فرمائي چې: شعر د هغه نه دی بلکه د عمیربن جابرالحنفي دی.

او بل په دې عبارت سره دفع د اعتراض دی هغه دا

**سوال**: غیرالمغضوب علیهم تا صفت کړ د الّذین انعمت علیهم لپاره او موصوف خومعرفه دی او صفت یې نکره دی نو مطابقت په مابین د صفت او موصوف کې رانغلو که ته وایې چې صفت هم معرفه دی ځکه اضافت یې المغضوب ته شوی او اضافت علامه د تعریف دی خو دا خبره باطله دی ځکه ځینې کلمات داسې دي چې هغه په اضافت هم نه معرفه کیږي له دغې جملې ځخه غیر هم دی نو مطابقت رانغلو په مابین د صفت او موصوف کې؟

(۱)**جواب**: اول جواب په دې طریقه ورکوي چې په جانب د موصوف کې تأویل کوي هغه داسې چې الّذین انعمت علیهم دا موصول او موصول په افاده د تعریف کې د الف لام په شان وي الف لام په څلور قسمه دی نو موصول او صله به هم په تعریف کې په څلور قسمه وي په الف لام کې

(۱):- حاشیة الشهاب علی تفسیرالبیضاوی: ۱ / ۲۱٦.

یو عهد ذهني دی کوم چې په حکم د نکرې کې وي یعنې په لفظ کې معرفه وي او په معنی کې نکره وي نو رعایت د لفظ ئې هم جائز دی او رعایت د معنی ئې هم جیز دی نو دلته له الذین ځنځه معهود فی الزهن مراد دی او دا په حکم د نکرې کې وي نو مطابقت راغی په مابین د موصوف اوصفت کې دلته الف لام عهدخارجي ولې نه اخلی ځکه دلته یو فرد معهود نه دی مراد او استغراق هم نشو اخیسلتی ځکه قرائن د استعراق نشته او جنس هم نشو اخیسلتی ځکه صراط ورته مضاف دی اوصراط د حقیقت لپاره نه ئې بلکه د فرد لپاره ئې همدغه بحث په علی اللئیم کې هم دی چې اللئیم کې الف لام عهد ذهنی دی ځکه چې د شاعر مقصد خپل کمال او وقار بیانول دي او کمال او وقار به هغه وخت وي چې کله د حلم او صبر معامله له یو کس سره نه وي بلکې په حلم کې عموم وي دلته هم الف لام جنسي او عهد خاجي نه سهي کیږي ځکه په شعر کې په لئیم باندې مرور واقع شوی او مرور په جنس او حقیقت د شي نشي واقع کیدلی او الف لام استغراقي هم نه سهي کیږي ځکه په یو وخت کې د دنیا په ټولو لئیمانو باندې تېریدل محال وي .

(۲)**جواب**: (أو جُعِلَ غَيْرمَعرِفَة بِالاضَافَةِ لأَنّه أُضِيْفَ الى مَالهُ ضِدٌّ وَّاحِدٌ) داسې کوي چې تأویل په جانب دصفت کې کوي هغه داسې چې ته وائي غیر په اضافت سره هم نه معرفه کیږي هغه هلته چې د غیر د مضاف الیه لپاره اضداد ډیروي او چې اضداد ئې ډیرنه وي (یو وي) بیا معرفه کیږي لکه علیک بالحرکت غیر السکون دلته د غیر مضاف الیه السکون دی او د سکون ضد یو دی چې حرکت دی نو دلته «غیر» هم معرفه دی ځکه د مغضوب علیهم ضد یو دی چې منعم علیهم دی.

**تفسیربیضاوي**: (وَعَن ابنِ كثيرٍ نَصبُه عَلَى الحَال مِن الضَّميرِ المَجْرورِ والعَامل أنعمتَ اوْ بِاِضمَار عَنَى اوْ بِالاستِثنَاءِ اِن فُسرَالنّعمُ بِمايَعمّ القَبيلتَين ).

**ترجمه**: او د ابن کثیر رحمه الله نه د غیرنصب منقول دی بناپه حالیت د ضمیر مجرورنه د (انعمت علیهم) او عامل د نصب انعمت دی یا په اضمار د اعنی سره منصوب دی ای اعنی غیر المغضوب او یا منصوب بنا بر استثناء دی چې د نعمتونو هغه تفسیر او کړی شي چې دواړه ډلو ته عام دی.

**تشریح**: دلته دریم ترکیب بیانوي:

(۱) **سوال**: ته وایي چې دا حال دی له ضمیر مجروره د انعمت علیهم څخه او حال خو یا د فاعل نه وي یا د مفعول نه او دلته خو هِمْ ضمیر مجرور دی نه فاعل دی نه مفعول دی؟

(۲) **سوال**: عامل د حال او د ذوالحال یووي دلته خو د هِمْ عامل علی دی او غیرعامل په انعمت کې دی عامل د حال او ذوالحال بیل بیل شو ؟

**جواب**: دا وائي چې والعامل انعمت په دواړو کې عامل انعمت دی دا هِمْ مفعول به غیرصریحې دی د انعمت لپاره.

## (بحث الغضب)

**تفسیربیضاوي**: ( وَالغَضَبُ ثَورانُ النَّفسِ عِندَ اِرادةِ الاِنتِقامِ فَاذَا أسندَ الى اللهِ تعالى أرِيد بِه المُنتَهى وَالغَايَة عَلى مَامرّ).

**ترجمه**: غضب خوټکیدل (جوشیدلو) وو د نفس ته وائي په وخت د ارادې د انتقام اخیستلو کې او کله ئې چې الله جلّ جلاله ته نسبت اوشي نو د دې مراد انتهاء او غایه د غضب وي.

**تشریح**: دلته د غضب معنی حقیقي او معنی مجازي ذکر کوي د غضب خپله معنی ده ثوران النفس او ثوران په معنی د غلیان سره دی یعني خوټکیدل د نفسي وینو ته وائي لکه تاسو په هدایه کې وائی وبموت مالانفس له یعني او به نه نجسیږي په مرګ د هغه حیوان چې وینه نه لري او الف لام عوض د مضاف الیه څخه دی چې قلب دی نو معنی به دا شي چې غضب وائي ثوران نفس القلب خوټکیدل د وینو دزړه، دا درې واړه خبرې چې وینه، خوټکیدل او قلب دی په جانب د الله جلّ جلاله کې محال دی نو دلته په جانب د اثر کې تأویل کوي چې انتهاء او غایه (انتقام) به مراد وي او دا ده متأخرینو رأیه ده چې تأویل کوي او متقدمین تفویض کوي چې دا معنی الله تعالی ته معلومه دی (۱).

---

(۱):- په صفاتو متشابه وو کې د اهل السنة والجماعة اتفاقي فیصله د تنزیه د بارې تعالی ده چې الله جلّ جلاله له صفاتو د مخلوق او هم له لوازمو د صفاتو د مخلوق نه منزه دی خو دومره ده چې متقدمین تفویض کوي اومتأخرین تأویل دا دزمانې خبره ده د متقدمینو په زمانه کې مجسمه کمه وه نو دصفاتو متشابهه وو تفسیر اوبیان ته ضرورت نه وو چا به چې بوښتنه ترې وکړه هغوی به ورته وویل قرأتها تفسیر یعنې تفویض به ئې کولو چې د دې معنی یوازې الله ته معلومه دی او د متأخرینو په زمانه کې مجسمه زیات شول خلک به تجسیم طرفته بلل اوشکونه به ئې په دغو صفاتوکې وراچول نومتأخرینو د خلکو دتجسیم نه د خلاصون لپاره په دغو صفاتو کې تأویل وکړ چې (ید) نه قدرت او استواء نه غلبه مراد ده یعنې دمتقدمینو اومتأخرینو دواړو مذهب دتنزیه دی خو طروق د دفاع بدل دي د دوی مذهب جلا کول یوه لویه سهوه ده.

**تفسیربیضاوي**: (وَعَلیهِم فِی مَحلِ الرَّفعِ لأَنَه نَائب مَنابَ الفاعلِ بِخلافِ الأَوَلِ وَلَامَزیدة لِتاکید مَا فِی غَیرمن مَعنی النَّفی فکَانَهُ قَالَ لَاغضبَ عَلیهم ولَاالضَّآلین وَلذلِك جَاز أَنا زَیدًا غَیرضاربٍ کما جازَ زیدًا لَاضارب و إنْ إمتَنع انا زیدً مثل ضارِب).

**ترجمه**: علیهم په محل د رفع کې دی ځکه د فاعل قائم مقام دی په خلاف د اولني علیهم چې هغه محلًا منصوب دی او کلمه د لا په روسته جمله کې زائده ده لپاره ده تاکید د کوم مفهوم د نفی چې په معنی د علی کې ده ګویا که دا کلام داسې وي المغضوب علیهم ولاالضآلین او د دې جهت نه چې دا لام زائد دی دا ترکیب جائز دی چې انا زیدًا غیرضارب لکه څنګه چې دا ترکیب جائز دی انا زیدا لاضارب او اګر چې دا ترکیب منع دی انا زیدًا مثل ضارب.

**تشریح**: علیهم کې علی زائد دی (هم) فقط نائب فاعل دی او (لا) زائده دی او دا له حروفو عاطفه وو څخه دی او په دې سره عطف په هغه اسم کولی شي د کوم په مفهوم کې چې نفي موجوده وي او ی سابقې نفي د تاکید لپاره ذکر کولی شي لکه یو سړی ووائي ماجاءني زید ولاعمرو دلته نفی د مجئت د زید او عمرو دواړه وشوه په طریقې اقتران او هم په طریقې د تباعد او په طریقې د تقارب درې واړه نفي شوې خو په دې درې واړو کې فرد کامل مجئیت په طریقې د اقتران دی نومتوهم دا وهم کولو چې مجئیت علی القتران به نه وي بلکه په طریقې تباعد اوتقارب به وي نو د دې توهم د دفع لپاره ئي پکې یوبل لام هم زیات کړ لکه ماجاءنې زید ولاعمرو نو دلته هم داسې دی غیرالمغضوب والضآلین چې بغیر د لام نه ئې ووائې د دواړو نفی راغله هم په طریقې د تقارب هم په طریقې د تباعد او هم په طریقې د اقتران نو دلته هم کیدی شي متوهم وهم وکړي چې دلته هم فرد کامل مراد دی چې اقتران دی چې د مغضوبینو او ضالینو په لاره تلل په طریقه د اقتران ممنوع دي او په طریقې د تباعد اوتقارب به جائز وي نو د دفع د دې توهم لپاره ئې دوهم لام پکې زیات کړ غیرالمغضوب ولاالضآلین نو دې لام د هغې مخکې نفی تاکید راوستو.

**سوال**: تا وویل چې (لا) د سابق کلام د نفي د تاکید لپاره ذکر کولی شي او د معطوف علیه مفهوم منفي ساتي نو دلته د (ولاالضالین) د معطوف علیه مفهوم خو یې مثبت ساتلی دی نو قاعده دې منقوضه شوه او قاعده درسته وي بیا قراني ترکیب خلاف القاعده دی.

**جواب**: دا معطف علیه مثبت دی منفي نه دی ځکه (لا) کلام منفي کې زایده راځي او دا ځکه منفي دی چې د معطوف علیه په جانب کې لفظ د غیر دی او غیر د دوه معناګانو لپاره راځي (۱) د نفي لپاره (۲) د مغایرت د اثبات لپاره. که دلته د نفي لپاره شي بیا خو څه اشکال نشته او که د مغایرت لپاره شي نو بیا به د معطوف علیه مفهوم التزاماً منفي وي بهر حال نفي موجوده دی که غیر د مغایرت لپاره شي بیا په دې طریقې چې منعم علیهم او مغضوب کې مغایرت دی خو له دې سره سره مغضوب نفي کیږي هم ځکه کله یې چې د مهعم علیهم له لارې هدایت طلب کړو او هغه مغایر دی له معضوب نه نو معنا دا شوه چې د مغضوب نفي یې وکړه او که غیر د نفي لپاره شي نو بیا (لا) د تاکید په طور ذکر کول به د قاعدې مطابق وي

(وَلذلِك جَاز أَنا زَيدًا غَيرضارِبٍ) دا تفریع دی چې غیر په معنا د لام تاکید دی حاصل دا چې دا ترکیب(أَنا زَيدًا غَيرضارِبٍ) ځکه جائز دی چې دا غیر په معنی د لام سره دی ورنه بیا غلط دی دلته انا مبتداء دی اوضارب ورته خبرده اوزیدًا منصوب دی او عامل پکې ضارب دی او دا ترکیب (انا زیدا مثل ضارب ممتنع دی ځکه چې انا مبتدا دی او مثل مضاف مقدم او ضارب مضاف الیه دی او زیدا د دې مضاف الیه معمول دی د ضارب مضاف الیه په لفظ د مثل باندې مقدم کیدل نا جائز دي.

**سوال**: په لومړي ترکیب اعتراض دی تا وویل چې په زیدًا کې ضارب عامل دی ضارب خو مضاف الیه د غیر دی دا خو معمول د مضاف الیه په مضاف هم مقدم شو اومعمول د مضاف الیه په هغې ځای کې راتلی شي په کوم ځای کې چې خپله مضاف الیه راتلی شي ضارب مضاف الیه د غیر دی اومعمول ئي زید دی اوس ضارب د زید په ځای کې نشي راتلې نو تا دا ترکیب ولې جائز کړو؟

**جواب**: دلته غير په معنى د لام سره دى او لام حرف دى مضاف نشو نو ضارب مضاف اليه شو او په ځاى د زيد هم راتلى شي هم د غسې انا زيدًا لا ضارب هم دى.

**تفسيربيضاوى**: ( وَقرئ رغيرالضَّالِّين وَالضلالُ العدولُ عَن الطَّريقِ السوى عمدًا اوخَطاءً وَلهُ عرض عَرِيْض والتَّفاوت مابَين أدناه وأقصَاه كثِير).

**ترجمه**: او لوستلى شوي دي ولاالضّآلين په ځاى غيرالضّآلين اوضلال دلارې برابرى نه قصدًا ياخطاءً عدول كولو ته وائي او د ضلال لپاره ډير لويه فراخې دى په منځ د نزدې اولرې كې ډير فرق دى

**تشريح**: دا يو قرائت وه په ولاالضّآلين كې چې د لام په ځاى غير راغلى او د ضلالت لره ډير لوى ميدان دى چې ادنى د دې ضلالت ترک اولى دى اقصى ئې كفردى نو د ترک اولى اوكفر په مابين كې ډيرې درجې دي چې انحصاريې نه شي كيدي.

## (الضّآلين نه مراد څوک دي)

**تفسيربيضاوي**: ( قِيل)( المَغضوبِ عليهِم )اليَهُود لِقولهِ تعالى فِيْهِم من لّعنَهمُ الله وَغَضِب عليه [1](وَالضّالين) النّصارى لقوله تعَالى (قَدضَلّوا مِن قَبلُ وَاَضَلّوا كَثيرًا[2] وَقدرُوِىَ مرْفوعًا)

**ترجمه**: او ځا ويلي دي چې مغضوب عليهم يهوديان دي د وجې د دې قول د الله تعالى نه (من لّعنه الله وغضب عليه) او ضّآلين نه مراد نصارى دي د دې قول د الله په وجه (قدضلّوا من قبل اوضلّوا كثيرًا) ذا تفسير د مغضوب عليهم او د الضّآلين رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نه مرفوع روايت شوى.

**تشريح**: **سوال**: له قول د قيل نه خو دا معلوميږي چې ګوياكه تا مخكې يوه ترجمه د مغضوب عليهم ذكر كړې ده اوتاخو مخكې يوه ترجمه هم نه ده كړې؟

---

(۱):- سورة المائدة : (٦٠).

(۲):- سورة المائدة : (۷۷).

**جواب**: که مخکې ترې صراحتًا ترجمه نه وی ذکرشوی ضمنًا خو ذکرده ځکه انعمت علیهم نه مؤمنان مراد وه او مغضوب علیهم د هغې مقابل وو نوله دې نه به کافران مرادوي.

ځینې علماء فرمایی چې له مغضوب علیهم نه یهود مراد دی په دې خبره دا قول د الله تعالی دلیل دي (فِیْهِم من لَعنَهمُ الله وَغَضِب علیه) او له الضالین څخه نصاری مراد دي په خبره دا قول د الله تعالی دلیل دی ((قَدضَلَوا مِن قَبلُ وَاَضَلوا کَثیرًا)

مرفوعًا: په حدیث د عدی ابن حاتم (رضي الله عنه) کې دي چې دا د هغه حدیث جزء دی (قال فانّ الیهود مغضوب علیهم والنصاری الضّآلین [1] او تفسیرطبري هم روایت کړی: (عن عدی بن حاتم قال سألت النبیّ صلّی الله علیه وسلّم عن قول تعالی عزّ وجلّ غیرالمغضوب علیهم قال هم الیهود) [2].

دغسې په روایت د مسند احمد کې دي چې: سئل رجل النبي صلی الله علیه وسلم فقال یارسول الله من هؤلاء المغضوب علیهم فقال الیهود ومن هؤلاء الضالین فقال النصاری.

او په عقل سره هم دا څرګندیږي چې چې یهود مغضوب علیهم او نصاری ضالین دي، نصاری خو ځکه ضالین دي چې د دوی اکثره جاهلان و او اعتقادات یې ټول فاسد و او یهود ځکه مغضوب دي چې دوی له ټولو نه زیات دوښمني کونکي دي له مسلمانانو سره او په خپلو اعمالو او افعالو کې یې له هرچا زیاته سرکشي وکړه.

**تفسیربیضاوی**: ( وَیتَجهُ ان یُقال المَغضوب عَلیهِم العُصاةُ وَالضَّآلّین اَلجَاهلُون بِالله لأنّ المُنعمَ علَیهم مِن وَفّق لِلجمْع بَین معْرفةِالحقّ لِذاتهِ وَالخَیر لِلعملِ به فَکَان المُقابِل لهُ مَن اِخْتلّ اِحدی قُوتیهِ العَاقلةِ والعَاملةُ والمُخلّ بالعَملِ فَاسقٌ مَغضوبٌ علیهِ لقولِه

(۱):- مسند ابوداود الطیاسی: ۹۱.

(۲):- تفسیرطبري: ۱/ ۶۵. کذا رواه ابن کثیر عن حماد بن سلمة هم سملاء هم مري بن قطري عن عدي بن حاتم. ورواه عبدالرزاق عن معمر عن بریل العقیل عن عبدالله بن شقیق انّه اخبره من سمع النبیّ صلّی الله علیه وسلّم وهو بوادي القری و هو علی فرسه وسأله رجل من بنی القین فقال یارسول الله من هؤلآء قال المغضوب علیهم واشار الی الیهود والضّآلون هم النصاری.

تَعالی فِی القَاتِلِ عمدًا( وَغِضِبَ الله علیهم) [۱] والمُخِل بِالعقْل جَاهلٌ ضَالٌ، لقولهِ تعالی (فماذا بَعْدَ الحقّ الّا الضّلال [۲] )).

**ترجمه**: او دمغضوب علیهم او ضلال دا وجه هم کیدی شي چې دمغضوب علیهم نه مطلق ګناهګاران واخلی او دضآلین نه جاهلان بالله مراد شي ځکه چې منعم علیه هغه څوک وي چې توفیق ورکړی شوي وي د جمع په منځ د معرف الحق (علم په حق) لذات الحق اوتوفیق ورکړی شوی وي د خیر لپاره د عمل په دې نو اوس به د منعم علیهم مقابل هغه څوک دي چې یو د دوه قوتونو ته ئې خلل رسیدلی وي چې قوت عاقله او قوت عامله ده نو مخل بالعمل فاسق وي مغضوب علیه وي د دې قول دالله جلّ جلاله په وجه وغضب الله علیه او مخل د عقل و علم جاهل اوضال وي له وجې د دې قول دالله جلّ جلاله فماذا بعد الحق الّا الضّلال دحق نه روسته نه وو مګر ګمراه.

**تشریح**: دا توجیه د تفسیرکبیر دی هغه دا چې انعمت علیهم نه مراد باعمله علماءدي او غیر المغضوب علیهم او ضآلین ئې مقابل دی نو په دوی کې به دواړه یعنې علم اوعمل نه وي راجمع شوی مغضوب علیهم نه بې عمله علماء مراد دی (علم شته عمل نشته) اوضآلین نه به جاهلان مرادوي (عمل شته علم نشته) اومعرفة الحق لذاته نه به مراد قوت نظري دي و الخیرللعمل نه به مراد قوت عمل وي.

یو علم نظري دی او بل علم بالاحکام دی علم نظري لکه الله احد ، الله الصمد ، الرسول الحق، القرأن حق او دا علم له جملې د عقایدو څخه دی او د کوم عمل لپاره وسیله هم نه دی بلکې دا مقصود باالذات وي او علم بالاحکام مقصود بالذات نه وي او دا وسیله وي لپاره د عمل لکه فقهي احکام.

**تفسیربیضاوي**: ( وَقرءَ وَلاَ (الّاالضّآلین) بِالهمزة عَلَی اللُّغة منْ جَدَّ فی الهَربِ مِن التقَاءِ السّاکنینِ)

---

(۱):- سورة النساء. آیة (۹۳).

(۲) سورة یونس: آیة (۳۲).

**ترجمه**: اولوستلی شوی ضآلین په همزې سره په لغت د هغه چاچې ډيرکوشش کوي په منډد کې د التقاء الساکنين څخه.

**تشريح**: په الضآلين کې التقاء الساکنين على غيرحده دی او على غير حده ديته وائي چې اول حرف ساکن مده يا ياء د تصغير وي لکه الف وي او دوهم حرف به هم ساکن مدغم مشدد وي لکه لين کې نوځوک چې التقاء دساکنينو نه مني دوی اول حرف چې الف دی متحرک کوي اوځوک ئې چې مني هغوئې ئې ساکن وائي.

التقاء الساکنين په دوه قسمه ده على حده او على غير حده على حده ديته وايي چې درې شرطونه پکې وي (۱) اول ساکن به مده او يا يا د تصغير وي (۲) دويم ساکن به مدغم وي (۳) دواړه به په يوه کلمه کې وي لکه احمار او غير حده د دې خلاف ده

## (بحث آمين)

**تفسيربيضاوي**: (آمين اِسم الفِعل الّذِى هُو اسْتجبْ وَ عنْ ابنِ عبّاسِ رضى الله عنه قَال سَأَلتُ رَسول الله صلّى الله عليه وسلّم عَن مَعنَاه فقَال:اِفعل[1] بُنى عَلى الفَتح كأَينَ لِالتقاءِالساكنَين وَجاءَ مدّ أَلفهُ وَقَصره قَالَ ويَرحَمْ الله عبْدًا قَال امِينا وَقَالَ امِين فَزادَ اللّهُ مَابَيننا بُعدًا).

**ترجمه**: آمين اسم فعل په معنی د استجب دعائې سره دی ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) نه نقل دي چې ما د نبی عليه السّلام نه د دې د معنی پوښتنه وکړه نو وي فرمايل چې فعل دی په فتحې سره مبني کړی شوی دی لکه آين له وجې د دفع د التقاءالساکنين الف مده او الف مقصوره دواړو سره راغلی دی. الله جلّ جلاله دي رحم وکړي په هغه بنده چې زما په دعا آمين وائي او الله جلّ جلاله دې زيات کړي هغه لرې والیٔ چې کوم زما او د ده په منځ کې راغلی امين الله دي دادعا زمونږ قبوله کړي.

**تشريح**: له دې ځايه مصنف درې بحثونه ذکر کوني لومړی د امين متعلق نحوي بحث دويم د امين فقهي حيثيت دريم د سورت فاتحې فضايل.

---

(۱):- تفسير ابن كثير ۱ / (۵۵) ، وكذا فى تفسيرالدارالمنثور : ۱ / (٤٤).

لوموی بحث : آمين اسم دی او فعل ئې استجب دی دا له روايت د ابن عباسؓ رضي الله عنه څخه څرګند دہ چې رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د امين معنا په افعل سره وکړه يعني افعل فعل الاستجابة او جوهري رحمه الله فرمائي معنی ئې فليکن دی امام ترمذي رحمه الله وائي معنی د آمين لاتخيب رجاءنا دی او اکثر مفسيرين او اهل لغت وائي معنی ئې اللهم استجب لنا دی [1] او دغه ډول امام مجاهد رحمه الله فرمائي چې آمين دالله جل جلاله له نومونو څخه يو نوم دی [2].

**سوال**: د استجب معنی خو مقترنه دی تر احد الازمنة الثلاثة پورې او اسم خو مقترن نه وي تر ازمنه ثلاثه وو پورې پکار دی چې آمين فعل شي؟

**جواب**: يو د امين معنی دی بل ئې د معنی معنی دی د امين معنی مقترنه نه دی تر ازمنه ثلاثه پورې بلکه د استجب معنی مقترنه دی تر ازمنه ثلاثه پورې خپله استجب نه دی مقترن.

**سوال**: تا وويل چې امين مبنی دی او اصل په بناء کې سکون دی پکاردی چې امين ئې ساکن ويلی وائی ؟

**جواب**: هو ! اصل په بنا کې سکون دی خو دا مبنی په فتحې شو له وجې د التقاء ساکنينو په مابين د ياء او نون کې.

( قَالَ وَيَرحَمُ الله عبْدًا قَال امِينا ) په آمين کې دوه لغته دي يو الف ممدود دی لکه په دې شعر د مجنون کې بل الف مقصوره دی لحو الف ممدودی فصيح دی له الف مقصوره څخه داد مجنون [3] حکايت کوي چې په ليلی عاشق وو نو داسې عاشق وو چې چائې پلارته وويل چې زوئ دې ديوانه دی حرم ته ئې بوزه پلار ئې کعبې شريفې ته بوتلو چې الله ئې د ليلی نه زړه موړ کړي او

---

(۱):- تفسير ابن کثير : ۱ / (۵۵) ، وتفسير قرطبي : ۱/ (۵٦) .

(۲):- تفسير زادالمسير: ۱ / (۲۲).

(۳):- دمجنون دپلار نوم ملوح بن مزاحم دی په مجنون اوليل باندې مشهوررو نوموړي دعربو دنجد دقبيلې اوسيدونکی وو په کال (٤؟ هجری کې زبږيدلی وو اوپه (٦٨ هجري /٦٨٨ م) کې وفات شو دمروان بن حاکم په زمانه کې کوچنی وو اودوخت وتلی شاعررو ابن جوزي په خپل کتاب ذم الهوی (٢٩٤) کې دی چې دليل په باره کې دوه قوله دي (۱) نوم ئې ليل بنت مهدي وو (۲) ليل بنت ورد اوربيعه قبيلې څخه وو خو شعراء العصر الاموي ليکي چې ليل دمجنون دتره لور وه دوی دنجد دهوازن قبيلې اوسيدونکې وه په کال (۲۸ هجر / ٦٤٨ م ) کې وزيږيده اونه تکړه شاعررو چې دديوان ليل المرية په نوم دشعررونو کتاب هم نري.

ورته ئې وویل چې الله جلّ جلاله ته سوال وکړه چې الله زما زړه د لیلی د محبت نه موړ کړي کله چې د کعبې پردو پورې ونښتو نو وویل:

یاربّ انّك ذومنّ ومغفرة==بیت بعافیة لیل المجیبنا الذاکرین الهوی من بعد مارقدوا== الساقطین علی الایدي المکبینا==﴿١﴾ باتت اقود اوسار الرکب مزلجا==ومالا وانس فی فکر کسارینا== کان ریقتها مسک علی ضرب شیب باصهب من بیع الشآمین.

پلار یې ورته وویل چې داسې ووایه: اللّٰهُمّ ارحمني من لیلی وحبها. ای الله ماته د دلیلی د محبت په زایله کولو سره راحت راکړه. نو مجنون د دې په ځای دا شعر وویلې

یاربِّ لاتسلبني حبها ابداً
ویرحم الله عبداً قال امینا

اې الله د لیلی محبت زما د زړه مه زائلوه همیشه او الله دې رحم وکړي په هغه بنده چې زما په دعا آمین وائې نو دلته ئې آمین ممدود او ویلی.

( وَقَالَ امِین فَزادَ اللّهُ مَابَیننا بُعدًا) دلته دا شعر شاهد دی چې امین مقصوردی دا هغه دوهم لغات دی لکه شاعر وائې:

تباعدعني فطحل اذا دعوته ..... امین فزاد الله مابیننا بُعدًا[٢].

جبیر د تره زوی فطحل نه د اوښ درخواست وکړو هغه اوښ ورنه کړو نو دا شعر یې وویلو د شعر معنا داده: کله چې ما له فطحل نه اوښان او غوښتل نو فطحل رانه ځان لرې کړ الله دې زیات کړي هغه لریوالی چې زما او د ده په مینځ دی امین الله دې دا دوعا قبوله کړي.

**تفسیربیضاوي:** ( وَلَیس مِنَ القُرآن وِفَاقًا لَکنْ یُسَنّ خَتمُ السُّورَة بِه لِقَولهِ علیه الصّلوة والسّلام عَلّمَنی جِبرِیلُ آمین عِندَ فَراغی مِن قِرأئتِ الفَاتحَه وَقالَ اِنّه کَالخَتمِ عَلی الکِتابِ وَفی مَعناهُ قول عَلي رضی الله تعالی عنهُ امِین

(١) التعلیق علی تفسیر الکشاف الزمخشري: ١ / ١٢٤. وحاشیة الشهاب علی البیضاوی: ١ / ٢٢٨.

(٢): بیت جبیر بن الاضبط المشوف المعلم ١ / ٧٧٩.

خَاتم رَبّ العَالِمين [۱] خَتمَ بِه دُعاء عَبدهُ يَقولهُ الاِمام وَيُجهَربِهِ فى الجَهرِيةِ لمَارُوى عن وَائل بن حُجَر أَنّه عليه الصّلوة والسّلام كَان اِذا قَرأَ وَلَاالضَّآلِّين قَال آمِين وَرفعَ بِها صَوتهُ [۲])

**ترجمه**: او امين د قرآن څخه نه دې په اتفاق د علماء سره. ليکن د دې سورت په ختميدو سره د امين ويل سنت دي له وجې د دې قول د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ) چې تعليم را کړ ماته جبريل (عَلَيهِ السَّلَامُ) په ويلو د امين په وخت د فراغت کې له قرائت د سورت فاتحې نه او جبريل ويل چې امين داسې دى لکه په کتاب باندې مهر لګول او په معنى د مهر دى له وجې د دې قول د على (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) امين د الله جلّ جلاله له طرفه مهر دى د دغه امين په وجه د بنده په دعا مهر لګوي امام به ئې په جهري لمونځ کې په جهر سره وائې لکه د دغه شان روايت د وائل ابن حجر (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) نه شوى دى چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ) به کله ولاالضّالين ولوست نو امين به ئې ويلو او خپل اواز به ئې اوچتولو.

**تشريح**: دويم بحث: د امين فقهي حيثيت : امين ويل روسته له سورت فاتحې نه سنت دى برابره خبره ده په لمانځه کې وي او که بغير له لمانځه څخه وي بيا محشي په حديث د حضرت على (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) باندې رد کړى چې دا حديث موضوعي دى په کتبو د احاديثو کې نشته امام جلال الدّين السيوطى رحمه الله هم وائي چې له على (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) دا حديث نه دى ثابت [۳] قاضي بيضاوي رحمه الله اکثره احاديث موضوعي يا ضعيف راوړي ځکه دا تفسير کې امام دى نه په فن د احاديثو کې او وائې امين به په زوره وائې په هغه ځايو کې چې په زوره لوستل کيږي دا مسئله اختلافيه دى په احاديثو کې تعارض دى کله چې په نصوصو کې تعارض راشي نو مسئله بيا اجتهادي شي او په مسئله اجتهادي کې مجتهد ته رجوع کيږي نو مجتهد به يا ترجيح کوي يا به تطبيق کوي يا به نسخه کوي يا به توقوف کوي نو امام

(۱):-عن ابي هريرة رضى الله عنه انّ رسول لله صلّى الله عليه وسلّم قال امين خاتم ربّ العالمين على عباده المؤمنين تفسير الدرالمنثور واخرجه الطبراني في الدّعاء : ۲۱۹ قال النسائى والطبرانى متروک.

(۲):-رواه سنن ابي داود :رقم الحديث (۹۳۲) والترمذي رقم الحديث(۲٤۸) واحمد من طريق الثوري عن سلمة بن کهيل عن ابي العنبس عن وايل ابن حجر وصححه البيهقي والحافظ في تلخيص :۶۳۷/۱ رواه درالقطنى ابن کثير.

(۳):- خو طبراني په دعاکې ذکرکړي او ابن عدي په کامل او ابن مردوية په خپل تفسيرکې په سندضعيف سره نسائي اوطبراني وائي چې داحديث متروک ده ځکه په سندکې اسماعيل بن يعلى الثقفي دى (ميزان اعتدال )

صاحب رحمه الله ترجیح کوي امین سرّي راجح ګرځوي په جهري [۱] باندې او امام شافعي رحمه الله فرمائي چې امام به ئې بالجهر وائي او مقتدي به ئې بالسر وائي دا د امام شافعي قول جدید دی او قول قدیم کې د مقتدي او امام لپاره جهر غوره دی [۲] او امام مالک رحمه الله فرمائي چې امام به امین بالکل نه وائي او مقتدي به ئې بالسّر وائي [۳] او امام احمد رحمه الله فرمائي چې امام او مقتدي دواړه به ئې بالجهر وائي نو د جمهورو په نزد امین بالسّر بهتر شو.

او د وهابیانو امین په احادیثو نه دی بناء ځکه هغوئ نه مجتهدین دي او نه د مجتهدینو تقلید کوي بلکه د هغوئ امین بالشر دی او حدیث د وائل ابن حجر (رضي الله عنه) د شوافعو لپاره دلیل نشي کیدی ځکه د وائل ابن حجر (رضي الله عنه) قول په احقاق الحق کې ذکردی هغه فرمائي چې امین بالجهر رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په دي لمونځونو کې ویلی بیا وائي: ما أوراه الا لیعلمنا. زما پرې بل ګمان نه دې مګر زمونږ د تعلیم لپاره ئې ویلي.

اوبل په حدیث کې اضطراب دی په صحیح حدیث کې ومدّ بها صوته دی او مدّ نه بالقصر او بالمدّ معنی مراده دی او بل دا چې امین دعا دی او اصل په دعا کې اخفاء دی لکه الله جلّ جلاله فرمائي: (أُدْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَة).

**تفسیربیضاوي**: ( وَعَن أَبِي حَنِيفَةَ رحِمه اللهُ أَنَّهُ لَايَقولهُ وَالمَشهُورُ عنْه أَنَّه يُخيفُه كَمَا رَواه عَبدالله بن مُغَفَّل رَضى الله عنه وَأنس رضى الله عَنهُ).

**ترجمه**: او امام ابوحنیفة رحمه الله نه نقل دي چې ده به امین نه ویلو او حکم به ئې کولو چې مقتدي دې امین نه وائي لکن مشهور قول د امام ابوحنیفة رحمه الله څخه دا دی چې امام او مقتدي به امین پټ وائي لکه دا نقل دي له عبدالله بن مغفل [۴] (رضي الله عنه) او انس (رضي الله عنه) څخه.

---

(۱):- کتاب الآثار: (۲۳).

(۲):- احقاق الحق: ۱ / ۳۴۷.

(۳):- المغني: ۳ / ۱۵۸. وعارضة الاحوذي: ۳ / ۵۰۰، والمدونة الکبری: ۱ / ۷۱.

(٤) حفاظ د احادیثو فرمائي چې دا حدیث په دغې طریقې نشته خو امام طبراني په معجم الکبیر کې ابي وائل نه روایت کړی عن ابي وائل کان علي او عبدالله بن مسعود لایجهران بالتأمین (حاشیة الشهاب علی تفسیر بیضاوی: ۱ / ۲۳۱).

**تفسيربيضاوي**: ( والمأموم يؤَمِّن معهُ لقوله عليه السّلام اذَا قَالَ الامَام وَلاالضَالِّين فَقولُوا امِين فَانّ الملائِكة تَقولُ امِين فَمنْ وَافقَ تَأمينُه تَأمِينُ الملائِكةِ غفرلهُ مَاتقَدَمَ مِن ذَنْبه (١) )

**ترجمه**: اومقتدي به د امام سره امين وائي له وجې د دې قول د رسول الله صلى الله عليه وسلم كله چې امام ولاالضآلين او وائي نو تاسو امين ووائى ځكه چې د چا امين د ملائكو د امين سره يو ځاى شي نو هغه ته مخكې ټول ګناهونه بخښل كيږي.

**تشريح**: د ملائكو په امين كې درې صفته دي (١) د ملائكو امين چا نه دې اوريدلى نو په كيف كې د احنافو امين د ملائكو د امين سره برابر دى.

(٢) د ملائكي امين د ولاالضآلين نه روسته دى نو د احنافو امين هم د امام د ولاالضالين نه روسته دى خلافا للوهابيين نو په دې وخت كې هم ورسره برابردى (٣) د ملايكو امين غفرله ماتقدم من ذنبه دى او بل له دې حديث څخه دا خبره واضحه شوه چې رسول الله (صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ) د امام او مقتدي ترمنځ دوه كاره تقسيم كړي دي د امام وظيفه دا دى چې دا به ولا الضالين وايي او مقتدي به امين واويي.

دغه راز په مصنف عبد الرزاق كې روايت دي:

عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ حَمَّادٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ: أَرْبَعٌ يُخْفِيهُنَّ الْإِمَامُ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، وَالِاسْتِعَاذَةِ، وَآمِينَ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ قَالَ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (٢)

څلور شيان به امام پټ وايي يو بسم الله دويم اعوذ بالله دريم امين او څلورم ربنا لک الحمد د زيات وضاحت لپاره احقاق الحق ته رجوع وكړى هلته د امين په اړه ښه پوره بحث شوى او په لسګونو داسې دلائل ذكر شوي چې د امين د پټ ويلو په سنت والي دلالت كوي.

---

(١):- رواه البخاري عن طريق عبدالله بن يوسف قال اخبرنا مالک عن ابن شهاب عن سعدبن المسيب وابي سلمة بن عبدالرّحمن انّهما اخبره عن ابي هريرة :(١/ ١٥٦ رقم الحديث ٧٨٠ ومسلم برقم ٤١٠ وابوداود برقم ٩٣٦ والترمذي برقم ٢٥٠.

(٢)مصنف عبد الرزاق الصنعاني (٢/ ٨٧) رقم الحديث (٢٥٩٦)-

**تفسيربيضاوي**:( وَعن أبي هرَيرة رضى الله عنه قَال لأُبِي اَلَا اُخبرُک بِسورةٍ لم يَنزل فِي التَوراةِ والانجِيلِ والقرآنَ مِثلهَا قَال قُلت بَلى يَارسولَ الله صلّى الله عليه وسلّم قَالَ وَفَاتحةُ الكتَاب انّهَا السّبع المَثانى وَالقرآن العَظيم الّذِى اوتيتَه [۱]).

**ترجمه**: له ابو هريرة (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) نه نقل دى چې يو ځل رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ابیّ ابن كعب ته او فرمايل چې زه تا د يو داسې سورت نه خبرنکړم؟ چې د اسورت په توراة ،انجيل او قرآن کې هم بل ځای دد ې په شان سورت نه دې نازل شوی ابیّ ابن كعب ورته وويل چې ولې نه ماته خبر راکړه رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمايل چې فاتحة الكتاب د مكرر لوستلو والا اووه (۷) آيتونه او دا قرآن عظيم هم دی چې ماته راکړی شوي دي.

**تشريح: دريم بحث**: د سورت فاتحې فضيلت بيا نوي له علامه زمحشري نه چا پوښتنه وکړه چې تاسو ولې د سورت فضايل د سورت په اخر کې ذکر کوئ هغه ورته وويل چې فضايل او صاف دسورت وي او اوصاف د شي له اصل شي نه روسته وي نو ځکه يې رووسته ذکر کوو او ځوک يې چې مخکې ذکر کوي هغوی يې د ترغيب لپاره ذکر کوي نو دا حديث ئې دسورت فاتحې د فضيلت لپاره راوړئ او مثاني مكرر نزول ته وائي.

**تفسيربيضاوي**: (وعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بَيْنَمَا نحن عِنْدَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جالس اذ اتاه ملک فقال أَبْشِرْ بِنُورَيْنِ أُوتِيتَهُمَا لَمْ يُؤْتَهُمَا نَبِيٌّ قَبْلَكَ: فَاتِحَةُ الْكِتَابِ، وَخَوَاتِيمُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ، لَنْ تَقْرَأَ بِحَرْفٍ مِنْهُمَا إِلَّا أُعْطِيتَهُ " [۲]).

**ترجمه**: له ابن عباس (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) ځخه نقل دي چې رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ناست وو چې يوه ملائكه راغله ورته ئې وويل چې تالره په دې دوه رڼاګانو زيردی دا رڼاګانې تاته درکړی شوي دي چې داکوم نبي ته له تانه مخکې نه دي ورکړی شوي چې فاتحةالكتاب دی او خواتم د سورت بقرې دي ته د دغې نه کوم حرف نه لولې لکن د هرحرف به درته ثواب درکولی شي.

---

(۱):- اخرجه الترمذي : ۲/ ۲٤ برقم ۲۸۷۵ . عن طريق قتيبة . . . عن ابي هريرة والنسائی : ۲ / ۱۳۹ وصححه ابن خزيمة وابن حبان والحاكم : ۱ / ٥٧ ووافقه الذهبي.

(۲):- رواه المسلم : ۱ / ۱۹۸ رقم الحديث ۸۰٦ صحيح مسلم (۱/ ٥٥٤) حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، وَأَحْمَدُ بْنُ جَوَّاسٍ الْحَنَفِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ رُزَيْقٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

**تفسیربیضاوي**: (وعَن حُذیفَةَ ابنُ الیَمَان رضی الله عنه انّ رسُول الله صلّی الله
17 علیه وسلّم قَال انّ القَوم لَیبعث الله علَیهم العَذابَ حتمًا مقْضیًا فَیقرأ صُبیّ من
صُبیانِهم فِی الکِتاب أَلحمدللهِ رَبّ العَالمِینَ فَیسمعُه الله تعالی فَیرْفعُ عنهمْ بذَالک
العَذابَ ارْبعِین سنةً).

**ترجمه**: له حضرت حذیفة (رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ) څخه نقل دي چې رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمایلي دي چې یو قوم وه چې الله جلّ جلاله په دوی د عذاب لیږلو لازمًا او حتمًا فیصله کړې وه نو د دغه قوم د ماشومانو څخه یو ماشوم وه چې په مکتب (مدرسه) کې ئې الحمدلله رب العالمین اولوستل نو الله جلّ جلاله واوریدل نو په دې سره الله جلّ جلاله د دغې قوم نه ترڅلویښت کالو پورې عذاب لرې کړ.

**تشریح**: حافظ عراقي رحمه الله وائي دا حدیث موضوعي دی او امام سیوطي رحمه الله وایي: لا اصل له او ځینو علماء وو پرې د ضعیف قول کړی [1].

دغه راز له عبدالملک بن عمیر رضي الله عنه څخه مرسلا روایت دی چې رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وفرمایل چې فاتحة الکتاب د هر مرض لپاره شفآء دی دا حدیث دارمي او امام بیهقي په شعب الایمان کې په صحیح سند سره روایت کړی دی.

سعید بن العلي (رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ) څخه امام بخاري، امام بیهقي او حاکم روایت کوي چې له ټولونه لوی سورته په اعتبار د ثواب یا په اعتبار د قدر سورت فاتحه دی.

امام بخاري په حپل سند سره له ابن عباس (رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ) څخه ورایت کوي چې فاتحه د قرأن د دوه ثلثو برابره دی.

(۱):- حاشیة الشهاب علی تفسیرالبیضاوی: ۱ / ۲۳۵ وکشف الخفاء ومزیل الإلباس عما اشتهر من الأحادیث علی ألسنة الناس لإسماعیل بن محمد العجلوني الجراحي (المتوفى: ۱۱۶۲هـ)

وقال ابن حجر رحمه الله فی تخریج الکشاف: ۱ / ۱۹ اخرجه الثعلبي من روایت ابي معاویة عن ابي مالک الاشجعي عن ربعي عنه الّا انّ من دون ابی معاویة من لایحتج به. وله شاهد من مسند والدارمی عن ثابت بن عجلان قال کان یقال انّ الله لیرید العذاب باهل الارض فاذا سمع تعلیم الصبیان بالحکمة صرف ذلک عنهم، یعني القرآن

## سورت البقرة

بسم الله الرحمن الرحيم

الٓمٓ (۱).

**تفسيربيضاوي**: (الٓمٓ ) وَسائِرالأَلفاظِ الّتى يَتهجأبِها أَسمآء مُسمياتِها الحُروف الّتى رُكبَت مِنها الكَلم لدُخولهَا فى حَد الاسْم وَاعتِوار مَايختَص بِهِ من التَّعريف والتَّنكِير وَالجَمع والتَّصغيرِ ونَحو ذَالک علَيها وبِه صَرَّح الخَليل وَابُو على).

**ترجمه**: الف ،لام، ميم او ټول هغه الفاظ چې هغې سره شمار کيدلی شي اسمآء دي (حروف نه دي) د دې مسميات هغه حروف دي چې کلمات ورنه جوړيږي له وجې د دخول په تعريف د اسم کې او بل له دې وجې اسمآء دي چې پې درپې هغه معاني ورباندې واقع کيږي چې کومې د اسم پورې خاص دي چې تعريف ،تنکير ،تصغير ،جمع وغيرها دي او خليل او ابو علي په دې تصريح کړې" چې دا اسمآء دي.

## (بحث د حروفو مقطعاتو)

**تشريح**: قاضي بيضاوي رحمه الله له دې ځای ځخه د سورت بقرې تفسير شروع کوي او دې سورت ته بقره ولې وايي علماء خو فرمايي چې د سورتونو نومونه توقيفي دي خو د دې سورت يوه وجه دا هم دی چې په دې سورت کې د بني اسرايلو د بقرې يوه اهمه واقعه ذکر ده.

قاضي صيب دلته درې بحثونه کوي اول نحوي بحث دويم د رسم الخط بحث دريم الفاظ تهجي د سورتونو په سرونو کې ولې ذکر کولی شي د تهجي خپله معنی تعداد دی دا درې حروف هم دي او اسمآء هم دي ځکه چې تعريف د اسم ورباندې صادق دی الف اسم دی او مسمّی ئې ، «آ»، دی او لام اسم دی مسمّی ئې، «لا»، ميم اسم دی مسمّی ئې ، «ما»، دی اسماء بيل دي او مسمّيات ئې بيل دي ليکن اسمآء کې حروف زيات دي الف کې يوه همزه بل لام او بل فاء دی دغه شان نور هم دي.

د اسميت د تائيد لپاره يې د دوه لويو امامانو قولونه ذکر کړي دي يو امام خليل نحوي دی او بل ابو علي فارسي دی.

یاده دې وي چې یو ابو علي البصري دی کوم چې په اوو مشهورو قاریانو کې یو قاري دی او د امام خلیل شاګرد دی او بل ابو علي الفارسي دی: کوم تذکره چې دلته شوې دی.

اعتوار معنی ده پی در پی د معانیو راتلل مثلًا الف نکره دی او مکبر دی او الف معرفه ده او أُلَيف ئې تصغیر شو.

زده کړه دا خبره چې حروف په دوه قسمه دي: (۱) حروف معاني (۲) حروف مباني، حروف معاني هغه دې چې د اسم او په فعل په مقابل کې راځي او حروف مباني هغه حروف دي چې کلمات ورڅخه جوړېږي خو خپله کلمه نه وي لکه په زید کې ز، ی، او دال حروف مباني مستقل نوم دی د کلمې د حروفو د شمیرلو په وخت کې هم د دې اسماء و په زریعه له دغو حروفو نه تعبیر کولی شي په همدې وجه دېته الفاظ تهجي هم ویلی شي لکه په ضرب کې ض، ر، ب حروف مباني دي او ضاد، را، باء حروف تهجي دي حروف مباني خو حروف دي خو د هغې د اسماء یعنې د الفاظ تهجي باره کې اختلاف دی ځینې علماء دېته هم حروف وایي خو قاضي بیضاوي رحمه الله ورته اسماء وایي ځکه دا فرمایي چې د اسم کیدو لپاره درې شیان ضروري دي (۱) د اسم تعریف پرې صادقیږي (۲) د اسم علامې پکې موجودې وي (۳) د فعل او حرف نفي ترینه شوي وي او الفاظ تهجي کې دا درېواړه شیان موجود وي او د اسمیت د تائید لپاره یې د دوه لویو امامانو قول په دلیل کې پیش کړ چې یو امام خلیل او بل ابو علي فارسي رحمهما الله دي دوی دواړو هم الفاظو تهجي ته د اسمیت قایل دي.

**تفسیر بیضاوي:** ( وَما رُوِى ابنُ مسعُود رضى الله عنه أَنّه عليه الصّلوة والسّلام قَالَ مَن قَرأَ حَرفًا مِن كتابِ اللهِ فَلَهُ حسَنةٌ وَالحسنةُ بِعشرتِ أَمثالهَا لَا أَقولُ الٓمٓ حَرفٌ بل الِفٌ حرفٌ ولَامٌ حرفٌ وَمِيم حرفٌ [1] فَالمُرادُ به غَيرالمَعنى الّذِى اِصطلَح علَيه فَانَّ تَخصِيْصهُ بِهِ عُرف مجدَّد بَل لمَعنى اللُّغوى ولَعلّهُ سمَّاهُ بِاسم مَدْلولِهِ وَلَمّاكانَت مُسمَّياتها حروفًا وحدانًا وَهى مُركبةٌ صدَرَتْ بها لِيكونَ تَأدِيتها بِالمُسمَّى اوَّل مَايقْرَع السَّمعُ).

---

(۱):- رواه جامع الترمذي : ۲ / ۵٦ رقم الحديث ۲۹۱۰ والبخاري في تاريخه : ۱ / ۲۱٦ واخرجه الدارمي : ۲ / ٤۲۹ من وجه آخر من حديث ابن مسعود موقوفًا.

**ترجمه**: او هغه چې عبدالله بن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه روایت دی چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دا فرمایلي دي چې څوک یو حرف د کتاب الله (قرآن) نه ولولي نو د هغه لپاره یوه نیکی ده او یوه نیکی په لس چنده حسابیږي زه دانه وایم چې الٓم یو حرف دی بلکه الف یو حرف دی لام بل حرف دی او میم بل حرف دی نو مراد په حروفو سره بغیر د هغې معنی دي چې کومه اصطلاحي مراد دی ځکه چې تخصیص د حرف له دغې معنا پورې نوی عرف دی بلکې مراد دلته معنا لغوي دی او شاید چې د اسم مدلول ئې مسمی کړې وي هرکله چې د دې اسمآء وو مسمّیات ځان ځان ته حروف وو او دا اسمآء مرکب دي نو په آوئلو د سورتونو کې راوړل شوي چې د ادا کونکی د مسمّیات اول تینکول د غوږونو شي.

**تشریح**: ابو عمر الدواني رحمه الله په کتاب العدد کې فرمائي د دغو حروفو لپاره یو تلفظ دی او بل کتابت دی ، په تلفظ کې د الف درې حروف دي او کتابت کې یو حرف دی نو د تلفظ په اعتبار په الف کې دیرش (۳۰) نیکی دي او د کتابت په اعتبار لس نیکی دي نو چې کله ئې وویل الٓم درې حروفه دي معلومه شو چې دلته د کتابت اعتبار دی او صاحب د مصاعد النظر فرمائي چې هرچا ته د خپل عمل اجر ورکول کیږی قاري ته د قرائت اجر دی بیا الفاظ مکتوب وي او که نه وي، خو ده پرې تلفظ کړي نو قاري الف کې په درې حروفو تلفظ کوي نو دیرش (۳۰) نیکی دي په مجموعه الٓم کې نهه (۹) حروف دي او نوي نیکی دي[1] دلته اعتراض وارديږي هغه دا

**سوال**: تا خو وویل چې دا اسماء دي حروف نه دي او د ابن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) په حدیث کې راغلي چې چا یو حرف د قرآن ولوست هغه لره لس نیکی دي نو په حدیث کې حروف ذکر دي نو معلومه شوه چې دا اسمآء نه دي د مصنف قول له حدیث سره په ټکر کې دی؟

(۱) **جواب**: دلته خاص اصطلاح د نحاتو مراد دی ځکې په ابتداء د اسلام کې خو د اسم ، فعل او حرف و غیر اصطلاحات نه وو نو ابن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) حرف په معنی لغوي سره اخیستې دی اصل حرف لغت کې طرف ته وائي او په حدیث کې هم طرف مراد دی ای الف طرف لام طرف میم طرف.

---

(۱):- حاشية الشهاب على تفسير البيضاوي: ۱ / ۲٤۰.

(۲)**جواب**: په حديث کې يې دال مسمی کړی دی په اسم د مدلول سره .اصل کې مدلول مراد دی ده چې ويلي الف حرفٌ مطلب دا چې الف دالٌ على حرف اولام دال على حرف ميم دال على حرف.

**دويم بحث**: (وَلَمَّا كانَت مُسمَّياتهَا) سره د رسم الخط بحث شروع کوي :

په اوآئلو د سورتونو کې حروف مقطعات ذکر دي چې الف حساب کړی نو ټول نه ويشت (۲۹) حروف دي او که الف نه حسابوي نو اته ويشت (۲۸) دي دا دابو العباس قول دی ، الله جلّ جلاله د دې اته ويشت حروفو نه نصف راټول کړي (يعنې هغه مقطعات چې قرآن بعير له تکراره ذکر دي ) له (الٓمّ ) نه «نون» پورې څوارلس (۱۴) حروف دي بيائې جدا جدا ځايو کې راوړي او دا حروف مقطعه په نهه ويشت (۲۹) سورتونو کې ذکر دي په دې کې اعجاز دا دی چې د هرې نوع د حروفو نه په دې څوارلسو کې نصف حروف موجود دي نو داسې الفاظ ذکر کول چې په دې ټولو انواعو د حروفو مشتمل وي د انسان له وس نه وتلی خبره ده.

او بله دا چې حروف مقطعه په اته (۸) سورتونو کې (الٓمّ) ذکردی په پنځه سورتونو کې (الر) ذکردی يو سورت کې (يس) ذکردی يو سورت کې (کهيعص) ذکردی يو سورت کې (طه) ذکر دي دوه سورتونو کې (طسم) ذکردی يو سورت کې (طس) ذکردی يو سورت کې (ص) ذکردی او په شپږو سورتونو کې (حم) ذکردی يو سورت کې (حم عسق ) ذکردی يو سورت کې (ق) ذکردی اوپه يو سورت کې (ن) ذکردی نو مسمّيات څوارلس دي او ټول اسمآء شپږ اويا (۷۶) دي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَاستُعيرتِ الهَمزةُ مكانَ الالِفِ لِتعَذُّرالابتِداءِ بهَا مَالمْ تَلها العوَامل مُوقُوفة خَاليَة عَن الاعْرابِ لَفقدِ مُوجبه وَمُقتَضيهِ لَكنّها قَابِلةٌ ايّاهُ ومعرَضَةٌ لهُ اِذَا لمْ تَناسب مُبنى الأَصلِ وَلذَلك قِيل(ص) و(ق) مَجموعًا فِيهما بَين السَّاكنَينِ وَلمْ يُعامِل مَعامَلة أَينَ وَهؤلآءِ).

**ترجمه**: او استعارې سره په ځای د الف همزه اخستل شوي دی ځکه (الف ساکن وضعي دی) چې د تلفظ ابتداء ورباندې نه کيږي او له اسمآء و پورې چې ترڅو عوامل قائم شوي نه وي په درجه عدد کې دي اعراب ئې موقوف دی د اعراب نه خالي وي دوجې د عدم موجب او مقتضی د

اعراب نه لکن قبلونکي د اعراب دي اعراب ورته عارض کيږي چې کله ئې مبنی الاصل سره مناسبت نه وي له دې وجې ويلی شي صاد او قاف په دې حال کې چې په دوی کې ساکنين جمع دي او دوی سره د اين او هؤلآء عمل ونشو (ځکه هغې کې سکون البناء دی).

**تشريح**: دريم بحث: له دې ځايه نحوي بحث او تحقيق شرع کوي او په دې کې درې ټکي زده کړئ (۱) دا چې د مبني په تعريف کې د جمهورو او ابن حاجب رحمه الله اختلاف دی ابن حاجب د مبنی تعريف داسې کوي مَانَاسَب مبنی الاصل او وقع غير مرکب چې مناسبت يې د مبنی اصل سره وي او غير مرکب واقع شوی وي.

جمهور: داسې تعريف کوي مَانَاسب مبنی الاصل چې مناسبت يې د مبنی الاصل سره وي او د معرب په تعريف کې ئې هم اختلاف دی ابن حاجب رحمه الله ئې داسې تعريف کوي المرکب الذی لم يشبه مبنی الاصل چې مرکب به وي او مبنی الاصل سره به مشابه هم نه وي.

**جمهور**: وايي المعرب الذي لم يشبه مبني الاصل.

اختلاف دا دی چې دابن حاجب په نزد اعراب بالفعل د معرب والي لپاره ضروري دی او جمهور فرمائي چې اعراب بالفعل د معرب والي لپاره نه دی ضروري نو د جمهورو په مذهب معرب عام دی او د ابن حاجب رحمه الله په مذهب معرب خاص دی نو زيد د ابن حاجب رحمه الله په نزد مبني دی ځکه د معرب تعريف پرې نه دی صادق چې المرکب الذی دی او دا مرکب له عامل سره نه دی اګرکه مشابه مبنی اصل سره نه ده او د مبنی تعريف پرې صادق دی چې واقع غيرمرکب دی او د جمهورو په نزد دا معرب دی ځکه د مبنی تعريف پرې صادق نه دی چې ماناسب مبنی الاصل دی او تعريف د معرب پرې صادق دی چې لم يشبه مبنی الاصل دی.

بل سکون دی سکون هم په دوه قسمه دی (۱) سکون الوقف دی (۲) سکون البناء دی په سکون البناء کې اجتماع د ساکنينو ناجائز دی لکه اين کې نون ته ئې فتحه ورکوو له وجې د اجتماع ساکنينو او هؤلآء کې همزې ته کسره ورکوو له وجې د اجتماع ساکنين او په سکون الوقف کې التقاء ساکنين جائز دی لکه الحمد لله رب العالمين دلته نون باندې وقف کوو نو ساکن کوو ئې

او يا هم ساكنه ده . سكون البناء په مبنى كې راځي او سكن الوقف په معرب كې راځي نو اوس دلته (الٓمٓ) دا د جمهورو په نزد معرب دى كه مبنى نو دا وائي چې معرب دى ځكه معرب وائې مالم يشبه مبنى الاصل او دا همداسې دى د ابن حاجب په نزد خو مبنى دى ځكه مركب له عامل سره نه دى او دا مبنى وي مذهب د جمهورو راجح ښكاري ځكه كه مبني واى بيا به يې سكون سكون البناء وو او دلته خو خلک (ص) او (ق) وائي سكون الوقف كوي اجتماع د ساكنينو راولي نومعرب شو چې دا معرب شو (الٓمٓ) هم معرب شو .

**تفسيربيضاوي**: (ثُمَّ اِنَّ مُسمّياتهَا لَمَّاكانَت عُنصَرالكَلامِ وَبسَائِطهِ الّتِي يَتَركبُ مِنها أفتُتِحتْ السُّورة بِطائِفَةِ مِنهَا أيقَاظًا لِمَنْ تُحدى بِالقرآنِ وتَنبِيهًا على أَن أَصلهُ المَتْلو عَليهِم كَلام مَنظومٍ مِمّا يُنْظمُون منْهُ كَلامهُم فَلوكَان منْ عنْدِ غَيرِاللهِ لَمَا عَجزُوا عن آخِرهِم معَ تَظَاهُرهمْ وَقُوة فصَاحتهِم عنِ الاتْيانِ بمَا يدَانيه).

**ترجمه**: بيا هر كله چې دا مسمياتو (الفاظ تهجي) اصل د كلام او هغه بسائط وو چې له هغې نه كلام مركب كيږي نو په يوې طايفې د دې حروفو سره د سورت ابتداء وكړه لپاره د بيدارولو د هغه چاچې د قرآن معارضې طلب ورنه كيدلو او لپاره د تنبه كولو چې دا لوستلى شوى كتاب منظوم كلام جوړ دى د هغه څه نه چې دوى ترينه خپل كلام جوړ كه دا كتاب د الله جلّ جلاله نه سوا د بل چا وائي نو اول نه تر اخر به سره د يو بل مدد اوسره فصاحته د دې په مثل او قريب كلام له راوړلو نه عاجز شوى نه وائې.

## د سورتونو په مقطعاتو سره په تصدير درې دلايل

**تشريح**: دريم بحث: له دې ځايه هغه دريم بحث شروع كوي : اصل كې په تفسير كشاف كې د تصدير د دې حروفو مقطعاتو لپاره درې وجې بيان كړي دي يعنې درې دلائل ئې بيان كړي.

(۱) **اول دليل**: دا چې دا (الٓمٓ) دا د دې سورت لپاره اسم دى او اسم مقدم دى په مسمّا باندې له دې وجې نه ئې په ټول سورت مقدم كړ دا دليل په كشاف كې شته دى خو مصنف نه دى رانقل كړى.

(۲) **دلیل: ایقاظ**: د مخاطب را ویښیدل دي چې دا د قرآن بنفسه جزء دی یعنې د دلایلو د اعجاز لپاره.

(۳) **دلیل: دلالت**: د هغو خلکو راپیدا رول دي چا ته چې قران د مقابلې دعوت ورکړې وه ورته وایي چې دا قرآن هم له هغو حروفو څخه جوړ دی له کومو څخه چې تاسو خپل کلام مرکب او جوړوئ نو که دا د غیر الله له طرفه وای تاسو به هم پرې راتګ کړی وای او بل دا چې داسې عجیب او غریب کلام له امي نه اوریدل هم د اعجاز دلیل دی[۱].

**تفسیربیضاوي**: (وَلِيَكونَ أَوَّل مَايقرعُ الأَسماعَ مُستقلًا بِنوعٍ مِن الاعْجازِ فإنَّ النُّطقَ بأَسماء الحُروفِ مُختص بِمن خَطّ وَ درَس فَامّا مِن الأُمّی الّذِی لَم يخَالِطِ الكتَاب فَمستَبعدٌ مُستغربٌ خارقٌ للعَادةِ كَالكتَابةِ وَالتّلاوةِ سيّمًا وقَد رَاعى فِي ذلِک مَا يُعجِز عَنه الأَديبُ الأَرِيب الفَائق فِي فَنّه وهُو أَنّه أرادَ فی هَذهِ الفَواتِح أربعَة عشَراسمًا هیَ نِصف أَسامِی حُروف المُعجَم اِن لَم يُعد فيهَا الأَلفُ حرفًا بِرأْسهَا فِی تِسع وَعشرِينَ سُورةً بِعددهَا اذَا عدَّ فيهَا الأَلفُ أَصليةُ مُشتَملة عَلی انْصافِ أَنواعِها).

**ترجمه**: اوچې اول ټکونکی د غوږونو په یوه مستقل نوعه د اعجاز شي ځکه په اسمآء الحروف خبرې کول د هغه چا لپاره وي چې څوک لیکل او لوستل کولی شي او څوک چې امّي وي او د لیکوالانو سره ئې ګډون نه وي کړی نو دا د عقل نه لرې او ډیره عجیبه خبره دی او خلاف العادت هم دی ددغه سې امّي لیکل او تلاوت کول بیا خاص کر په خپل تلفظ کې د هغه شیان لحاظ ساتل او کیفیت ساتل چې ادیب او د خپل فن ماهرو ورنه عاجز پاتې کیږي الله جلّ جلاله په اول د سورتو کې څوارلس اسمآء راوړي چې د انیمائې د اسامې د حرف المعجم دی چې الف پکې مستقل حروف حساب نکړی شي ،په نهه ویشت سورتونو کې ذکردي په عدد د دغه حروفو چې کله الف پکې حساب کړی په دې حال کې چې د اسمآء په نیمې د هرې نوعې د حروفو مشتمل دي.

**تشریح**: په دې سره هغه دویم دلیل چې دلالت دی بیانوي چې داسې عجیب او غریب کلام له

(۱):- تفسیرالکشاف: ۱ / ۳٤ لعلامه زمخشري.

امّي نه او ریدل د اعجاز دلیل دی.

**أمّي**: امّي دا معنی نه دی چې علم نه لري او پوهه ئې کمه وي بلکه امّي معنی دا چې په دنیاکې استاذ نه لري د ده استاذ الله جلّ جلاله دی دنیاکې ئې مکتب او مدرسه نه دی ویلې ورنه په اعتبار د علم سره له ټول مخلوق نه لوی عالم او خوښیار دی او دا چې په دنیا کې استاذ نه لري دا کمال دی ﴿[1]﴾.

**سوال**: متوهم دا وهم کوي چې کیدا یشي چې رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) پټ پټ له چانه لیکل او درس ویلی وي او هیڅوک دي پرې خبرنه وي؟

(۱) **جواب**: د رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په زمانه کې په ټوله جزیرة العرب کې د یولسو کسانو نه د بل هیچا هم خط نه وو یاد چې اکثره ئې په یمن کې وو نو په دومره لګ استاذانو کې به ئې پټ څنګه ویلی.

(۲) **جواب**: که ویلیٔ ئي هم وي بیا هم د (الٓمٓ) غځ ندې معجز کلام نشي پیش کولی ځکه د دې داسې عجیب رعایت شوی چې د انسان له وس او طاقت نه وتلې دی هغه دا چې ټول حروف هجاء (مقطعات) شپږ اویا (۷۶) دانې دي او له حذف د مکرراتونه روسته څوارلس پاتي کیږي او په نهه ویشت (۲۹) ځایو کې راغلي اونه ویشت (۲۹) حروف هجاء دي په نزد دجمهورو او اته ویشت (۲۸) دي په نزد ابو العباس ځکه دا یکې الف نه شماري د اته ویشتو نیمائې څوارلس دي او څوارلس مقطعات هم دي د حذف د مکرراتونه بعد او په نهه ویشت سورتونو کې راغلي ځکه د جمهورو په نزد حروف تهجي نه ویشت دي نو لشاره وشوه د ابو العباس مذهب ته چې حرف هجاء اته ویشت دي ځکه نیمائې څوارلس دي او اشاره وشوه د جمهورو مذهب ته چې حروف هجاء نه ویشت دي ځکه په نهه ویشت سورتونو کې راغلي نو دا اعجاز دی داسې نکتې د بلاغت د طاقت د بشر نه وتلی دي.

کوم حروف مقطعات چې په اوائلو د سورتونو کې ذکر دي هغه دادي: (۱) ا (۲) ل (۳) م (۴) ص (۵) ر (۶) ک (۷) ه (۸) ي (۹) س (۱۰) ط (۱۱) ع (۱۲) ح (۱۳) ق (۱۴) ن.

---

([1]):- قال علامه شهاب الدین الحنفي فی عنایة القاضي حاشیة البیضاوی: ۱ / ۲٤۹. الامّي الّذی لایقرأ ولایکتب نسبة الی الامّ لانّه خرج من بطن امّه اونسبة الی امّة العرب لانّهم کانوا کذالک او الی امّ القرآء لانّه اهلها کذلک.

## (د حروفو هجاء تقسيم)

**تفسيربيضاوي**: ( فَذكَر مِن المَهمُوسةِ وهِي مَايُضعَفُ الإعتِماد عَلى مَخْرجِهِ ويجْمعهَا (سَتَشْحَثُک خَصْفَه) نِصفهَا الحَاء والهَاء والصاذ و السِّين والكَاف وَمنَ البَواقِ المَجهُورة نِصفهَا يَجمعُهُ (لَنَّ يقْطعَ أمر).

**ترجمه**: او له حروف مهموسه وو څخه هم يکې نيم ذکر شوي او دا هغه حروف دي چې د دې په مخرج اعتماد ضعيف وي چې د دې مجموعه (ستشحثک خصفه) راځي هغه نيمايې دا دي حاء ،هاء ، صاد ، سين ، کاف ، دی له باقي حروفو چې مجهوره دي د هغې څخه هم نيم ذکر دي چې مجموعه ئې لن يقطع امر ده.

**تشريح**: دلته په حروفو کې تقسيمات کوي اول تقسيم دا چې حروف په دوه قسمه دي يو مهموسه او بل مجهوره دي.

### (۱) مهموسه:

ديته وائې چې د دوی دا اداکولو په وخت کې ساه نه بنديږي يعني ساه به پکې نه دروې مجموعه د مهموسه وو (ستشحثک خصفه) راځي له دېنه يې هم نيمايي ذکړي[1].

حاء ،هاء ، صاد ، سين ، کاف ، دی. يعنې مهموسه لس حروف دي له دغو لسو څخه يې پنځه راوړي دي.

### (۲) مجهوره:

ديته وائې چې د دوی د اداکولو په وخت کې ساه بنديږي يعنې ساه به پکې دروئ او ما سوا د مهموسه وو نه نور ټول مجهوره دي.

نو په دې حروفو کې چې او اتلو د سورو کې راغلي نيم مهموسه دي او نيم مجهوره دي او دا تقسيم په حروفو کې په اعتبار د ساه سره ده[2].

---

(۱):- جمال القرآن : (۱۲) وفوائد مكية : (۷).

(۲):- جمال القرآن : (۱۲) وفوائد مكية : (۷).

حروف مهموسه چې له دې حروف هجاء نه لږ کړی نو نونس (۱۹) پاتې کیږي د دی نصف تقریبي مراد دي ځکه دنونسو (۱۹) نصف تحقیقي نهه نیم راځي (لن يقطع امر) معنی د خپل کار فيصله کولی نشي نو د حروفو مجهوره وو څخه هم حروف مقطعات تو کې نیم راغلي.

**تفسيربيضاوي**: (وَمِن الشَّديدةِ المَثانِية المَجمُوعة فِي (أَجِدتُ طَبَقَك) أَربَعة يَجْمعُها (أُقِطك وَمنَ البَواقِي الرَّخوَة عَشرة يَجمعهَا (خُمس عَلى نَصرِهِ)

**ترجمه**: او له حروفو شدیده وو څخه چې مجموعه ئې (اجدت طبقک) دی څلور ذکردي چې جمعه ئې (اقطک) دی او د باقي حروفو شلو (۲۰) نه لس ذکر دي چې مجموعه ئې خمس على نصره دي.

**تشريح**: دا دویم تقسیم دی په حروفو کې په اعتبار د اواز سره په دې اعتبار سره حروف په دوه قسمه دي یو رخوه بل شدیده دي.

## (۱) رخوه:

هغه حروف دي چې اواز سره سره حرف هم اداکیږي یعنې داواز ودرولو ته پکې ضرورت نه وي.

## (۲) شدیده:

هغه حروف دي چې د حروف په اداکولو سره د اواز ودرولو ته پکې ضرورت وي [1] اجدت طبقک معنی دا ای أُحسْتُ حالك او اقطك معنی دا حسبک د دې هم نصف پکې راغلی چې نصف تحقیقي دی.

اته شدیده چې د حروفو هجاء وو نه لږ کړی یوویشت (۲۱) پاتې کیږي او دیته رخوه وائې د دې نصف هم پکې راغلی چې لس دي مجموعه ئي (حمس على نصره) دی او دا نصف تقریبې دي معنی یې دا شوه دا خلک په نصرت دهغې بهادران دي.

---

[1]- جمال القرآن: ۱۲ وفوائد مكيّة: ۸.

**تفسیربیضاوي**: ( وَمِن المُطبِقةِ الّتي هِي الصّاد والضاد والطاء والظاء نِصفُها وَمنَ البَواقِي المُنفَتحة نِصفُها)

**ترجمه**: او د حروفو مطبقه وو نه چې صاد ، ضاد ، طاء ، ظاء، دي نصف ذکردي او دا باقي چې منفتحه دي له هغې نههم نصف ذکردي.

**تشریح**: دا بل تقسیم دی په حروفو کې په دې اعتبار سره هم حروف په دوه قسمه دي مطبقه او منفتحه.

## (۱) مطبقه:

هغه حروف دي چې د حرف په اداکولو سره د ژبې کوم طرف له تالو سره لږيږي.

## (۲) منفتحه:

هغه حروف دي چې د حرف په ادا کولو سره د ژبې کوم طرف له تالو سره نه لږيږي د دې هم نصف پکې راغلي چې صاد او طاء ده.

مطبقه څلور دي چې دا له حروفو هجاء څخه لري کړی څلورويشت پاتي کيږي د دې نصف دولس (۱۲) دي نو دولس پکې راغلي دي.

**تفسیربیضاوي**: (وَمنَ القَلْقَلةِ وَهیَ حُروفٌ تَضْطَربُ عندَ خُروجِها وَيجْمعُها (قَد طَبَج) نِصفُها الأَقل لِقلّتِهَا وَمِن اللَّينَتَين (الْياءُ لأنّها أقلّ ثِقلًا)

**ترجمه**: او د حروفو قلقله وو نه دا هغه حروف دي چې په وخت د اداکولو کې اضطراب پیداکوي چې مجموعه ئې (قد طبج) دی د دې نه ئې نصف اقل ذکرکړي له وجې دکموالي نه او د دوه حروف لينه وو څخه ئې ياء ذکر کړي ځکه چې دا په ثقل کې (واو) نه کم دی.

**تشریح**: حروف قلقله هغه حروفو ته وائې چې په وخت د اداکولو کې اواز په تالوکې کړنګيږي چې مجموعه ئې (قد طبج) دی د دې نصف اقل راغلي چې قاف او طاء دی.

حروف لينيه په اصل کې ثلاثه لينات دي چې الف ، ياء ، او ،واو ، دی خو دا الف پکې نه حسابوي ځکه الف يابدل د واو نه وي يا بدل د ياء نه وي ورنه الف د حروفو لينيه وو څخه دی نو د دې لينتين نه ئې هم نصف راوړی چې ياء دی.

**تفسيربيضاوي**: ( وَمنَ المُستَعْليةِ وَهِىَ الّتى يَتَصعَّدالصَّوت بِها فِى الحُنُک الأعلى وَهى سَبعة القَاف والصَّاد والطَّاء والخَاء والغَين والضَّاد والظَّاء نِصفها الأَقل ومن البَواقى المُنخَفضَة نِصفها).

**ترجمه**: او د حروفو مستعليه وو نه دا هغه حروف دي چې په دې سره پاس د تالو خالي ځاى کې اواز اوچتيږي او دا اوه (٧) دي (ق) (ص) (ط) (خ) (غ) (ض) (ظ) د دې ئې هم نصف اقل ذکر کړي او د باقي منخفضه وو نه ئې نصف اکثر ذکر کړي.

**تشريح**: مستعليه وو ته مستعليه ځکه وائې چې ژبې د پاس طرف نه اداکيږي نصف اقل ئې، ق ، ص ، ط ، ده اوس چې اته ويشتو څخه اوه (٧) حروف لري کړې يويشت پاتې کيږي دا منخفضه دي د دې نصف اکثر دولس دي او دائې هم ذکرکړي دي هغه دا دي ،ا ، ل ، م ، ک ، ه ، يا ، ع ، س ، ف ، ح ، ن ، ر ، [١].

**تفسيربيضاوي**: ( وَمنَ حُروفِ البدَل وهِىَ أَحدَعشرَ عَلى مَا ذكَرَهُ سِيْبَويْه وَاخْتارهُ ابنُ جِنِّي وَيجْمعُها (أَجِدُ طَوَيتُ مِنها) السِّتّة الشَّائعَة المَشهوُرة الّتِي يَجمعُها (أَهْطَمِين).

**ترجمه**: او له حروف بدل نه چې دا يولس(١١) دي بنا په هغه طريقه چې سيبويه ذکرکړي او دا قول ابن جني هم غوره کړی چې مجموعه ئې (اجد طويت منها )دی د دې نه ئې شپږ ذکر کړي چې کوم مشهور دي چې مجموعه ئې اهطمين دی.

**تشريح**: حروف بدل هغو حروفو ته وايي چې دونورو حروفو په عوض کې دائحي علامه زمخشري د حروف بدل تعداد ديارلس ښودلی دی او مام سيبويه يولس ښودلی دی بيا دغه قول علامه ابن جني هم مختاره کړی دی.

---

(١):- جمال القرآن : (١٣) وفوائد مکيّة : (٩).

اجدځویت منها معنی دا چې ماخپل ځان اومندلو چې دیوال مې چاپیره ولو دا یولس حروف دي چې د دې نصف اکثر ئې هم ذکر کړي چې اهطمین دی. اهطمین د طئ قبیلې د دوو غرونو نوم دی .دبدل او عوض مثال یې دا دی چې همزه له واو نه بدل او عوض راغلي وي لکه اصل چې په اصل کې وصل وو . جیم له یاء مشددې نه بدل راغلی دی لکه ابوعلج په اصل کې ابوعلي و

**تفسیربیضاوي**: (وَقد زَادَ بعْضهُم سَبعةُ أُخری وَهی اللَّام فی (أصیْلَالَ) والصَّاد والزَّاء فی (صِراطَ و زَراطَ) والفَاء فی (جَدفٍ) والعَین فِی (أُعِنَ) والثَّاء فی (ثُرُوغِ الدَّلوَ) والبَاء فِی (بِاسْمِک) حتَّی صَارتْ ثَمانِیة عَشر وقَد ذکَرمنْها تِسعة السِّتَّة المَذکُورة وَاللَّام والصَّادُ والعَینْ).

**ترجمه**: او بعض حضراتو دا اوه (۷) حروف نور هم زیات کړي دي او هغه لام په اصیلال کې اوصاد او زاء په صراط او زراط کې او فاء په جدف کې اوعین په اعن کې اوثاء په ثروع الدلو کې اوباء په باسمه کې تردې چې اتلس شوي او د دې نه نهه ذکردي شپږ خو له مخکنیو ذکردي اولام اوصاد اوعین د روستنیو نه ذکر کړی شوي.

**تشریح**: اصیلال دا تصغیر داصیلا دی دلته نون په لام بدلیږي جدف کې فاء په ځای د ثاء ذکردی ای جدث (اعن) اصل کې ائن وو دوه همزې وي دویمه همزه په عین بدله شوه، ثرغ الدلو کې په ځای د فاءبدنه شوه په باسمک کې په میم بدله شوي دی او دا(ما) استفهامیه دی ای ماسمک.

## حل اللغات

| معنی | لغات | شمېره |
|---|---|---|
| قبر | جدف | ۱ |
| دبوقې طرف | ثروغ الدلو | ۲ |
| د دوو غرونو نوم دی | اهطمین | ۳ |
| اوچتیږي | یتصعد | ۴ |
| تالو | الحنک | ۵ |

**تفسیربیضاوي**: ( وَمِمَا يُدغَم فى مِثلِهِ لَايدغمُ فِى المَقارِبِ وهىَ خمْسةَ عَشرَ الهَمزة والهاء والعين والصاد والطاء والميم والياء والخاء والغين والضاد والظاء والشين والزاء والفاء والواو ونِصفُها الأقل وَمِمّا يُدغم فِيهمَا وَهى الثَلاثةُ عَشر البَاقِيه نِصفهَا الأكثر الحَاء والقاف والكاف والراء والسين واللّام والنون لمَا فِى الادْغَام مِن الخِفَّة والفَصاحَة وَمنَ الأربَعةِ الّتى لَاتُدغمُ فِيما يُقَارِبُها وَيُدغمُ فِيها مُقاربُها وهى الميم والرآء والشين والفاء نِصفُها).

**ترجمه**: او هغه حروف چې په خپل مثل کې مدغم کیږي او په مقارب کې نه مدغم کیږي هغه پنځلس حروف دي همزه ،هاء ، غین ،صاد ، طاء ، میم ، یاء ، خاء ، عین ، ضاد ، شین ، زاء ، فاء ، او واو له دې څخه ئې نصف اقل ذکرکړي او کوم حروف چې په مثل او قریب المخرج دواړو کې مدغم کیږي او هغه د یارلس باقي دي د هغې ئې نصف اکثر ذکرکړي چې ، خاء ، قاف ، کاف ، راء ، سین ، نون ، ده او په ادغام کې خفت او فصاحت وي او له هغه څلورنه چې په خپل مقارب (قریب المخرج) کې نه مدغم کیږي او مقارب په دې پکې مدغم کیږي چې هغه میم ، راء ، شین ، اوفاء ، ده د دې نه ئې نصف ذکرکړي.

**تشریح**: له دې ځانه د حروفو د اغام بحث کوي : چې بعضې حروف داسې دي چې په خپل مثل کې مدغم کیږي او په قریب المخرج کې نه مدغم کیږي ، چې تعداد یې پنځلس دی له هغې څخه نصف اقل ذکر کړي چې همزه هاء عین صاد میم طاء دی. او هغه حروف چې په مثل او قریب المخرج دواړو کې مدغم کیږي هغه د یارلس حروف دي نصف اکثر ئې ترې ذکر کړي چې حا، قاف، را ، سین، لام ، او نون دی.

(لمَا فِى الادْغَام مِن الخِفَّة والفَصاحَة) دې عبارت سره دا خبره بیانوي چې کوم حروف په مثل کې مدغم کیږي له هغې یې نصف اقل ذکر کړل او کوم چې په مثل او قریب المخرج کې مدغم کیږي له هغې یې نصف اکثر ذکر کړل د دې وجه او لامل بیانوي نو فرمایي چې دا ځکه چې د ادغام له وجې خفت او فصاحت دواړه پیدا کیږي نو په چا کې چې اسباب خفة او فصاحت زیات وي له هغو څخه یې نصف اکثر ذکر کړل او په چا کې چې کم وي له هغو څخه مو نصف اقل ذکر کړل.

او څلور حروف داسې دي چې هغه په خپل قریب المخرج کې نه مدغم کیږي خو مدغم فیه جوړیږي هغه دا دي میم، راء، شین او فاء له دې څخه یې هم نصف چې میم او راء دی ذکر کړل.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَلَمّا كَانتِ الحرُوفُ الزّلقيةَ الّتى يُعتمَدعَليها بِذَلَقِ اللّسانِ وهِىَ سِتّةٌ يَجمعُها (رُبَّ مُنَفَل) والحَلْقيَّة التى هِى الحاء والخاء والعين والغين والهاء والهمزة كثِيرةُ الوُقوعِ فى الكَلامِ ذَكر ثُلثيها وَلَمّاكَانَتا أبْنِية المِزيدِ لَاتتجَاوز عَن السُّباعِية ذَكَر الزّوائدَ العَشرة الّتى يَجْمعُها (اَليوم تُنساه) سبْعة أَحرف مِنها تَنبيهًا على ذلك وَلوْ اسْتَقرَيْت الكلمَ وَتركِيبها وَجدتَ الحُروف المَترُوكةَ مِن كُلّ جِنسٍ مكْثورةٍ بالمَذكُورةِ).

**ترجمه**: او هر کله چې حروف زلقیه هغه وو چې اداء کیږي په طرف د ژبې چې هغه شپږ حروف دي چې مجموعه (رب منفل) دی او د حروف حلقیه وو نه چې، حاء، خاء، غین، عین، هاء، همزه، دی له دې نه ئې کثیر ذکرکړي دا کثیر الوقوع وو په کلام کې له دې وجې نه یې دوه ثلثین ذکر دي او هرکله چې ابنیه (مثالونه) د مزیدو له اوو اوزانو نه زیادتیدل ذکر کړي ئې دي د هغې زوائد وعشره وو نه چې مجموعه ئې الیوم تنساه ده اوه (۷) لپاره دتنبه په دې خبره چې مزید له دې اووه (۷) زیات نه دي او که ته چیرته استقرأ د کلمو او تراکیبو د کلمو وکړې ته به حروف متروکه د هر یو جنس نه په مقابلې مذکوره وکې مغلوب (کم) بیامومې

**تشریح**: زلق طرف دژبې ته وائي منفل معنی زیات کړی شوی یعنې حروف زلقیه هغه حروف دي چې د اداکولو په وخت دژبې طرف پرې اعتماد او تکیا کوي.

او حروف زیادت هغه حروف دي چې په کلام کې زائد واقع کیږي زاید معنا دا چې په زیادت د دې حروفو سره په معنا کې زیادت نه راځي او په حذفولو سره په معنا کې نقصان نه راځي او هغه لس دي چې مجموعه ئې الیوم تنساه ده او شاعر دغه حروف په شعر کې داسې بیانوي :

هویت السمانا فشیبنني. . . وقد كنت قدمًا هويت السمانًا

(وَلواسْتَقرَيْت الكلمَ وَتركِيبها) له دې ځای څخه د هغو حروفو ترجیح بیانوي چې د سورتونو په سرونو کې ذکر شوي دي په مقابل د هغو حروفو کې چې متروک دي فرمایي چې که ته څومره

تحقیق او تفتیش وکړي په کلام او تراکیبو د کلام کې نو در معلومه به شي چې کوم حروف د سورتونو په سرونو کې نه دي ذکر شوي هغه قلیل الاستعمال دي په مقابل د هغه حروفو کې کوم ذکر شوي نو د کثرت استعمال له وجې یې دې حروفو ته ترجیح ورکړه.

**تفسیربیضاوي**: (ثمّ اِنّه ذَکرهَا مُفْردة وَثُنائِیّة وثُلاثِیّة و رُباعیّةٍ وخُماسِیَّة اِیذَاناً بِأنّ المُتَحدّی به مُرکبٌ مِن کَلماتِهِم الّتِی أُصولهَا کلمَاتٍ مفردَةٍ أومُرکَّبة مِن حَرفَین فَصاعدًا الی الخَمسةِ).

**ترجمه**: او الله جلّ جلاله بعضې مفرد ذکرکړې او بعض ثنائې ذکر کړي او بعض ثلاثي، بعض رباعي او بعض خماسي ذکرکړي لپاره د اعلان کولو چې په کوم کلام طلب د معارضې شوی د هغې کلمات د دوی له حروفو نه مرکب دي چې اصول د هغې کلماتو مفرد او مرکب دي څه د دوه حروفو او څه د زیاتو نه تر پنځو پورې دي.

**تشریح**: له دې نه مخکې مصنف د کلام الله او کلام الناس تر منځ شرکت په اعتبار د مادې ثابت کړی و دلته په اعتبار د هیئة او ترکیب سره شرکت ثابتوي نو فرمایي چې قران کریم کې حروف مفرده، ثنائیه، ثلاثیه، رباعیه او خماسیه د دې لپاره ذکر کړل چې په کوم قران تاسو ته د مقابلې دعوت درکړل شوی هغه هم له هغو کلماتو څخه جوړ دی د کومو کلماتو حروف بنائیه چې یا مفرده دي یا ثنائیه، ثلاثیه او رباعیه او خماسیه دي نو د ستاسو او قراني کلام تر مینځ شرکت ترکیبي او هیئتي موجود دي او سره له فصاحته د دې پشان کلام نشئ جوړولی نو معلومه شوه چې قرآن معجز دی. حروف مفرده لکه ،ص، ق، ن، او ثنائیه لکه، طه، طس، یس، الٓمٓ، ثلاثیه لکه، الر، رباعیه لکه ،المص، خماسیه لکه، کهیعص، یعنې د هرې نوعې نه ئې اکثر حروف مذکور او کم حروف متروک دي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَ ذکرَ ثَلاثَ مفْردَاتٍ فِی ثلاثَ سُورٍ لِأَنّها تُوجدُ الأَقسامَ الثّلاثَة ألاسْم وَ الفعلُ وَ الحَرفُ وَ أَربع ثُنائِیَّاتٍ لأَنّها تکُونُ فی الحَرف بِلاحَذفٍ (کبل) وَفی الفِعلِ بِحذف کَقُلْ وَفی الاِسمِ بِغیرِحَذف کَمَن وَبِه کَدم وَفی تِسع سُورٍ لِوقُوعهَا فی کُلّ

وَاحِدٍ مِنَ الأَقسَام الثَّلاثةِ على ثَلثةِ أَوجُهٍ فَفى الأَسماَءِ اذ و ذُو وَمِن وَفى الأفعَال قُل وَبع خِف وَفى الحُروفِ اِنْ وَمِن ومُذ عَلى لُغة مَن جَرَّبها).

**ترجمه**: او ذکر کړي ئې دي درې مفردات په درې سورتونو کې ځکه دا مفردات په اقسامو ثلاثه وو کې موجوديږي چې اسم فعل حرف دی او څلور ثنائيات ذکر کړې دي ځکه چې دا په حرف کې بلاحذف موجوديږي لکه بل او په فعل کې په حذف سره موجوديږي لکه قل او په اسم کې په دواړو طريقو سره بغير د حذف نه وي لکه مَن او که سره له حذف نه وي لکه دم او دا څلور ثنائيات په نهو سورتو کې ځکه ذکر دي چې په هم دې درې اقسامو کې دا حروف په درې طريقو سره موجودي په اسماءو کې اذ بالکسر او ذو بالضم او من بالفتح او په افعالو کې قل، بع، او خف او په حروفو کې ان، من، او مذ هم په همدې قياس دی خو مذ د په لغة د هغه چا دی چې مذ له حروف جاره و څخه ګڼي.

**تشريح**: درې مفردات ،ق ، ص ، ن، دي په اسم کې لکه کاف د «مثلُ » او ضمير ته اشاره، په فعل ک لکه «قِ» په حرف کې لکه حروف قسم دا مفردات په اسم ، فعل او حرف کې موجوديږي نو ځکه ئې په درې سورتونو کې ذکر کړه. څلور ثنائيات ،طه ، يس، طس، حم، دي

سوال: دا ثنائيات يې څلور ولې راوړه کم او زيات يې ولې ذکر نه کړل ؟

**جواب**: دا حروف ثنائي په کلماتو ثلاثه و(اسم ، فعل، حرف) کي په څلورو طريقو سره موجود دی په دوه طريقو سره په فعل او حرف او په دوه طريقو سره په اسم کې په حرف کې خو بغير له حذف نه دي لکه بل او په فعل کې سره له حذف لکه قل ، بع ،خف او په اسم کې بغير له حذف نه لکه مَن او سره له حذف نه لکه دم چې په اصل کې دمو و

**سوال**: په نهو سورتونو کې يې ولې ذکر کړه ؟

**جواب**: د حروف ثنائيه استعمال په اقسامو ثلاثه و کې په دريو طريقو سره دی : په ضمې د اول حرف سره په فتحې د اول سره او په کسرې د اول حرف سره د اسماءو مثال : اِذ، ذُوا او مَن د فعل مثال : قُل ، خَف او بِع او د حرف مثال اِن ، مِن او مُذ . خو دا مذ د هغه چا په نزد دی څوک يې چې له حروف جاره و نه ګڼي نو درې ضرب درې نهه شوه

**تفسیربیضاوي**: (وَثلاثُ وثُلاثِياتٍ لمَجِئيهَا فى الأَقسامِ الثَّلثةِ فى ثَلاثةَ عشرةَ سُورة تَنبيهًا عَلى أَنَّ أُصولَ الأَبنِية المُستَعمَلةِ ثلاثَةُ عشر، عشرةٌ مَّنهَا لِلاسْمآء وثَلاثةٌ لِلأَفعالِ ورُباعِيتَين وخُماسِيتَين تَنبِيهًا عَلى أَنَّ لِكلّ مَّنها أصلا كجعْفر وَسفرْجَل وَمُلحقًا كَقَرْدَدٍ وجَحَنْفَلٍ)

**ترجمه**: او درې ثلاثيات يې ذكر كړل له وجې د راتلو د دې ثلاثياتو په اقسامو ثلاثه (اسم،فعل ،حرف) ووكې او په د يارلس سورتونوكې يې ذكركړې لپاره د تنبه چې بناءګانې د اصولو مستعمله وو ديارلس دي د هغې نه لس اصول د اسمآء لپاره دي او درې لپاره دافعالو دي او دوه رباعي اودوه يې خماسي ذكر كړي دي ديكې تنبه دى چې هريو سره اصل اوملحق شته لكه جعفر اصل رباعي دى او سفرجل اصل خماسي دى قردد ملحق د رباعي دى اوجحنفل ملحق د خماسي دى.

**تشريح**: هغه درې ثلاثيات دا دي : الٓمٓ، الر، طسم، دا د قاضي بيضاوى رحمه الله خپل اجتهاد دى چې ثلاثيات ئې درې ولې ذكركړي ځكه ديكې اشاره دى چې ثلاثي په درې اقسامو اسم، فعل او حرف كې واقع كيږي په اسم كې لكه فرس په فعل كې لكه نصر په حرف كې منذ بيا يې په ديارلس سورتونو كې ذكر كړل ديكې دې خبرې ته اشاره دى چې د اسم او فعل ټول اوزان ديارلس دي لس د اسم دي او درې د فعل دي د فعل اوزان دا دي چونكه اصل په فعل كې ماضي دى او د ماضي فاء كلمه هميشه مفتوحه وي او په عين كلمه كې يې درې حالته دي ضمه ،فتحه اوكسره فرق د مضارع نه معلوميږي كله مضارع مكسورالعين وي لكه ضرب يضرب كله مضموم العين وي نصر ينصر كله مفتوح العين وي لكه فتح يفتح دې درې وو ته دعائم او اصول دابوابو وائي او د اسم اوزان دا دي فاء كلمه كې درې حالته دي ضمه ، فتحه او كسره سكون نشي پكې راتللى ځكه بيا ابتدا په ساكن راځي او څلور حالته په عين كلمه كې دي ضمه، فتحه، كِسره او سكون نو درې ته چې په څلوروكې ضرب وركړې دولس كيږي دوه د ثقل دوجې ساقط شوي هغه دا دي ،چې فاء مضموم اوعين مكسور لكه فُعِل اوبله چې فاء مكسوره او عين مضموم وي لكه فِعُل نو لس اوزان دا شوه اودرې دفعل ټول ديارلس شول او دلته دوه رباعي دوه خماسي ،حم عسق ، كهيعص ، ذكر دي چې په دي كې اصل او ملحق د اصل ته اشاره دى.

**تفسیربیضاوي**: ( وَلَعلّها فُرِقَتْ عَلى السُورِ وَلم تُعد بأجْمَعِها فِي أول القُرآن لِهٰذِهِ الفَائدَة مَع مَافِيه من إعادة التَّحدى وَتكْرِيرالتَّنبِيه وَالمُبالَغةِ فِيه والمَعنى أَنَّ هَذا المُتحدى بِه مُؤلف مِن جِنس هَذه الحُروف أَو المؤَلف مِنهَا كذا)

**ترجمه**: او شاید چې دائې بیل بیل ذکرکړی وي په نهه ویشت سورتونوکې د دغه فوائدو لپاره(کوم چې مخکې بیان شو) اوټول ئې په قرآن کې یوځای شمارلې نه وي سره له دې چې په متعدد ذکر کولو کې د تحدی (چلنج) بیابیا اعاده دی اوتکرار د تنبه ، اومبالغه دی په دې کې او د الٓم معنی دادی چې دا متحدی بِه جوړدی له جنس د دغه حروفو په کومو چې تاسو تلفظ کوئ او(جوړ) له دغو حروفونه هم دغسې دی څنګه یې چې تاسو جوړئ،

**تشریح**: مخکې مونږ وویل د بعضې سورتونو په اوائل کې بعض حروف مقطعات ذکردي د دې لپاره مصنف دوه وجې ذکرکړي وې یو ایقاظ دوهم دلالت چې امي داسې عجیب اوغریب کلام راوړی دی دلته اعتراض واردیږي.

**سوال**: چې امّي داسې عجیب اوغریب کلام جوړ کړ دا عجایب او اعجاز خو په مجموعه د حروفو تهجیه کې دی لکه تاوویل چې د مجهوره وو نیمائې پکې دي د مهموسه وو نیمائې پکې دي دا نیمائې خو په مجموعه حروفوکې دي یوازې الٓم کې خونه دی نو دا مجموعه به دې په اول د قرآن کې راوړې وو چې تنبه پر اعجاز په اول سر کې راغلی وه ؟

(۱)**جواب**: (لعلما فرقت الی انّ هٰذه الفائدة) سره جواب کوي څکه ئې یوځای په اول کې رانه وړه تقسیم اوبیل بیل ئې راوړه لپاره د دغې فائدې کومه چې په تیر درس کې بیان شوې وثلاث ثلاثیات لمجیئها فی اقسام الثلاثة فی ثلاث عشرة سورة الخ.

(۲)**جواب**: ته وائې چې دا نکتې د بلاغت په مجموعه د حروفو تهجیه ووکې دي په یوازې الٓم کې نشته نو مونږ وایو چې بعد ختم القرآن خو پکې راځې او بغد ختم القرآن بیا مجموعه دی او بل دا چې څکه ئې متفرق راوړه په قرآن کې او مجموعه یې ذکر نه کړل دېکې اعاده دی په چیلنج

چې څو مره مکرريږي هغومره تکرار د چيلنج راځي او بل تکرار دتنبه دی او مبالغه په تنبه کې دی چې دا قرآن دی دغه ئې مواد دي که نران ئی مقابله ئې وکړئ.

مؤلف من جنس: دې قول سره ترکيب د (الٓمٓ) ذکرکوي هغه دا چې ده (الٓمٓ) نه يې تعبيروکه په المؤلف من جنس هذه الحروف دا خبر لپاره د مبتداء مقدرې دی هذا نمتحدی به ئې مبتداء اويا المؤلف منها الٓمٓ دی دا مبتداء کذا ئې خبر تردې ځايه پورې د الٓمٓ معنی لغوي ذکرشوه چې د الف، آ دی ، دلام ، ل، دی او د ، ميم ، م، دی اوس معنی مراد ئې څه دی

## (په حروفو مقطعاتو کې اختلاف)

**تفسيربيضاوي**: ( وَقِيل هِي أَسمآءٌ لِلسُّور وَعلَيه اِطباقُ الأكثَر سُميت بُها اِشعارًا بانّها كَلمَات مَعرُوفة التَّركيبِ فلَولَم تَكُن وَحْيا مِن اللهِ تعالى لَم تَتسَاقطْ مقْدرتُهم دُون مُعارضَتها وَاستَدلَّ علَيه بِأَنّها لَولمْ تكُن مَفْهمَةٌ كان الخِطابُ بها كَالخِطاب بِالمُهل وَالتَّكلم بِالزَّنجِي مَع العَربِ وَلمْ يكنِ القُرآن بِأسرِه بيانًا وَهدى وَلَمَّا امْكن التَّحدى بِه).

**ترجمه**: اوچا ويلي چې دا حروف مقطعات اسمآء دي لپاره د هغو سورتونو په کومو کې چې ذکردي او په دې باندې داکثرو اهل علمو اتفاق دی دا سورتونه په دغو اسمآء د دې تنبه لپاره مسمّی شول چې دا دهريو سورت کلمات معروفة التركيب دي که چيرته د الله جلّ جلاله له طرف نه نه وائي نو په وخت د معارضې کې د معاندينو قدرت نه ساقطيدلی اوکه چيرته دا الفاظ مفهوم نشي نو په دې حروفو سره خطاب کول دا په الفاظو مهمله وو باندې خطاب کول دي لکه خبرې په زنجي ژبه له عربي سړی سره اوبله دا چې ټول قرآن به تبيان (بيانوونکی) لکلّ شئ نشي او په دې باندې بيا تحدی هم ممکنه نه دی.

**تشريح**: معنی مراده د حروفو مقطعاتو معلومه دی او که نه دی معلومه په دې کې اختلاف دی يو مذهب د متکلمينو دی بل مذهب د غيرمتکلمينو دی.

**متکلمين**: دوئ وائي چې معنی مراده د حروفو مقطعاتو معلومه دی.

**غيرمتکلمين**: دوئ وائي چې معنی مراده د حروف مقطعاتو نه دی معلومه.

## د متكلمينو دلائل :

متكلمين په خپلې دعوې پنځه دلايل وايي دوه نقلي او درې عقلي

(۱) **دليل نقلي**: قال الله تعالى (بِلِسَانٍ عربيٍّ مّبين) الله تعالى فرمائې چې ما دا قرآن په عربي ژبي نازل كړى همدارنگه(اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا [1])موږ دا قرأن په عربي ژبه نازل كړى ټول قرآن عربي دى او د عربي معنى معلومه وي نو حروف مقطعات هم عربي دي ځكه دا هم قرآن دى نومعنى ئې معلومه شوه

(۲) **دليل نقلي**: الله جلّ جلاله فرمائې (هُدًى لّلنّاس) دا قرآن هدايت دى لپاره د خلكو نو هدايت به هلته وي چې معنى مراده ئې معلومه وي نوكه د حروفو مقطعاتو معنى مراده معلومه نشي نو بيا خو هدايت لپاره د خلكو نشو دغسې بل ځاى فرمايي چې (قد جاء كم من الله نورٌوكتاب مبين) بېشكه تاسوته د الله تعالى له طرفه نور او واضحه كتاب راغلى دى نو كه د متشابهاتو او مقطعاتو معنا معلومه نشي نو څنگه به نور ورته وويل شي .

(۳) **دليل عقلي**: الله جلّ جلاله په قرآن سره چيلنج وركړى او چيلنج په هغه سره وركول كيږي چې خپله خو ئې معنى مراده معلومه وي ورنه بيا خو چيلنج نه صحيح كيږي دا به داسې شي لكه حبشي سړي خبرې كول له عربي سره .

(۴) **دليل عقلي**: كه د حروف مقطعاتو معنى مراده معلومه نشي نو په المّ و غيره باندې مونږته خطاب كول به داسې وي لكه عربي سره په زنجي ژبه خبري كول او عربي سره په زنجي خبري كول عبث وي دا به هم بيا عبث شي نو اوس (المّ) او (يس) وغيره څه معنى ده نو په دې كې د يارلس قوله دي چې يو پكې دادى چې دا نومونه دي لپاره د سورتو ، نو خلاصه دا چې بعدالنقل ئي نومونه دي او قبل النقل ئې معناگانې وې ،آ، ل، م، له اسمآء منقوله وو څخه شو په منقول عنه كې چيلنج وو نو په منقول كې هم چيلنج دى.

---

(۱):- سورة يوسف: آية (۲).

(۵) **دليل عقلي**: دا خبره متفق عليه دی چې قرأن كلام الله دي او په دې هم اتفاق دی چې الله جل جلاله حكيم مطلق ذات دی او فعل د حكيم له عبث نه خالي وي نو اوس كه د متشابهاتو مقصد مخاطب ته معلوم نه شي د متشابهاتو په ذريعه كلام كول به لغوه شي نو په دې صورت كې به باري تعالى طرفته نسبت د عبث او لغوې وشي او الله تعالى ته د لغوې نسبت باطل دي

## دغير متكلمينو دلائل

دوی هم په خپله دعوه باندې درې دلايل وايي:

(۱) **دليل**: الله تعالى فرمائي: (وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهُ اِلّا الله والرّسخُونَ فى العلم يقولوْنَ امنّا [۱]) نه پوهيږي په معنی د دې متشابهاتو مگر يو الله جل جلاله دلته په الاالله باندې وقف ضروري دی او راسخون په لفظ د الله نه دي ورعطف بلكې هغه جمله مستأنفه دی ځكه كه په لفظ د الله باندې ورعطف شي نو معنا به دا وي چې په تاويل ددې الله تعالى او راسخين پوهيږي او حال دا چې مخكې فرمايي (فَاما الذين فى قلوبهم زيغٌ فيتبعون ماتشابه) يعني د كومو خلكو په زړونو كې چې كوږوالى وي هغو د متشابهاتو د مراد او معنا معلومولو كوشش كوي نو د راسخينو په زړونو كې خو كوږوالى نشته هغه ممدوحين دي مقصد دايت داشو چې د متشابهاتو علم يوائې الله تعالى لره ثابت دی.

(۲) **دليل**: رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمايي (اصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم [۲])

---

(۱):- سورة آل عمران: آية (۷).

(۲) الشريعة للآجري - كتاب الإيمان والتصديق بأن الجنة والنار مخلوقتان

باب ذكر فضل جميع الصحابة رضي الله عنهم - حديث:۱۱٤۸

حدثنا أبو محمد يحي بن محمد بن صاعد قال: حدثنا عبيد الله بن سعد بن إبراهيم بن سعد الزهري قال: حدثني عمي يعني: يعقوب بن إبراهيم قال: حدثنا سلام أبو عبد الله التميمي قال ابن صاعد: ابن سلم الطويل المدائني، عن زيد العمي، عن أبي الصديق الناجي، عن أبي سعيد الخدري قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إن أرحم هذه الأمة لها أبو بكر، وأقواهم في دين الله عمر، وأصدقهم حياء عثمان بن عفان، وأقضاهم علي، وأقرأهم لكتاب الله عز وجل أبي بن كعب، وأفرضهم زيد بن ثابت، وأمين هذه الأمة أبو عبيدة بن الجراح، ومعاذ بن جبل أعلم الناس بحلال الله وحرامه، وأبو هريرة وعاء من العلم، وسلمان علم لا يدرك " وذكر صدق أبي ذر قال محمد بن الحسين رحمه الله تعالى: وقد حدثنا ابن صاعد بهذا الحديث من غير طريق عن أبي سعيد، وعن ابن عمر، وغيرهما، عن النبي صلى الله

زما صحابه په شان د ستورو دي کوم پسې مو چې اقتدا وکړه هدایت به بیامومئ . له دې حدیث نه دصحابه کرامو پسې د اقتدا وجوب معلومیږي اقتدا په اقوالو کې وي او که په افعالو کې و او له خلفاء اربعه و نه دا نقل دي چې متشابهات اسرار دي د الله او د هغه د رسول (ﷺ) ترمینځه او راز له راز دار څخه بل چاته معلوم نه وي.

(۲) **دلیل**: بنده ګان چې په کومو احکامو (عبادت) مکلف دي هغه په دوه قسمه دي یو قولي دی او بل فعلي دی په فعلي عباداتو کې د بعضو په حکمتونو ته پوهیږي او د بعض په حکمتونو ته نه پوهیږي نو بعضې متشابهات دي او بعض غیر متشابهات دي لکه د لمونځ په حکمت ته پوهیږي څکه ئې کوي چې الله منعم د نعمتونو کثیره وو دی او د منعم شکر اداکول پکاروي هغه دا چې اشرف الاعضاء چې تندی دی ته په خاورو الله تعالی ته ګدي ذغسې روژه څکه نیسې چې دوړي حال درته معلوم شي شهوت دې مات شي د جهاد علت او حکمت اعلاء دکلمة الله دی او داسې نور، خو حج ولې کوي د دې په حکمت ته نه پوهیږي طوافونه سعې وغیره د څه لپاره کوي نو دا له متشابهاتو څخه دي نو چې افعال په دوه قسمه شوه ، نو اقوال هم په دوه قسمه دي چې د بعض په معنی ته پوهیږي او د بعضې په معنی نه پوهیږي او دا مذهب حق هم دی.

**تفسیربیضاوي**: (وَ اِنْ کانَت مَفهمةً فاِمّا أن يُّراد بِها السُّور الّتی هیَ مُستهلّهَا عَلی أنّها القَابهَا اوغَير ذالِک وَالثّانیْ بَاطلٌ لأنّہُ امّا أَن يّکونَ المُراد مَاوضَعت لهُ فی لُغةِ العَربِ فَظاهرٌ انّه لَيس کذٰلک أوغیره وَهو باطلٌ لأنّ القُرآن أنزِلَ علی لُغتِهم لقوله تعالی: (لِسَانٍ عَرَبِیّ مّبین) فلَايحمل علی مَالَيس فی لُغتِهم).

**ترجمه**: او که دا حروف پوهه کونکي د مخاطب وي (مفهم وي) یابه مراد په دې سره هغه سورتونه وي چې دا حروف ئې په اوائلو کې راغلي وي چې دا القاب د دغو سورتونو وي اویا به د

---

علیه وسلم قال محمد بن الحسین رحمه الله : وقد روي عن النبي صلی الله علیه وسلم أنه قال : " أصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم " قلت : فلو فعل إنسان فعلا كان له فيه قدوة بأحد من أصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ، كان علی الطريق المستقيم ، ومن فعل فعلا يخالف فيه الصحابة فنعوذ بالله منه ، ما أسوأ حاله "

دې مدلول نه مراد غیر د سورتونو وي او دوهم شق باطل دی او یا به معنی موضوع له د دې حروفو په لغت د عربو کې غیر د دې سورتونو څخه مراد وي ظاهره خبره ده چې داسې خو نه ده او یا به معنی موضوع له د دې په غیر د لغت عربي کې وي دا شق هم باطل دی ځکه چې قرآن په لغت د عربو کې نازل شوی دی له وجې د دې قول د الله تعالی نه بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ نو دا نه حمل کيږي په هغه څه چې په لغت د عربو کې نه وي.

**تشریح**: دا تفریع بناء ده په هغه قول چې معنی مراده ئې معلومه نه وي.

**سوال**: متوهم دا وهم کوي چې د قاضي بیضاوي رحمه الله د نهج نه دا معلومیږي چې مذهب د متکلمینو د ده په نزد غوره دی ځکه هیڅ رد ئې پرې ونکړ؟

**جواب**: دا د قاضي بیضاوي له قوله پخپله څرګندیږي چې نوموړي څلور شقه ذکر کړه (۱) دا چې معنی مراده ئې معلومه نشي دا باطل دی ځکه بیا به خطاب له بندګانو سره په هر الفاظو مهمله و راشي (۲) دا چې معنی مراده ئې معلومه شي او هغه دا سور شي د کومو په اول کې چې دا حروف راغلي دي (۳) دا چې معنی مراده ئې په عربي کې له سورتونه غیر شي دا هم باطله ده ځکه دا په کُتبو د عربو کې مونږ نه دی موندلی چې دا حروف دي د سورتونو نه غیر د بل څه لپاره وضع شوي وي (۴) دا چې معنی مراده ئې بله شي په عجمي کې دا هم باطل ده ځکه قرآن عربي دی الله جل جلاله فرمایي: (بلسان عربي مبين) نو که به بله ژبه یې ورحمل کړي له نص د قرآن به خلاف راشي کله چې دا ټول شقونه باطل شول نو دویم شق ثابت شو په ظاهره خو قاضي بیضاوي د همدې قول تائید کوي اګر که دا هم ضعیف دی.

**تفسیر بیضاوي**: ( لَا يُقَال لِمَ لَا يَجُوز أَن تَكُونَ مَزِيدَةً لِلتَّنْبِيهِ وَالدَّلَالَة عَلَى اِنقِطَاعِ كَلَامٍ وَاسْتِينَافِ آخَر كَمَا قَالَ قُطْرُبُ أَو اِشَارَة اِلَى كَلِمَاتٍ هِيَ مِنْهَا أُقْتُصِرَتْ عَلَيْهَا اِقْتِصَارُ الشَّاعِرِ فِي قَوْلِهِ قُلْتُ لَهَا قِفِي فَقَالَتْ قَافْ).

**ترجمه**: دا دې ونه ویلی شي چې ولې جائز نشو چې شي دې دا حروف لپاره د تنبه او دلالت په قطع د کلام سابق او استیناف د کلام اخر لکه دا خبره قطرب کړیده او یا اشاره وي هغو کلماتو ته

چې دا الم له هغو کلماتو څخه مختصر ذکرشوي وي چې په دي کلماتو اختصار شویدی په شان اختصار د شاعر چې ما معشوقې ته وویل چې ودریږه هغې وویل قاف یعنې (قفتُ).

**تشریح**: له دې ځایه څلور اعتراضه نقل کوي

اول اعتراض ئې په لایقال سره ذکرکړی دی او روسته یې مصنف جواب په لانقال سره کړی دی اول اعتراض: دا دی چې تاسو مخکې وویل که دا حروف په یوه معنا هم دلالت ونه کړي په کلام کې خرابي او نقصان لازمیږي نو دا وایي چې هیڅ نقصان نه لازمیږي ځکه دا حروف دي صرف په خبرداري او انقطاع د کلام باندې دلالت کولو لپاره زاید اومنلی شي لکه قطرب د دې خبرې قایل دی قطرب وایی کله چې عرب اوږد مضمون لیکي نو د جملو د ختمیدونه پس داسې الفاظ لیکي چې د مابعد کلام له ماقبل سره تعلق برقرار ساتي او هغه حروف چې د تعلق لپاره ذکر کیږي هغه هم حروف تهجي دي.

(أو اِشارة اِلی کلِماتٍ) سره دویم اعتراض ته اشاره ده

**دویم اعتراض**: دادی چې تاسو وویل که دا حروف په یوه معنا هم دلالت ونه کړي خطاب بالمهمل به لازم شي دا وایي چې خطاب بالمهمل نه لازمیږي ځکه موږ وایو چې دا مقطعات اصل کې له کلماتو طویله څخه را مختصر شویدي په دې سره هغو طویلو کلموته اشاره ده لکه د شاعر په شعر کې وایی (قلت لها قفی فقالت قاف) دلته په قاف کې اوږدې جملې ته اشاره دی له کومې نه چې دا قاف را مختصر کړی شوې دی.

قطرب د سیبویه شاګردی او قطرب دیو حیوان (مرغه) نوم دی چې د شپې یا سحر وختي ښکاریږي وځې نو دا به هم په تیاره کې سیبویه ته ورتلو یو ورځ په توره تیاره کې ورغئ دروازه ئې ور وټکوله سیبویه چې راووت ګوري چې دا طالب ولاړ وو نو ورته ئې وویل: (ما انت الا قطرب لیل) نو په دې لقب مشهور شو او خپل نوم ئې محمد بن المستنیر وو پوره شعر داسې دی:

قلت لها قفی فقالت قاف ...... لاتصیبنا قد نسیتنا الایجاف

والمنشورات من المعتق صاف ......... وعذف قینا عذاف

**تفسيربيضاوي**: (كما رُوى عَن ابن عَبَّاس رضى الله عنه قَالَ ألألفُ آلآءُ الله وَاللّامُ لُطْفُه وَالمِيْمُ مُلكُه وَعنهُ أَنّ الٓمٓ و (حم) و(ن) مَجمُوعهَا الرَّحمن [1] وَعنْه أَنّ الٓمٓ مَعناه اَنَا الله أَعلم وَنحْو ذلِک فى سَائِرالفَوَاتِح [2] وَعنه أَنّ الألفُ مِن اللهِ واللّامُ من جِبريلِ والمِيمُ مِن محمّد أى القُرآنُ مُنَزَّل من اللهِ بِلسَانِ جبريل عَلى مُحَمَّدعلَيها الصَّلوة والسَّلام [3])

**ترجمه**: لکه څنګه چې روايت دى له ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه چې الف مخفف (مختصر) دى له الاءالله نه او لام له لطف د الله نه اوميم د ملک د الله جلّ جلاله نه او د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) روايت دى چې (الر) او (حم) او (ن) دى د دې مجموعه الرّحمن دى او دا هم ترېنه نقل ده چې د الٓمٓ معنى (انا الله اعلم) دى او د دې په شان په نورو فواتحو (مقطعاتو) کې او د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) دا هم روايت دى چې الٓمٓ مخفف له (الله) دى او لام د جبريل نه اوميم د محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نه مخفف دى نو معنى دا شوه چې قرآن نازل دى له طرفه د الله جلّ جلاله په لاس د جبريل په محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې [4].

**تشريح**: د ابن عباس رضي الله عنه له رواياتو څخه هم دا څرګندېږي چې که د دغو حروفو خپله معنا معلومه نه شي نو څه نقصان نه لازمېږي ځکه په دې سره اشاره دى صفاتو د الله تعالى طرف ته په الف احد، اول، ازلي او ابدي ته اشاره دى لام سره لطيف طرف ته اشاره دى او ميم سره مالک، مجيد، منان طرف ته اشاره دى نو معنا دا شوه ازلي ابدي لطيف مالک.

**دويم**: يا په دې سره اشاره دى صفاتو فعليه طرفته په الف سره آلآء (نعمت) طرف ته اشاره دى او لام سره لطف طرف ته اشاره او ميم سره ملک ته طرف ته اشاره دى.

---

(۱):- رواه ابن جرير وابن ابى خاتم.

(۲):- اخرجه عبدبن حميد وابن جرير وابن المنذر وابن ابى خاتم.

(۳):- اخرجه البخارى فى تاريخ الكبير وابن جرير وزاد المسير: ۱ / ۲٦.

(٤):- ابوالعالية رحمه الله فرمائي الف معنا الله لام معنا لطيف ميم معنا مجيد: زادالمسير: ۱ / ۲۵.

همداراز شعبة له سري رحمه الله څخه روايت کوي هغه وائي چې ماته دابن عباس رضى الله عنهما خبر راسيدلې چې ويل به الٓمٓ اسم اعظم دي (تعليق زاد المسير ۱ / ۲۵.

**دريم**: دا چې په الر، حم، او ن، دا ټول د الرحمن اجزاء دي په دې سره الرحمن طرفته اشاره دي

**څلورم**: او یا دا چې الف سره ذات د الله ته اشاره دي او په لام او میم سره علم ته اشاره دي نو معنا دا شو انا الله اعلم

**پنځم**: یا په دې سره مختلفو ذاتونو ته اشاره دي په الف سره أشاره دي الله طرفته او لام سره اشاره دي جبریل طرفته او په میم سره اشاره دي محمد (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) طرفته نو معنا داشوه القرآن منزل من الله تعالى بلسان جبريل على محمد (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ).

**تفسيربيضاوي**: (أو إلى [1] مُدَد أَقوم وآجَال بِحسابِ الجُمَل كماقَالَ أَبو العَالِية مُتمسِّكًا بِماروى أنّه عليه الصّلوة والسّلام لمَّا اتَاه اليَهود تَلاَ عليهم الٓمٓ البَقرة فَحسِبُوه قَالوا كَيف نَدخُل فى دِينٍ مُدّته اِحدى وسَبعونَ سنةً فَتبَسّمَ رسُول الله صلّى الله عليه وسلّم فقَالُوا فَهل غَيره فَقال (الٓمٓصٓ) (الٓر) (الٓمٓر) فقَالُوا خُلِطتْ علَينَا فَلانَدرِى بِايّها نأخذُ فَانّ تِلاوتَه اِيّاها بهَذا التَّركِيْب عَليهِم وتَقْرِيرهِم عَلىٰ اِستِنباطِهم دَلِيل عَلى ذلك).

**ترجمه**: اویا په دې کې عمرونو اومدو د قومونو ته اشاره دی په حساب د جملو او ابجدو لکه څنګه چې ویلي ابوالعالیة په دې حال کې چې استدلال کونکی دی په دې قول د رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) چې کله ورته یهودیان راغله نو ورته ئې الٓمٓ (بقره) ولوستِ نو یهودو حساب وکړیا ئې وویل چې مونږ په داسې دین کې څنګه داخل شو چې د هغې عمر یو اویا (۷۱) کاله دی نو رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) تبسم وکړ بیا ئې ورته وویل چې د دې نه غیر نور الفاظ شته رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ورته وفرمایل (الٓمٓصٓ) (الٓر) (الٓمٓر) نو دوئ وویل چې په مونږ خلط راغئ (حساب پرې ګډوډ شو) مونږ نه پوهیږو چې کوم عمل وکړو [2] نو رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دوئ ته په دې

---

(۱):- دي سره رديم اعتراض ته اشاره ده

(۱) جامع البيان في تفسير القرآن للطبري - سورة البقرة

القول في تأويل قوله تعالى الم - حديث:۲۲۱ حدثنا به محمد بن حميد الرازي، قال: حدثنا سلمة بن الفضل، قال: حدثني محمد بن إسحاق، قال: حدثني الكلبي، عن أبي صالح، عن ابن عباس، عن جابر بن عبد الله بن رئاب، قال: مر أبو ياسر بن أخطب برسول الله صلى الله عليه وسلم وهو يتلو فاتحة سورة البقرة: الم ذلك الكتاب لا ريب فيه فأتى أخاه حي بن أخطب في رجال من يهود فقال: تعلمون والله لقد

ترتيب تلاوت كول او دوئ ته ئې تقرير كول او د دوئ استنباط باندې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) خاموشي د دې دليل دى چې په دې حروفو تهجي كې د قومونو عمرونو طرفته اشاره دى.

**تشريح**: دريم اعتراض: هغه داسې چې له دې حروفونه د قومونو عمرونه مراد دي لكه څنگه چې ابو العالية دليل نيولى په دې قول د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ابن عباس رضي الله عنه وايي رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته درې يهود راغله (۱) ابو ياسر ابن اخطب (۲) حُيَيٰ ابن اخطب (۳) اوكعب ابن اشرف چې دا د يهودو لوئ علماء او سرداران وو رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) الٓم تلاوت كولو دوئ واوريده نو رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)سره كيناسته رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)ته ئې وويل چې ته په الله قسم وكړه چې دا اسماني كتاب دى رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)ورته وويل په الله مې دې قسم وي چې دا اسماني كتاب دى نو وي ويل كه داسې وي نو بيا ستا د امت عمر يو اويا (۷۱) كاله دې نو رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)ورته وخندل نو دوئ وژړه وويل چې داسې نور الفاظ شته چې راته ويلولې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ورته (الٓمٓصٓ) تلاوت كړ نو دوئ سوچ وكړ بيا ورته وويل چې ستا د امت عمر يوسل اويوشپيته (۱۶۱) كاله دى بيا رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)ورته وخندل نو دوئ وويل چې داسې نور الفاظ شته رسول الله

---

سمعت محمدا يتلو فيما أنزل الله عز وجل عليه : الم ذلك الكتاب فقالوا : أنتَ سمعته ؟ قال : نعم فمشى حيي بن أخطب في أولئك النفر من يهود إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم ، فقالوا : يا محمد ألم يذكر لنا أنك تتلو فيما أنزل عليك : الم ذلك الكتاب فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم : " بلى " فقالوا : أجاءك بهذا جبريل من عند الله ؟ قال : " نعم " قالوا : لقد بعث الله جل ثناؤه قبلك أنبياء ما نعلمه بين لنبي منهم ما مدة ملكه وما أجل أمته غيرك فقال حيي بن أخطب : وأقبل على من كان معه ، فقال لهم : الألف واحدة ، واللام ثلاثون ، والميم أربعون ، فهذه إحدى وسبعون سنة ، قال : فقال لهم : أتدخلون في دين نبي إنما مدة ملكه وأجل أمته إحدى وسبعون سنة ؟ قال : ثم أقبل على رسول الله صلى الله عليه وسلم ، فقال : يا محمد هل مع هذا غيره ؟ قال : " نعم " قال : ماذا ؟ قال : " المص " قال : هذه أثقل وأطول : الألف واحدة ، واللام ثلاثون ، والميم أربعون ، والصاد تسعون . فهذه مائة وإحدى وستون سنة ؛ هل مع هذا يا محمد غيره ؟ قال : " نعم " قال : ماذا ؟ قال : " الر " قال : هذه أثقل وأطول الألف واحدة ، واللام ثلاثون ، والراء مائتان ، فهذه إحدى وثلاثون ومائتا سنة ؛ فقال : هل مع هذا غيره يا محمد ؟ قال : " نعم ، المر " قال : فهذه أثقل وأطول : الألف واحدة واللام ثلاثون ، والميم أربعون ، والراء مائتان ، فهذه إحدى وسبعون ومائتا سنة . ثم قال : لقد لبس علينا أمرك يا محمد ، حتى ما ندري أقليلا أعطيت أم كثيرا ثم قاموا عنه ، فقال أبو ياسر لأخيه حيي بن أخطب ولمن معه من الأحبار : ما يدريكم لعله قد جمع هذا كله لمحمد : إحدى وسبعون ، وإحدى وستون ومائة ، ومائتان وإحدى وثلاثون ، ومائتان وإحدى وسبعون ، فذلك سبعمائة سنة وأربع وثلاثون ؛ فقالوا : لقد تشابه علينا أمره .

(صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) (الر) تلاوت کړنو بيا ئې ورته وويل ستا د امت عمر دوه سوه اويو شپيته(۲۶۱) کاله دی بيا يې ورته الٓمّر تلاوت کړنو دوئ وويل چې پر مونږ خبره ګډوډه شوه مونږ په داسې دين کې ځنګه داخل شو چې عمر ئې دومره وي اولاړل .

له دې حديث نه دا خبره ثابتيږي چې په دې الفاظو سره مدې او عمرونو ته اشاره دی ځکه رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په دې ترتيب سره تلاوت کولو او بيايې د يهودو په استنباط باندې څه انکار هم نه کولو .

## (حروف ابجد او معاني ئې)

حروف ابجد الف يو (۱) لام ديرش(۳۰) ميم څلويښت (۴۰) نود دې امت عمر به يو اويا کاله وي بيا الٓمّص کې الف يو (۱) لام ديرش (۳) ميم څلويښت (۴) ص نوي (۹۰) وائې د دې امت عمر به يوسل اويو شپيته کاله وي الخ.

ابجد: الف (۱) ب (۲) ج (۳) د (۴).

هوز: ه (۵) و (۶) ز (۷).

حطی: ح (۸) ط (۹) ی (۱۰).

کلمن: ک (۲۰) ل (۳۰) م (۴۰) ن (۵۰).

سعفص: س (۶۰) ع (۷۰) ف (۸۰) ص (۹۰).

قرشت: ق (۱۰۰) ر (۲۰۰) ش (۳۰۰) ت (۴۰۰).

ثخذ: ث (۵۰۰) خ (۶۰۰) ذ (۷۰۰).

ضظغ: ض (۸۰۰) ظ (۹۰۰) غ (۱۰۰۰).

**تفسير بيضاوي**: ( وَ هذِه الدَّلالَة وَانْ لم تَكنْ عَربِيَّة لَكنّها لاِشْتهارِها فيمَا بَين النّاس حتّى العَرب تلْحِقها بِالمُعرباتِ كَالمِشكاة والسجيل والقِطاس).

**ترجمه**: او دا دلالت اګرکه عربي نه دی (عجمو ايجاد کړی) لکن د ډير شهرت له وجې نه عربي ګرځيدلی دی تردې چې عربو ترعربی پورې ملحق کړو لکه مشکاة او سجيل او قسطاس.

**تشریح**: په دې سره دفع د اعتراض کوي هغه دا

**سوال**: په عربۍ کې خو له دې الفاظو نه مودې او عمرونه د قومونو چې د الّم یو اویا (٧١) معنی دی او د الّمص یو سل اویو شپېته دی نه اشارةً رافهمیږي او نه صراحتاً بلکې داخو د سورياني او عبراني ژبې معاني نو د عربیت په اعتبار سره دا الفاظ په مودې څنګه دلالت کوي ؟

**جواب**: د دې الفاظو دغه دلالت اګر چې عربي نه دی خو د خلکو تر منځ د شهرت له امله تر عربۍ پورې لاحق شو دی لکه مشکوة حبشي لفظ دی طاقچې ته وایي سجیل فارسي لفظ دی له ختو څخه چې کومه تیږه جوړه شوي وي هغې ته وائي قسطاس رومي لفظ دی دا ټول د شهرت له وجې په عربۍ کې استعمالیږي.

**تفسیربیضاوي**: ( أو دَلالة [1] على حُروفِ المَبسوطَةِ مَقْسَمًا بِها لِشَرفِها مِن حَيث أَنّها بَسائِطُ أَسمآء الله تعَالى وَمَادَة خِطابِه هَذا).

**ترجمه**: او یا دا حروف مقطعه دال دي په حروفو مبسوطه مقسم بها (چې قسم وربانديې کیږي) له وجې د شرف د دغه حروفو په دې حیثیت چې دا بسائط د اسمآءوو د الله تعالی دي (اسمآء آلهیه له دې جوړ دی) د الله جلّ جلاله د خطاب او کلام ماده دی هذا ای خذ هذا.

**تشریح**: دا شپږم او اوم قول دی هغه دا چې یا دا حروف مقسم بها دي الله جلّ جلاله په الّم باندې قسم خوړلی او په کوم شي چې قسم کیږي د هغې عظمت ته اشاره وي نو دلته تنبه او ایقاظ دی چې ای عربانو دا قرآن د ،ا ،ل، م، نه جوړ دی دا مواد تاسو هم لرئ که نران ئې مقابله به ئې وکړئ.

اصل کې دا څلورم اعتراض دی:

**څلورم اعتراض**: هغه دا چې تاسو وویل که چیرته دا مقطعات په په اعتبار د وضعې په کومه معنا دلالت نه کوي بیا خو خطاب بالمهمل دی لکه عربي سره په زنجې ژبه خبرې کول دا وایي چې دا خبره نه منم ځکه دا حروف په بسایطو دلالت کوي چې دا د اسماء الحسنی بسایط دي.

---

(١):- دیځکي اعتراض ته اشاره ده

**تفسیربیضاوي**: ( وَاِنّ القَول بِأَنّها أَسمآءُ السُور يُخرِجُها الى مَالَيسَ فِي اللُّغة العَربِ لِأَنَ التَّسمـيَة بِثلاثَة أَسمآء فَصَاعِدًا مُستكْره عِندهُم وَتُؤَدِّى الى اِتّحاد الاِسمِ وَالمُسمّٰى وَيَستدْعِى تَأخُرِ الجُزءِ عَن الكلّ مِن حَيثُ أَنَ الاسْمَ يَتأخَرُ عن المُسمّى بالرُّتبَة).

**ترجمه**: او دا قول چې الٓمّٓ او حروف مقطعات اسمآء د سورتونو دی دغه حروفو مقطعه هغه ... خارجوي چې په لغت د عربو کې نه وي ځکه نوم کیښودل په درې اسمآء او یا په زیات د درې اسماء وو نه د عربو په نزد بد ګڼل کیږي او دا به مفضي شي اتحاد داسم او مسمی ته او بل دا چې دا تقاضاکوي د روسته والي د جزء د کل نه له دې حیثیت نه چې دا اسم دی نو اسم متأخروي له مسمّی نه په رتبې سره [1].

**تشریح**: مصنف په دې سره رد وکړ په هغه چاچې هغوئ وائې چې دا الٓمّٓ د دې سورت لپاره نوم دی وائي الٓمّٓ د دې سورت لپاره اسم نه دی ولې که اسم شي په عربي کې به داسې اسم راشي چې له درې اسماء وو نه مرکب وي او داسې اسم په عربي کې نشته چې له درې نومونو مرکب وي په عربي کې داسې اسم شته چې له دوه اسمونو نه مرکب وي لکه بعلبک او حضرموت خو د درې وو څخه مرکب نشته بل رد پرې کوي که الٓمّٓ اسم د دې سورت لپاره شي نو اسم به عین مسمّی شي ځکه الٓمّٓ هم داخل دی په دې سورت کې نو الم اسم هم شو او مسمی هم.

(وَيَستدْعِى تَأْخُرِ الجُزءِ عَن الكلِّ)دا بل رد دی په هغه چاچې څوک دغو حروفو ته اسماء د سورتونو وائې که اسم شي د سورت لپاره نو که له دې حیثیت ئي واخلې چې دا جزء دی نو بیا تقاضا د تقدیم کوي ځکه جزء مقدم وي په کل او که له دې حیثیت ئې واخلې چې دا اسم دی نو بیا تقاضا د تأخیرکوي ځکه اسم روسته وي د مسمّی نه نو دا پرې رد کوې چې دا حروف د سورتونو لپاره نومونه نه دي ځکه که نومونه شي بیا دغه نواقص لازمیږي.

---

(۱):- تقدیم په پنځه قسمه ده (۱) زماني (۲) طبعي لکه یو په دوه وو مقدم (۳) تقدیم شرفي لکه تقدیم د ابوبکر رضی الله عنه په عمر رضی الله عنه (٤) علي لکه تقدیم دحرکت دلاس په قلم (٥) رتبي لکه امام بیضاوی رحمه الله ئې مثال ذکر کړی یاتقدیم دخیني صفونو دمسجد په خینو : حاشیة الشهاب : ۱ / ۱۷۳.

**تفسیربیضاوي**: ( لأنّا نَقولُ أَنّ هَذهِ الأَلفاظ لَم تَعهد مَزيدةً لِلتَنبيْه وَالدَّلالة عَلى الاِنقِطاع وَالاستِيناف يَلزمهَا وَغيرهَا مِن حَيث أَنّها فَواتِح سُورُ).

**ترجمه**: (دا ټول اعتراضونه دي ونکړی شي )ځکه مونږ وايو چې دا الفاظ په دې معنا مشهور نه دي چې دا دې د زايد کيدو سره دلالت په تنبه او انقطاع اوکړي او فايده د استيناف لازم دي له دي سره او له دينه غير له نورو سره له دې حيثيته چې دا په اوائلو د سُورتونو کې راځي.

**تشريح**: له دې ځايه مصنف د ټولو اعتراضاتو جوابونه کوي خو په طور د مقدمې مخکې له جواب نه څلور خبرې اوريدل ضروري دي اول د احکام لغويه د اجراء لپاره قياس کولو ته هيڅ دخل نشته بلکې د اهل لسان استعمال سره احکام مستنبط کيږي دويمه خبره دا چې که يو لفظ نه التزاماً يوه معنا را فهميږي نو له دې نه لازميږي چې د دې لفظ به بله معنا نه وي بلکې بله معنا هم کيدی شي دريمه خبره دا چې يو لفظ د معنا د تعين لپاره خاص کول ضروري دي لفظا وي او که معنا څلورمه خبر دا چې د يو لفظ معرّب کولو لپاره ضروري دي چې اهل عرب دې لفظ ته په همدې معنا کې استعمال کړي په کومه معنا کې يې چې غير عرب استعمالوي.

اوس رازو خپلې خبرې ته هغه دا چې د سيبويه او نورو علماو مذهب داوو چې حروف مقطعات د دې سورو لپاره اسمآءدي بيا د سيبويه په مذهب اعتراضات راغله اول اعتراض د قطرب وو هغه داوويل چې الّمٓ دا لپاره دلالت اوتنبه ده په انقطاع دکلام چې مخکې کلام ختم شو او بل کلام شروع شو دې اعتراض د قطرب نه جواب کوي هغه داچې يو انقطاع د کلام دی او بله نفسې انقطاع دی دا الّمٓ په نفس انقطاع دلالت نه کوي پاتې خو لادا چې په انقطاع دکلام او په استيناف د آخر دې لالت وکړي نو په لغت د عربوکې مونږ لادا معنی نه دی اوريدلي اوکه غيرعربي وي نو قرآن خو عربي دی.

**سوال**: چيرته چې په قرآن کې مونږ دا الفاظ (مقطعات) ګورو نو انقطاع ورسره راغلي دی او ته وايي چې په انقطاع دلالت نه کوي ؟

**جواب**: (و الاستیناف فیلزمها وغیرها) استناف له دي سره هم لازم دی او له نورو سره هم لازم دی خو له دې حیثیته چې دا فواتح د سورو دي له حیثیته نه چې دا مقطعات دي.

**تفسیربیضاوي**: (ولَایَقتَضی ذلک أَن لایَکونَ لها مَعنی فی حِیزِها وَلَم تُستَعمل لِلاختصَار مِن کَلمَات مُعَیَّنة فی لُغتِهم أَمَّا الشِّعر فَشاذٌ).

**ترجمه**: او دا دلالت په انقطاع او استیناف تقاضا نه کوي چې د دې لپاره به په خپل ذات کې معنی نه وي او دا نه دی مستعمل شوي لپاره د اختصار د کلمو معینو په لغت د عربو کې او هرچې شعر دی هغه شاذ دی.

**تشریح**: دلالت په انقطاع او استیناف خو دا تقاضا نه کوي چې د دې لپاره دې خپله معنی نه وي خپله معنی دي هم وي او لازمه معنا دي هم ورسره وي چې انقطاع دی ځکه دلالت التزامي منافي له دلالت مطابقي سره نه وي.

(ولم تستعمل) دا له هغه دوهم اعتراض نه جواب دی چې (او اشارة الی کلمات هی منها الخ) مطلب دا چې دا الٓمٓ مخففات دي له کلماتو نه او بیائې یو شعر پیش کړی وو هغه دا و «قلت لها قفی فقالت قاف».

**جواب**: دا سې کوي چې په لغت د عربو کې دا مخفف دی که د غیرعربو کې مخفف دی، که په لغت د عربو کې ئې مخفف وائي نو قیاسًا ئې مخفف وائي که لغتًا، که قیاسًا ئې مخف وائې نو قیاس دلته کارنه ورکوي او که لغتًا ئې وائي نو په لغتو د عربو کې مونږ دا نه دي اوریدلې او لغت د غیرعربو معتبر نه دی ځکه قرآن عربي دی او هرچې تا شعر ویلې وو هغه شاذ دی یجوز فی الشعر مالایجوز فی غیره.

**تفسیربیضاوي**: (وَ أَمَّا قولُ ابن عبَّاس رضی الله عنه فَتَنبّهٌ علی أَنّ هَذه الحُروف مَنبَع الأَسمآء وَمبَادی الخِطابِ وتَمثِیل بأَمثلَة حَسنَة اَلا تَرٰی أَنّه عَدَّ کلّ حرفٍ مِن کلِماتٍ مُتبَاینَةٍ لاتَفسِیر وتَخصِیص بِهذه المَعانی دُونَ غَیرهَا اِذ لَا مُخَصِّص لفظًا ومعنًا).

**ترجمه**: او هرچې قول د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) دی دا تنبه دی په دې خبره چې دا حروف منبع ده د اسمآء وو د الله تعالی او مبادي د خطاب دي او تمثیل ئې کړي په امثله وه حسنه وو باندې آیا ته

نه ګوري چې هريو حرف يې د کلماتو متباينه وو نه شمارلی دی دا معاني يې نه تفسير دی او نه مخصوص دی تر دې معانيو پورې چې په بغيرنه دي نه په نورو به دلالت نه کوي ځکه دلته مخصص لفظا او معنا نشته.

**تشريح**: دا جواب دی له هغه دليل چې د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)قول ئې پيش کړی وو نو دا ورته وائې قول د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)تنبه دی په دې خبره چې دا حروف منبع ده د اسمآء وو لکه الف د اسم د الله جلّ جلاله منبع دی او لام منبع د جبريل (عَلَيهِ السَّلَامُ) دی ميم منبع د محمّد (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ)دی او دا ئې لغوي معنی نه دی اونه د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)دا مطلب دی له دي وجې نه خو ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)متفرقې اومباينې معنی ګانې ترينه مراد کړي دي يو طرفته وائې الف د الله ځخه دې بل طرفته وائې الف د آلآء ځخه دی نوله دي نه معلوميږي چې د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)لغوي معاني نه دي مراد اومعنی مراده ئې هم نه دی بلکه دا داسمآء وو لپاره منبع دی او ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)ښکلې مثالونه ورته پيش کړی دي کني لکه لام منبع د جبريل دی دغسې منبع د لعن هم کيدی شي ميم منبع د محمّد (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ)او منبع د مکر هم کيدی شي خو دا امثله بيا حسن نه دی.

(اَلا تَرى أَنّه عَدَّ كلّ حرفٍ مِن كلِماتٍ مُتبَايِنَةٍ) دا د ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)د قول لپاره وجه بيانوي چې د هغه مطلب معنی لغوي اومعنی مراده مقصود نه دی ځکه ئې متباين معنا ګانې ترينه مراد کړي کله له الف نه آلآ او کله ذات د الله جل جلاله او له لام نه کله لطف او کله جبريل او له ميم نه علم د الله جل جلاله او کله محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ) .

**تفسيربيضاوي**: ( وَلَا بِحِسَاب الجُمل فَتُلحقُ بِالمُعربَاتِ والحَديثِ لَا دَليلَ فِيه لِجَوازِ أَنّه عَليه الصّلوة والسّلام تَبَسّمَ تَعَجُّباً مِن جَهلِهم).

**ترجمه**: داحروف په حساب د جملوسره نه ذې استعمال شوی نو بيا به د معرباتو سره ملحق شي.(د غير عربي نه به عربي جوړه شي) او هرچې حديث دی نو هغه په دې خبره دليل نه دی د دې جواز هم شته چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ)د يهود په جهل تبسم کړی وی.

**تشريح**: **سوال**: تاسو خو مخکې وويل د الٓمٓ معنی يو اويا ده (۷۱) او رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) چې يهودو ته خندل نو معلوميږي چې همدائې معنی دی.

**جواب**: تبسم کله د خوشحالئ لپاره وي او کله د تعجب لپاره وي نو دلته کيدی شي د تعجب لپاره وي چې دا خومره جاهلان دي کلام عربي دی او دوئ ترينه عجمي مراد وي.

**سوال**: رسول الله (صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) خو يوازې تبسم نه دی کړی بلکه مخکې تللی د الٓمٓ نه روسته ئې ورته آلٓمٓر وويل بيا الٓمٓص ورته وويل؟

**جواب**: دا مجازات لخصم دي يعنې چې خصم سره په لاره ځې ځې په آخرکې يې کندې ته وغورځوي.

**تفسيربيضاوي**: (وَجَعلهَا مُقسماً بهَا وإنْ كانَ غَيرمُتنع لكِنّه يحوِج الى اِضمارِ أَشياء لَادَليلَ عَليهَا).

**ترجمه**: اوګرځول د دې حروفو مقسم بها اګرچې دا ممنوع نه دی لکن دا بيا کلام محتاج کوي اضمار د ډيرو اشياؤو ته چې په هغې هيڅ دليل نشته.

**تشريح**: هرچې څلورم اعتراض وو چې دا حروف دي د قسم څخه شي نو دا ورته وائي چې ګرځول د دې مقسم بها منعه نه دي خو احتياج پکې ډيرو تقديراتو ته پيښيږي لکه ته به وائې و «أ» قسم دې وي په الف و «لٓا» قسم دې وي په لام و «مَ» قسم دې وي په ميم نو مخکې به ترينه ادوات د قسم مقدرکوې او روسته به ترينه جواب قسم مقدرکوې ځکه «لاريب فيه» خو جواب نشي کيدی ځکه په جواب د قسم کې يا «لا» وي يا «اِن» وي لکه والله لزيد.

**تفسيربيضاوي**: ( وَالتَّسمِيةُ بِثلاثةِ اسمآءٍ انّمَا تَمتنِعُ اذًا رُكِبَتْ وَجَعلتْ اِسمًا وَاحدًا على طَرِيقَةِ بَعلَبک فَامّا اذَا نَثَرتْ نَثْرَ اسمآءِ العَدَدِ فَلا وَنَاهِيک [1] بِتَسويةِ سِيبَويه بينَ التَّسميةِ بِالجُملةِ والبَيت مِن الشّعر وطَائفةٍ من أَسماءِ حُروفِ المُعجَم).

---

(۱):- اى حسبک ويکفيک تقول هذا رجل ناهيک من رجل وتأويله انّه يجدّه وغنائه ينهاک عن طلب غيره قال ابن الانباري رحمه الله فى الزاهر قوله ناهيک بفلان معناه کافيک به.

**ترجمه**: تسميه په درې نومونو هغه وخت منع وي چې دا درې واړه اسماء مركب شي او په طريقې د بعلبک يو اسم ترينه جوړ كړى شي :خو كه دا درې واړه اسمونه خواره واره ذكر كړى شي په شان د خوارو ورو اسماء عد دو بيا مستنكرنه دى تالره دا كار د سيبويه كافي دى چې هغه تسويه او برابروالى جايز ګڼلى په منځ د تسمى په جملې ،بيت د شعركې او په طايفې د اسماء المعجم.( د شعر يوې حصې ته بيت ، جمله او طائفه د اسمآء د حروفو معجم هم ورته ول شي.

**تشريح**: دا جواب دى هغه اعتراض ته چې ويلې ئې وو دا الٓمٓ دې اسم شي لپاره د دې سورت بيا خو به يو اسم مركب له درې اسمآء وو نه شي او په كلام عربي كو خو مونږ يو اسم له درې اسمآء وو نه مركب نه دى موندلى ؟

**جواب**: دا ورته جواب كوي چې يو اسم مركب له درې اسماء وو نه هلته ناجائزدى چې كله له دينه مركب امتزاجي جوړشي لكه بعلبک او دلته ترينه مركب امتزاجي نه دى جوړشوي بلكه درې اسمآء په طريقې د تعداد كې ذكر شوي الف لام ميم اومجموعه ئې بيا د دې الٓمٓ لپاره نوم دى او داسې جائزدى لكه اسماء عدد د تايئد لپاره د امام سيبويه قول پيش كوي چې هغه ويلي چې د شعر يوې حصې ته بيت هم ويلى شې ، جمله هم ورته ويلى شې او د حروفو معجم د اسماء يوه حصه هم ورته ويلى شې او ګوره سيبويه يو شي ته په درې نومونو سره نومول جائز ګڼلي دي نو فواتح د سورتونو هم دغسې دي چيرته درې اسمونه دي لكه دغه الم او چيرته څلور دي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَالمُسمَّى هُو المَجموعُ السُّورة وَالِإسم جُزءُها فَلا اِتِّحَاد وَهُومُقَدَّمٌ من حَيث ذَاتِه مُؤخَّر باعْتبارِ كَونهِ اسمًا فَلا دَور لِإختِلاف الجِهتَين).

**ترجمه**: مسمى خو ټول مجموعه سورت دى او اسم جزء د سورت دى نو اسم اومسمى كې اتحاد نشته كه الٓمٓ اسم شي نو په اعتبار د ذات سره مقدم وي او په اعتبار د اسميت سره مؤخّر وي نو دور نه راځي له وجې د اختلاف ده جهاتو.

**تشريح**: دا هم جواب دى له هغه اعتراض نه چې تا ويلي وه چې كله دا الٓمٓ اسم لپاره د دې سورت شي نو اتحاد به راشي په مابين د اسم او مسمى كې ځكه الٓمٓ هم په دې سورت كې داخل دى

نو دا ورته جواب کوي چې اګرکه اتحاد د اسم او مسمی راځي خو فرق اعتباري پکې شته هغه دا چې مسمی مجموعه (مجموع من حیث المجموع) د دې سورت دی او اسم جزء دی له دې سورت څخه نو اتحاد رانغلو بلکې یو کل شو او بل جز.

او بل اعتراض داوو چې که دا الٓم اسم کوي نو اسم خو مؤخر وي او که جزئې له دې سورت بولې بیا خو جزء مقدم وي دا نه دی مګر دور دی ؟

دا ورته جواب کوي چې دور نشته ځکه دلته جهات بدل دی دا الم مقدم دی من حیث الذات او مؤخر دی باعتبار کونه اسمًا.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَالوَجْهُ الأوّل اَقربُ الی التَّحقِیق وَ أَوفَقُ لَلطَّائف التَّنزِیل وَأَسلم مِن لزُوم النَّقل وَوُقوعِ الاِشتِراک فِی الأَعلَام مِنْ واضِع وَاحدٍ فَانّه یَعودُ بالنَّقضِ عَلی مَاهو مَقصُود بالعَلَمیَّة).

**ترجمه**: او اولنی وجه تحقیق ته ډیر نزدي دی او موافقه دی د باریکو نکاتو د قرآن سره او ډیره سالمه(محفوظه) دی د لزوم د نقل د حرفیت نه اسمیت ته او محفوظه دی له وقوع د اشتراک نه په اعلامو کې کوم چې یو واضع ثابت کړي ځکه دنقل او اشتراک واقع کیدل هغه نقض ته راجع کیږي چې دعلمیت نه مقصود دی. (مقصود دعلمیت نه تمیز تخصیص او عدم التباس وي).

**تشریح**: په دې اتو اقوالو کې اوله وجه دا وه چې الف اسم د (ا) دی او لام د (ل) دی او میم اسم د (م) دی او دوهمه وجه داوه چې دا ئې معنی لغوي دی او معنی مراده ئې اسم د دې سورت دی خو اوله وجه اقربه دی تحقیق ته ځکه چې په دې کې نکتې دی چې هغه تنبه او ایقاظ دی او موافقه دی له باریکاتو د قرآن سره چې کفارو ته چیلنج دی چې همدغه مواد دي چې تاسو سره هم شته که نران ئې مقابله ئې وکړئ او کوم شی چې موافق وي له نکاتو د قران سره هغه انسب وي په مقابل د غیر اوفق کې او بل دا چې اوله وجه سالمه دی له لزوم د نقل او اشتراک نه یعنې چې دا اسماء حروف او منل شي په اعلامو کې نقل او اشتراک نه راځي ؛ ځکه هلته (د سیبویه په مذهب) نقل او اشتراک لازمیږي هغه داسې که دا حروف اسماء د سورو شي خو دا خبره خو متحقق دی چې

دا الفاظ علم دي د خپلو مسمياتو لپاره اوس که تاسو دا علم منئ د دې دوه صورتونه دي يا خو به د سوتونو لپاره اصالتاً علم وي يا به نقل شو وي له اول صورت نه نقل شوی وي که اصالتاً وي نو اشتراک لازم شو او که په طور د نقل وي نو نقل لازم شو بهر الحال په دې صورتونو کې په اعلامو نقل او اشتراک لازميږي حال دا چې له واضع نه اشتراک او نقل په اعلامو کې قبيح دی ځکه دا دعلميت د مقصود خلاف دی ځکه مقصود دعلميت دا د چې د علم په ذريعه به ذی عَلم ممتاز شي له نورو اشياو څخه او په اشتراک او نقل کې التباس وي نو اول صورت اسلم من لزوم النقل و الاشتراک شو او دويم صورت غير سالم شو.

**تفسيربيضاوي**: ( وقِيلَ أَنّها أسمَاءُ القُرآن ولذَلک أَخبرعَنهَا بِالكتَابِ وَالقُرآن [1])

**ترجمه**: او ويلی شوي دي چې دا حروف د قرآن نومونه دي نو له همدې وجې نه دا حروف مبتداء او کتاب او قرأن ئې خبر واقع کيږي.

**تشريح**: او داسې هم ويلې شوي دي چې دا حروف نومونه د سورتونو دي ځکه دې حروفو ته کتاب خبر واقع شوی لکه الٓمٓ مبتداء ذلک الکتاب ئې خبر (الر کتابٌ أُحکِمَتْ آيتُه) [2] و المٓر كتَابٌ اَنزَلْنَاهُ اِلَيْک [3] او خبر په مبتداء ورحمل وي نوچې حمل شو اتحاد راغې په وجود خارجي کې نو دا عين کتاب شو او وجه د حمل يې يوازې علميت دی نو موږ اوايل د سورتونو د قرأن کريم لپاره علم مقرر کړ.

**سوال**: دلته عينيت له کتاب سره راغئ له قرآن سره خوئې رانغی ؟

**جواب**: لکه څنګه چې کتاب ورته خبر واقع شوی دغسې ورته قرآن هم ورته خبر واقع شوي لکه تِلْک اٰيَات وقُرآن مبين نو له قرأن سره يې هم عينيت راغی.

---

(۱):- اخرجه ابن جرير عن مجاهد فی تفسير طبري : ۱ / ۸۶ و عبدالرزاق و عبد بن حميد عن قتادة .

(۲):- سورة الهود : آية : (۱).

(۳):- سورة ابراهيم : آية: (۱).

**تفسيربيضاوي**: ( وَقِيل اِنّها أَسمآءُ الله تَعالى وَيَدُلّ عَلَيه أَنّ عَلياً كَرم الله وجهَهُ كَانَ يَقولُ يا (كهيعص) ويا (حم عسق) ولَعلّهُ أَرادَ يا مُنَزِّلَها) [1].

**ترجمه**: او ويلى شوي دي چې دا (حروف تهجي )د الله تعالى نومونه دي اوپه دې باندې دلالت كوي د اقول د حضرت على (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) (يا كهيعص يا حم عسق) شايد چې د حضرت على (رَضِيَ اللهُ عَنهُ)مراد له دي نه يا مُنزلها وي نازولونكى د دې حروفو.

**تشريح**: دا قول د متكلمينو دى چې الفاظ تهجي د الله تعالى نومونه دي دليل دا وايي چې په (الم الله لا اله الا الله)كې د الله حمل په الم شوى دى او وجه د حمل يې علميت دى نو معلومه شوه چې دا د الله تعالى نومونه شول او دويم دليل يې قاضي صيب د علي رضي الله عنه قول ذكر كړى هغه چې علي رضي الله عنه به ويل : يا (يا كهيعص يا حم عسق) او دا كلام په مقام د استمداد كې دى او د موحد شان دا دى چې هغه مدد يوازې له الله تعالى څخه غواړي نو علي رضي الله عنه خو په طريقه اولى له الله نه مدد غواړي نو معلومه شوه چې دا د الله تعالى نومونه دي قاضي بيضاوي رحمه الله له دې دليل نه جواب كوي هغه دا چې له دې دليل نه استدلال نه شي كيدلى ځكه كيداى شي دلته مضاف محذوف وي اى مُنزلها وي او مضاف اليه دهغې قايم مقام وي اى يامنزل كهيعص نو د الم ذلك الكتاب معنا دا چې منزل دلک الكتاب ، اذا جاء الحتمال بطل الاستدلال.

**تفسيربيضاوي**: (وَقِيل أَلألفُ مِن أَقصى الْحَلقِ وَهو مَبدَاءُ المَخارِجِ وَاللّام منْ طَرفِ اللِّسان وَهوَ أَوسطُها وَالمِيمُ مِن الشَّفة وَهوَ أَخرهَا جَمع بَينَها اِيمَاء اِلى أنّ العَبد يَنبغِى أَن يّكونَ أَوّل كلامِه وَ اوسَطه وَأَخرِه ذِكرُالله تَعالى).

**ترجمه**: اوچا ويلي دي چې الف د اِنتهاء د حلق نه اداء كيږي او دا ابتداء د مخارجو دى اولام د وسط د ژبي نه اداكيږي چې دا وسط د مخارجو ده اوميم د سر د شونډو نه اداكيږي چې دا آخر د

---

(۱)- اخرجه ابن جرير فى تفسيره عن طريق نافع بن ابى نعيم القارى عن فاطمه بنت عل بن ابى طالب انها سمعت عليّا رضى الله عنه يقول يا (كهيعص اغفرلي) تفسير طبري : ١٦١ ورواه ابن ماجه فى تفسيره ورواه متقى الهندى فى كنزل العمال والتفسير قرطبي و اسناده ضعيف جدًا.

مخارجو دی ،دا حروف ئې د دې فائدې لپاره جمع کړي چې اشاره دی دې خبرې ته چې مناسب دی بنده لره چې اول ،وسط او آخر د کلام ئې دالله جلّ جلاله ذکر وي.

**تشریح**: دا یو لسم قول دې هغه دا چې د سورتونو په سرونو کې یې دا الفاظ ځکه راوړل چې الله تعالی انسان ته تعلیم ورکوي چې الف له اقصی د حلق نه اداء کیږي او دا ابتداء د مخارجو دی لام د ژبې له غاړې نه ادا کیږي چې دا وسط د مخارجو دی او میم د شونډو نه ادا کیږي چې دا انتهاء د مخارجو دی نو بنده ته پکار دي چې په دریواړو مراحلو (ابتداء ، توسط او انتهاء)کې به دالله تعالی ذکر کوئ خو دا وجه د الٓم پورې خاصه دی ، تر دې ځایه د متکلمینو قول یولس اقوال شوه دوه نور هم شته چې صاحب د تفسیر نه دې ذکر کړي.

**لومړي قول**: دا چې دا حروف یې د کفارو د مکې د متوجه کولو لپاره په اول د سورتونو کې ذکر کړي دي چې هغوی به (لاتسمعوا لهذا القران والغوا فیه) چې دا قران مه اورئ او د قران د لوستلو پرمهال شور جوړوئ تر څو نور خلک ورته متوجه نه شي نو الله تعالی د سورتونو په ابتداء کې داسې الفاظ ذکر کړل چې هغوی یې په معنا نه پوهېدل نو دا دهغوی د توجه الی القران سبب وګرځېد ځکه دوی په تعجب کې پرېوتل او یو بل ته به یې ویل (اسمعوا الی مایجئ محمد صلی الله علیه وسلم).

**دویم قول**: دا چې الف له ابتداء د مخارجو څخه ادا کېږي اشاره دیته ده چې انسان ته پکار دي چې د هدایت درمیانه مرتبې ته هم متوجه شي چې هغه طریقت او سهي تصوف دی او میم له انتهاء د مخارجو ادا کیږي نو انسان ته پکار دي چې د هدایت په انتهاء باندې فائز شي.

## یوه علمي نکته

ځیني علماء وایي چې دلته د مخاطب ذهن ته یو سوال راځي هغه داسې چې د حروفو مقطعاتو په ابتداء د قرآن کې ذکر کولو کې څه حکمت دي روسته حصو د قرآن کې یې ذکر کول کافي و کنه؟

جواب دا کوي چې الله جل جلاله په ابتداء د خپل کلام کې مفسر ته دا خبر داری ورکوي چې خیال کوه په خپل علم باندې غرور ونه کړې له کوم ځای نه چې زما د علم ابتداء (چې قرآن دی) دغه ځای ستا د علم انتهاء دی

## (حروف مقطعات دالله سر(راز) دی)

**تفسیربیضاوي**: (وَقِيل اِنّه سِرّ اِستأثَرَهُ الله بِعلمِه وقَد رُوِىَ عَن الخُلفَاءِ الأَربعَة وَغيرِهِم مِن الصُّحابةِ مَايَقْرُبُ منْه وَلَعلّهُم أرادُوا أنّها أَسرارٌ بينَ الله تعالى وَ رَسُوله وَ رُموزٌ لم يُقْصدبِها اِفهامُ غَيره اِذ يَبعُد الخِطاب بِما لاَيُفيدُ)

**ترجمه**: اوچا ویلي دي چې دا یو راز دی چې الله تعالی پخپل علم سره غوره کړی دی او له خلفاء ازبعه او نورو صحابه کرامو وو نه د دې د قریب قریب مضمون نقل شوی دی او شاید چې د صحابه کرامو د دې (سِر) سره مراد د الله تعالی او د رسول الله صلّی الله علیه وسلّم په منځ کې اسرار وي چې د رسول الله (عَلَيْهِ‌السَّلَامُ) نه غیر پر دې د بل چا پوهول مقصود نه وي ځکه که څوک ورباندې نه پوهیدلی نو بیا دا خطاب په داسې قول دی چې هیڅ فائده پکې مخاطب ته نشته.

**تشریح**: دلته د هغه چا قول نقل کوي کوم چې د متکلمینو په خلاف متشابهاتو ته غی معلوم المراد وایي دوی وایی چې دا متشابهات د الله تعالی د راز خبرې دي صرف الله تعالی ته یې علم شته بل څوک پرې نه پوهیږي او خلفاء راشده و او نورو صحابه کرامو څخه چې کوم اقول نقل دي هغه هم تقریبا د همدې قول تائید کوي.

(۱) حضرت ابوبکرصدیق (رَضِيَ‌اللَّهُ‌عَنْهُ)فرمائي انّ لله فی کلّ کتاب سرّ وسرّ القرآن اوائل سور[۱]) د الله تعالی لپاره په هرکتاب کې سِر وي په قرآن کې د الله تعالی سِر اوائل د سُوَرُو دي.

---

(۱):- تفسیر معالم التنزیل لامام بغوي : ۱ / (۵۸).

(۲) حضرت عمر (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ)و حضرت عثمان (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ)او عبدالله بن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) فرمائي: الحروف مقطعه من المکتوم الّذی لایفسر [۱] )دا حروف مقطعه له هغو رازونو څخه دي چې تفسیر ئې نه کیږي.

(۳) حضرت علی (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ)فرمائي فی کلّ کتاب صفوة وصفوة هذا الکتاب الحروف الهجاء [۲] په هریو کتاب کې د الله جلّ جلاله څه خبرې غوره کړی شوې وي او غوره کړی شوې خبرې د دې کتاب حروف هجاء دي . قاضی بیضاوي رحمه الله فرمائي چې و لعلهم ارادوا انّها اسرار بین الله) دا د ده مذهب دی ځکه دا شافعي مسلکی دی او د شوافعو مذهب په شان د متکلمینو دی او هغوئ وائي چې د دې معنی مراده معلومه دی وائي الله جلّ جلاله دلته قصد د افهام نه دی کړی او له عدم قصدالافهام نه عدم افهام نه راځي او د احنافو په نزد دا له متشابهاتو څخه دي لکه څنګه چې له امام شعبی رحمه الله نه سوال و شو هغه ورته وویل : انّ لکلّ کتاب سرًّا وسرّ القرآن فواتح السّور فدعها وسل عما بدالک فهی من المتشابه الّذی لایعلم تأویله الّا الله، امام شعبي ورته وویل د دې په اړه سوال مه کوه دا پرېږده دا د الله تعالی راز دی او له متشابهاتو څخه دی بل څوک په دې نه پوهیږي [۳].

شوافع وایي چې د دې تفسیر او منعا معلومه دی ځکه دوی په (ومایعلم تأویله الله)باندې وقف نه کوي بلکې (والراسخون فی العلم) ورباندې عطف کوي او له تاویل نه تفسیر مراد کوي

او احناف وایي په (الا الله)باندې وقف لازم دی او والراسخون مبتداء دی او روسته یقولون ورته خبر دی ، امام شافعي رحمه الله وایي که په د متشابهاتو په مراد راسخون فی العلم هم علم نه لري بیا خو د عالم او جاهل فرق رانغی.

(۱):- تفسیر معالم التنزیل لامام بغوي : ۱ / (۵۸).
(۲):- تفسیر معالم التنزیل لامام بغوي : ۱ / (۵۸).
(۳):- تفسیر معالم التنزیل لامام بغوي : ۱ / (۵۸).

احناف (رَحِمَهُمُ اللهُ) ورته داسې جواب کوي چې علم په دوه قسمه ده يو بالاصالة او بل بالتبع، الله تعالى له ځان سره علم بالاصالة منحصر کړی دی بالتبع نه دی کيدای شي چې راسخون فی العلم ته د متشابهاتو علم بالتبع وي.

**تفسیربیضاوي**: ( فَاِنْ جَعلَتْها أَسماء اللهِ تعالى او القُرآن أوالسُّورِ كَان لَهَا حَظٌّ منْ الاعْرابِ اِمَّاالرَّفع عَلى اِبْتداءِ أَوالخَبر أَوالنَّصبِ بِتَقديرِالفِعل القَسمِ عَلى طَريقَة الله لأَفعلنّ بَالنَّصب أوغَيرها كمَا ذَكرَ وَالجرُّ على اِضْمار حَرفِ القَسمِ وَيتَأَتّى الاِعرابُ لفظًا وَالحِكايَة فيمَا كَانَت مُفردَة أَوموازِنة لمُفردٍ كَحم فَانّها كَهابيل وَالحِكاية لَيستْ الّا فيمَا عَدا ذلك وَ سيَعُود اليک ذِكرُه مُفَصّلًا ان شاءالله تعالى)

**ترجمه**: كه چيرته دا اسمآء د الله جلّ جلاله يا د قرآن يا د سورتو نو لپاره نومونه شي نو بيا به دې لره حصه دا عراب وي يابه مرفوع وي بناپه ابتدائيت او يا به مرفوع وي بنا په خبريت او يا به منصوب وي په تقدير د فعل قسم په دې طريقه، چې قسم په الله زه به داکارکوم اويا غير د فعل قسم نه (بل فعل ورته مقدر كه) او يا مجرور دی په اضمار د حرف قسم او په دې كې لفظًا او حكايتًا اعراب راتلی شي په هغه حروفو كې چې مفرد وي ياموازن د مفرد وي لكه (حم) په وزن مفرد دی په شان د هابيل او اعراب حكائي نه دی مگر په هغه الفاظوكې ده چې سوا د مفرد اوموازن د مفرد څخه وي زر ده چې د دې ذكر به درته راشي په تفصيل سره ان شاءالله تعالى.

**تشریح**: تر دې ځای پورې د معنى بحث وو اوس دلته په اعراب كې بحث كوي.

اعراب په دوه قسمه دی (۱) اصلي (۲) حكائي:

**اعراب اصلي(لفظي)**: په مفرد اويا په موازن د مفرد كې راځي لكه (حم) به وزن هابيل دی.

اعراب حكائي: دې ته وائي چې په منقول كې اعراب داسې پاتي شي لكه څنګه چې په منقول اليه كې وه لكه په يو كلام كې په يو لفظ باندې كوم اعراب وي نو ته دغه لفظ له همدغه اعراب سره بل كلام ته نقل كړې بغير له څه تغير او تبديل نه او اعراب حكائي په هغې كې راځي چې نه مفرد وي اونه هم وزن د مفرد وي لكه تأبّط شرًا د يو سړی نوم دی جاء تأبّط شرًا، رائيت

تأبّط شرّا، مررت بتأبّط شرّ، د ټولو اعراب یو دي اوس الٓمّ لره دوه حالته دي یو حالت دمنقول عنه او بل حالت د منقول الیه دی د منقول عنه حالت داوو چې مونږ وویل الف اسم د (آ) دی لام اسم د (ل) اومیم اسم د (م) دی او د منقول الیه حالت داوو چې دا نوم لپاره د دې سورت شي یا د الله جلّ جلاله نوم شي یا د قرآن نوم شي نو د منقول عنه په صورت کې هم درې اعراب دي او د منقول الیه په صورت کې هم پکې درې اعرابه دي نو ټول شپږ اعرابه شوه.

**حالت رفع**: که اسمآء د الله تعالی شي الٓمّ مبتداء انا لله خبر اوکه اسم د قرآن شي یا اسم د سورت شي بیا الٓمّ مبتداء هذا ذلک الکتاب خبر یا هذه السورة ورته خبر.

**حالت نصب**: چې فعل قسم مقدرکړی لکه بالله لافعلنّ ،الله لافعلنّ، والله لافعلنّ دلته به داسې وائې اقسم الٓمّ نو دا به منصوب وي په تقدیر د فعل قسم.

(وَالجرُّ علی اِضْمار حَرفِ القَسمِ)په منقول کې دریم قسم اعراب د جر دی او جر په اضمار د حرف قسم سره وي چې حرف قسم به دلته مقدر وي نو په منقول کې درې قسمه اعراب راغی بیا په دې هریو قسم کې به یا اعراب اصلي وي یابه حکائي وي که مفرد وي لکه «ص» «ق»یا هم وزن د مفرد وي لکه «یس» «حم» په دې کې به اعراب اصلي وي اوکه نه مفرد وي اونه موازن د مفرد وي هغې کې یوازې اعراب حکائي راځي لکه الٓمّ او کهیعص وي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَاِن أَبقَیتَها علی مَعانِیها فَانْ قَدَرْتَ بِالمُؤلَف من هذِه الحُروف كَان فِي حِيَزِالرَّفعِ بِالاِبتِداءِ أَوالخَبرِ علی مَا مَرّ).

**ترجمه**: اوکه ته دا باقي پرېږدې په خپل حال باندې په خپلو معانیو چې المؤلف من هذه الحروف دی نو په محل د رفع کې به وي په ابتداء سره یا په خبرسره کمامرّ.

**تشریح**: خپلې معانې یې دادي چې د الف معنی (آ) دی د لام معنی (ل) دی او د میم معنی (م) دی اوکه تا مقدر که یعنې تأویل دې پکې وکړ چې المؤلف من هذه الحروف المتحدی به المتحد به مؤلف من هذه الحروف دی نو دا مبتداء او ذلک الکتاب ئې خبر اویا هذا مبتداء او المؤلف من هذه الحروف ئې خبر.

**تفسيربيضاوي**: ( وَانْ جَعَلْتَها مُقسَمًا بها يَكونُ كلّ كَلِمةٍ مِنها مَنصوبًا اومجرورًا على اللُّغتَيِن فى اللّهِ لأَفعلنّ وتَكُون جُملة قَسَمِية بِالفِعل المُقدر لَهُ وإنْ جعَلْتَها أبعاض كَلماتٍ أَو أَصواتًا مُنَزَّلة مَنْزِلة حُروفِ التَّنبه لَم يَكنْ لها محَل مِن الاعْراب كالجُمْل المُبْتَداةِ وَالمُفرَدات وَالمَعدُودةِ).

**ترجمه**: اوكه ته وګرځوي دا حروف مقسم بها نو هره يوه كلمه به د دې نه منصوب يا مجرور وي بنا په هغه دوه لغتينو چې په الله لافعلنّ كې و او دا به جمله قسميه شي د خپل فعل مقدر لپاره اوكه وګرځوې دا حروف اجزاء د كلماتو او يا اصوات او نازل ئې كې په منزله د حروفو د تنبه بيا به نه وي دوئ لره محل د اعراب لكه څنكه چې محل د اعراب نه وي هغو جملو ته چې په ابتداء كلام كې راغلي وي او هغه مفردات چې ته هغه شماري.

**تشريح**: كه چيرته دا حروف مقسم بها كړې يعنې نقل ئې نه كړې بلې معنا ته د الف معنى (آ) كړې او د لام معنى (ل) كړې او د ميم معنى (م) كړې نو قسم په (آ) (ل) (م) راغلو نو هره كلمه ئې منصوبه او مجروره كيد شي كه اقسم مقدر كې الله لافعلنّ لفظ د الله به منصوب وائې او كه باء مقدره كې بالله لافعلنّ مجروربه ئې وائې نو په دې كې به هم دغه سې دوه اعرابه جاري كيږي لكه اقسم الم او كه اجزاء د كلمو ئې كړې يائې اصوات كړې بيا دى لره محل د اعراب نشته.

## (وقف او اقسام يې)

**تفسيربيضاوي**: (وَيُوقَف علَيها وَقْف التَمام اذَا قُدِرَت بِحَيْث لَاتحْتَاجُ الى مَابَعدِها ولَيسَ شَئ مِنهَا آية عِندَغَيرِالكُوفِيين وأَمّا عِندَ هم ف(الٓم) فى مُواقِعها و(الٓمٓص) و (كهيعص)و(طه)و (طس)و (يس) و(حم)آية و(حم )و(عسق) آيتَانِ والبَواقِي لَيسَت بِآيَات وهَذا تَوقيفٌ لَامَجال لِلقِياس فِيه).

**ترجمه**: وقف به كولئ شي په دې حروفو وقف تمام چې كله په دې كې تقدير په دې حيثيت وكړى شي چې مابعد ته ئې احتياج نه وي او په نزد د هغو علماو چې علاوه دي له كوفيانو هغوى وايي دا حروف يو هم آيت نه دى او هر چې په نزد د كوفيانو دى دوى وايي چې الٓم په موقع د آيت كې دى او الٓمٓص او كهيعص او طه او طسم او طس او يس او حم دي دا يو آيت دى او حم عسق دوه آياتونه دي او باقي حروف هجي آياتونه نه دي او دا حكم توقيفي دى دې كې قياس لره دخل نشته.

**تشریح**: وقف په دوه قسمه دی (۱) وقف حسن (۲) وقف قبیح دی.

## وقف حسن:

وقف حسن دیته وائې چې په داسې کلام وقف وکړئ چې مفید د فائدې وي لکه بسم الله باندې وقف کول وقف حسن بیا په دوه قسمه دی یو وقف کافي اوبل وقف تمام.

**وقف تمام**: په یو کلام وقف کول چې ما بعد یې ما قبل ته محتاج نه وي لکه په پوره بسم الله الرّحمن الرّحیم وقف کول.

**وقف کافی**: په یو کلام وقف کول چې ما بعد ددې کلام ماقبل ته محتاج وي خو کلام مفید د فائدې هم وي.

## وقف قبیح:

په داسې کلام وقف کول چې مفید د فائدې نه وي لکه یوازې په بسم باندې وقف کول یا په الله یا په الرّحمن یا په الرّحیم وقف کول.

## حروف مقطعات ایت دی او که نا؟

او بل دا خبره ذکر کوي چې دا حروف آیات دي او که ایت نه دي په دې کې دوه مذهبه دي.

(۱) د کوفیانو په نزد دې کې څلور قوله دي:

(۱) بعضو ته لکه کهیعص، یس او طه آیات وائي

(۲) بعضو ته دوه آیاته وائې لکه حم او عسق

(۳) اوبعضو ته موقع الآیات (واقع په ځای دآیات کې) وائې

(۴) بعضو ته آیات نه وائې لکه (ق) قاف (ص) صاد (ن) نون.

(۲) غیرکوفیان: یوته هم آیات نه وائې[1]

(ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ).

---

(۱) الدر المنثور في التفسير بالمأثور (۱/ ۵۵) أخرج وَكِيع وَعبد بن حميد عَن أبي عبد الرَّحْمَن السّلمِيّ أنه كَانَ يعد {الم} آيَة (وحم) آيَة --
-وَأخرج البُخَارِيّ فِي تَارِيخه وَالتِّرْمِذِيّ وَصَححهُ وَابْن الضريس وَمُحَمّد بن نصر وَابْن الْأَنْبَارِي فِي الْمَصَاحِف وَالْحَاكِم وَصَححهُ وَابْن مرْدَوَيْه وَأَبُو ذَر الْهَرَوِيّ فِي فضائله وَالْبَيْهَقِيّ فِي شعب الإِيمان عَن ابْن مَسْعُود قَالَ: قَالَ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم من قَرَأَ حرفا من كتاب الله فَلهُ بِهِ حَسَنَة والحسنة بِعشر أَمْثَالهَا

## ( د ذلک بحث )

**تفسيربيضاوي**: ( ذَلِك الكِتَابُ) ذَلك اِشارةٌ الى (الٓمّ) انْ اُوِلَ بالمُؤلفِ مِن هذه الحُروفِ أَوفُسِّر بالسُّورةِ او القُرآن فاِنّه لما تُكُلِّم به وَتُقْضى او وَصل مِن المُرسل الى المُرسل اَلَيهِ صَار مُتباعدًا أُشيرَ اليهِ بِما يُشارُبِه الى البَعِيد).

**ترجمه**: ذالک اشاره ده الٓمّ ته چې دا الٓمّ تأويل په مؤلف من هذه الحروفو سره اوشي اويا يې تفسير وکړی شي په سورت يا په قرآن سره کله چې په الٓمّ تکلم وکړی شي نو تير او ختم شي (فتلاش) اوکه وصل شي مرسل اومرسل اليه (الله جلّ جلاله رسول الله (صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ)) ته وګرځيد لرې نو اشاره وکړی شوه ورته په هغه څه چې په هغې سره اشاره بعيد ته کيږي.

**تشريح**: د ذلک مشاراليه کې دوه احتماله دي يا الٓمّ دی ياکتاب دی که مشاراليه الکتاب شي نو بيا کتاب صفت لپاره ذلک دی ځکه الکتاب معرفه باللام دی اومشاراليه چې معرفه باللام راشي بيا د اسم اشارې اومشاراليه په منځ کې درې ترکيبه کيږي (۱) موصوف او صفت (۲) بدل او مبدل منه (۳)معطوف او عطف بيان وي نو په ذلک الکتاب کې احتمال خبريت هم شته د ذلک لپاره احتمال صفتيت هم شته.

د ذلک لپاره په الٓمّ کې دوه احتماله دي (۱) چې تأويل د الٓمّ نه پکې په دې طريقه وکړی شي ذلک المؤلف من هذه الحروف.

(۲) چې تعبير په سورت يا په قرآن سره وکړی شي ذلک السورة (۳) يا ذلک القرآن.

**سوال**: په ذلک سره خو اشاره بعيد ته کيږي او الٓمّ خو قريب دی ؟

(۱)**جواب**: الٓمّ عرض سيار دی يعني غير مجتمع للاجزاء دی اذا وجد فتلاش چې موجود شي نو معدوم شي اوکوم شئ چې معدوم شي هغه بعيد شي ما ابعد مافات نو ځکه په ذلک سره ورته اشاره وشوه.

(۲)**جواب**: يا دا چې الٓمّ د اسمان څخه را نازل شو او اسمان دير لرې دي بيا و رپسې ذلک الله جلّ جلاله نازل کړی نو ځکه ورته په ذلک سره اشاره وشوه.

**سوال**: په ذلک سره اشاره الٓمٓ ته وشوه په الٓمٓ کې خو درې احتماله دي (۱) لمؤلف من هذه الحروف (۲) قرآن (۳) دریم السورة دی که سورت شي بیا خو ذلک ویل پکارنه وو بلکه تلک ویل پکار وو ځکه سورة مؤنث دي چې د اشارې او مشار الیه په مابین کې مناسبت راشي.

**جواب**: کله چې اسم اشاره دائره شي په مابین د مرجع او خبرکې نو رعایت د خبر اولی وي نو دلته رعایت د خبر شوي چې الکتاب دی نو ځکه ذلک وویل او تلک یې ونه ویلې[1].

**تفسیربیضاوي**: (وَ تَذْکِیره مَتی أُرید بِ (الٓمٓ) السُّورة لِتذکیرِالکتَاب فَاِنّه خَبرُهُ أَوصفَتُه الَّذی هُوَ هُو).

**ترجمه**: او مذکر کیدل د اسم اشارې چې کله په الٓمٓ سره سورت مراد شي دا له وجې د تذکیر د کتاب ه، ځکه کتاب خبر د ذالک دی او یا صفت د ذلک دی ځکه مبتداء او خبر متحد وي ذاتًا او مصداقًا.

**تشریح**: دا وجه بیانوي چې تلک ئې ولې رانه ووړ کما مرّ آنفًا الذی هو هو مطلب دا دی چې رعایت د خبر او یا صفت ولې اولی ده دا وائې ځکه چې مبتداء او خبر او یا صفت متحدی وي ذاتًا او مصداقًا.

**سوال**: ته وائې چې رعایت د خبر ځکه اولی دی چې مبتداء او خبر متحد وي ذاتًا او مصداقًا خو نفس تغیر په مبتداء او خبر کې وي او د اشارې له مرجع سره بالکلیة عینیت وي نو رعایت دعین اولی وي که دمتحد؟

**جواب**: خبرله مبتداء سره متحد دی ذاتًا او مصداقًا او داخل هم دی په کلام کې، مرجع او مشارالیه ورسره عین دی خو خارجه دی له کلام نه، نو د داخل رعایت اولی دی له خارج ځخه.

تفسیر بیضاوي: ( أَو الی الکِتابِ فَیکونُ صِفَّته والمُراد بِه الکتَاب المَوعُودُ اِنزالُهُ بِنحْو قَوله تَعالی ( اِنّا سَنُلْقِیْ عَلَیْک قَوْلًا ثَقِیْلًا [2] أَو فی الکُتُب المُتقدمةِ).

---

(۱):- ذلک په معنی د هذا سره ده د اقول د ابن عباس، مجاهد، عکرمه، کسائی، ابوعبیدة، او اخفش ده لکه په دې شعر د خفاف بن ندبة کې: اقول له و الرمع یأطر متنه... تأمّل خفافًا انّنی انا ذلکا. ای انا هذا. تفسیر زادالمسیر: ۱ / ۲۷.

(۲):- سورة المزمل: آیة (۵)

**ترجمه**: او یا په ذلک سره کتاب ته اشاره ده نو کتاب د ذلک لپاره صفت شو مراد ورنه هغه کتاب دی چې د هغې د نازلولو وعده شوې وه په دې قول د الله تعالی کې انّا سنلقی علیک قولا ثقیلًا او یا هغه کتاب ته اشاره ده چې په کتب متقدمه کې وو.

**تشریح**: مونږ مخکې وویل چې که په ذلک سره اشاره کتاب ته شي بیا په دې کې درې ترکیبه دي دا په هغو درېوو ترکیبونو کې یو ترکیب ذکر کوي چې موصوف او صفت دی.

**سوال**: په ذلک سره خو اشاره مذکورته کیږي او کتاب خو نه دی ذکر ؟

(۱)**جواب**: د ذلک الکتاب (سورت بقرې) نه مخکې سورت مزمل نازل شوی او په سورت مزمّل کې کتاب ذکر شوی (وعده د کتاب شوي) هغه ترینه مراد دی.

(۲)**جواب**: یا کتاب نه مراد هغه کتاب دی په متقدمو کتابو کې ئې وعده شوې ده.

(۳)**جواب**: یا په دې سره هغه کتاب ته اشاره ده کوم چې له دې سورت مخکې نازل شوی.

## د کتاب معنا

**تفسیربیضاوي**: ( وَهوَ مَصدَرٌ سمّی بِهِ المَفعولُ لِلمُبالَغة وَقِیل فَعال بمعنی المفعول كَاللبَاس ثُمَّ أُطلِق عَلى المَنظُوم عِبارَة قَبل أَن يّكتُب لأَنّه مِمّا يكتُب وَ أَصل الكَتب الجَمع وَمنْه الكَتِيبَة).

**ترجمه**: کتاب مصدر دې کله مبالغتًا مفعول ته هم ویل کیږي چا ویلي چې فعال مبنی للمفعول ده لکه لباس په معنی د ملبوس بیا ئې اطلاق په منظوم عبارت وشو او چاویلي چې کتاب د هغې جملې څخه دی چې کتابت ئې کیدلی شي او اصل د کتاب په معنی د جمع ده لکه کتب یکتب په معنا د جمع جمع او د دې مبادې نه کتیبة مأخوذ دی.

**تشریح**: اوس د کتاب لغوي معنی درته ذکر کوي فرمائي کتاب په لغت کې جمع ته وائي کتیبة هغه فوج ته وائي چې راجمع شوي وي ای ذلک الجمع.

**سوال**: ته وائې چې کتاب په معنا دجمعې نو معنا دا شوه ذلک الکتاب اي ذلک الجمع او قرآن خو مجموع دی جمع خو نه ده نو د جمعې اطلاق په قرآن څنګه کوې ؟

**جواب**: دا صیغه د مصدر دی خو تسمیه د مفعول وربانديږ د مبالغې لپاره شوې لکه زید
20 عدل او یا فعال یعنې اسم صفتي دی مبنی للمفعول دی.

**سوال**: کتاب خو لیکلی شوي مضمون ته وایي چې کله یې وویل ذلک الکتاب دغه مهال خو ټول قران نه لیکل شوی و او نه نازل شوی و نو څنګه ته کتاب په معنا د مکتوب اخلې؟

**جواب**: دا اطلاق مجازا دی لکه لباس په معنا دملبوس مکتوب هغه منظم او مرتب عبارت ته وایي چې په ذهن کې وي خو په اینده کې لیکل کیږي نو دا تسمیه د شي ده په اسم د مایؤل الیه سره.

**تفسیربیضاوي**: ( لَارَيْبَ فِيْهِ) مَعناهُ أَنّه لِوضُوحِه وَ سُطُوع بُرهَانِه بِحَيث لَايَرتَابُ العَاقِل بَعد النّظر الصَّحِيح فِي كَونه وَحيًا بَالغًا حَدَّ الإعجَاز لَا أَن اَحدًا لَايرتَاب فيْهِ).

**ترجمه**: هغه کتاب دی چې شک پکې نشته معنی د لاریب دا دی چې قرآن له وجې د خپل وضاحت او له وجې د ظهور د دلیل نه یو عاقل هم روسته د صحیح نظر کولو نه د دې په وحې کیدلو کې چې حد اعجاز ته رسیدونکي دی شک نه کوي داسې نه دی چې قران کریم کې هیڅوک شک نکوي.

**تشریح**: لاء لپاره د نفي د جنس دی یعنې جنس ریب په دې کتاب کې نشته.

**سوال**: ته وائې چې جنس ریب په قرآن کې نشته او یهودو او نصارى وو پکې ریب کړی نو معلومه شوه چې ریب پکې شته؟

(۱)**جواب**: نفي د ریب نه دی بلکه نفي د محلیت د ریب دی یعنې قرآن محل د ریب نه دی لکه ویران محل د لمونځ نه دی که څوک ئې پرې کوي نو کوي به ئې یا مسجد د دنیوي خبرو ځای نه دی داسې نه چې څوک پکې دنوي خبرې نشي کولی که څوک یې کوي نو کوي به ئې.

(۲)**جواب**: یا نفي د لیاقت د ریب ده یعنې ریب پکې مناسب نه دی.

(۳) **جواب**: یا داسې ووائې چې یو ظهور د ریب دی اویو ثبوت د ریب دی ثبوت د ریب په قرآن کې نشته.

(۴) **جواب**: قرآئت د عبد الله بن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) مراد اخلو ای لاریب فیه للمؤمنین.[۱]

**تفسیر بیضاوي**: ( آلاَ تَرى الى قَوله تعالى ( وَإنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَى عَبْدِنَا فَأْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهِ) الآية فَانّهُ مَا أَبعدَ عنْهُم الرَّيبَ بل عَرفَهم الطَريقَ المُزيح لَه وَهوَ أَن يجتَهدوا فى مُعارَضة نَجم مِن نُجُومه وَيَبْذلُوا فِيها غَايةَ جُهدِهِم حَتى اذَا عَجزُوا عَنها تَحَقَّق لهُم أن ليس فِيه مَجال لِلشُبْهة ولَامَدخلَ لِرِيبةٍ).

**ترجمه**: ته نه گورې دي قول د الله جلّ جلاله ته (ترجمه) که تاسو په شک کې يئ د هغه کتاب نه چې مونږ په خپل بنده نازل کړی نو په شان د دې کتاب يو سورت راوړئ او دا دليل په اثبات د ارتياب دی او ريب ئې بعيد نه دی گرځولی له دوی نه بلکه کافرانو ته ئې د شک کولو طريقه ښودلې او هغه طريقه دا دی چې دوئ دې کوشش وکړي په معارضه د يوې حصې (يو آيات) د حصول د قرآن نه او په معارضه اومقابله کې دې نهايت جهد خپل خرچ کړی تردې چې دوئ له دې مقابلې کولو عاجزه شي دوئ ته به داثابته شي چې په قرآن کې ځای د شبهې نشته اونه ځای د دخول د ريب پکې شته.

**تشريح**: دا نفی د ريب نه دی بلکه لاره د زائليدو د ريب ورته ښه ئې او د ريب د ازالې طريقه دا دی که تاسو شکمن ياست په قران کې د قرآن د يو وړوکي سورت په مثل يو سورت جوړ کړئ نو کفارو خپل کوشش وکړو خو د قرآن د سورت مثل سورت نه عاجزه شول نو د دوی ريب او شک پخپله زايله شو چې په قرآن کې ريب نشته.

**تفسير بيضاوي**: ( وَقِيل مَعناهُ لارَيبَ فيهِ لِلمُتّقِين )

**ترجمه**: اوچا ويلي دي چې په دې کې ريب د مؤمنانو نشته.

---

(۱) تفسير حدائق الروح والريحان في روابي علوم القرآن (۱/ ۱۰۷)

فإن قلت: الكفّار شكّوا فيه فلم يقرّوا بكتاب الله تعالى، والمبتدعون من أهل القبلة شكّوا في معاني متشابهه، فأوّلوها وضلّوا بها، والعلماء شكّوا في وجوهه، فلم يقطعوا القول على وجه منها، والعوامّ شكّوا فيه فلم يفهموا معانيه، فما معنى نفي الريب عنه؟

فالجواب: إنّ هذا إنما هو نفي الريب عن الكتاب لا عن الناس، والكتاب موصوف بأنّه لا يتمكّن فيه ريب، فهو حقّ صدق معلوم ومفهوم شكّ فيه الناس، أو لم يشكّوا، كالصدق صدق في نفسه وإن وصفه الناس بالكذب، والكذب كذب وإن وصفه الناس بالصدق، فكذا الكتاب ليس مما يلحقه ريب،

**تشریح**: دا دهغه اعتراض ته جواب کوي کوم چې تیرشو.

ریب اسم د لا دی فی حرف جر او (ه) ضمیر ذوالحال هدًا ورته حال ذوالحال سره دحال نه مجرور دجار چې (فی) ده جار سره دمجرور نه په اعتبار د متعلق صفت دریب، ریب موصوف سره دخپل صفت نه اسم د لاء او للمتّقین ورته خبر ای لا ریب کائنا فی القرأن حال کون القرأن هادیا للمتّقین.

## (د ریب معنی)

**تفسیربیضاوي**: ( وهدًى حالٌ منَ الضَّميرالمَجرُور وَالعَامل فِيه الظَّرف أَلواقع صفَّة للمَنفِي وَالرَّيب فى الأَصل مَصدر رَابنى الشَّئ اِذا حَصلَ فيْک الرِّيبَة وهىَ قَلقُ النَّفس وَاضطرابُها سَمى به الشَّک لأَنّه يَقلقُ النفْس وَيَزِيل الطّمانِينةَ وَفى الحَديث( دعْ مايُرِيبُک اِلى مَا لَايرِيبُک) فَانّ الشَّک رِيبة وَالصِّدق طَمانينة ﴿۱﴾ وَمنْه ريب الزَّمان لِنَوائِبِهِ).

**ترجمه**: او هدًى حال دي له ضمیر مجروره نه او ظرف په دي کې عامل دی چې واقع شوی صفت لپاره د منفی او ریب په اصل کې مصدر دی د رابنی الشئ څخه مأخوذ دی چې کله په تاکې ریب راغلی وي او دا حرکت د نفس او ناقراری د نفس دی چې مسمی کړی شو په دی باندې شک ځکه شک هم نفس په حرکت کې اچوي او زائلوي سکون او اطمینان او په حدیث شریف کې دي پریږده هغه څه چې تا په شک کې غورځوي زه هغه طرف ته چې تا په شک کې نه غورځوي ځکه شک ریب دی او رښتیا سکون دی او له دې قبیلې نه ریب الزمان دی چې د حوادثو د زماني لپاره استعمالیږي.

**تشریح**: دلته اوس د ریب معنی ذکرکوي فرمائي چې ریب قلق النفس ته وائي ای حرکت النفس د ریب او شک په مابین کې فرق دا دی چې د ریب خپله معنی ده متزلزل کیدل او تشویش کې غورځېدل دا سبب دی او شک ورته مسبب دی نو د دوئ په مابین کې علاقه د سبب او مسبب

(۱):- عن ابی الحوراء السعدی قال قلت للحسن بن علی ماحفظت من رسول الله صلّی الله علیه وسلّم قال حفظت من رسول الله صلّی الله علیه وسلّم دع مایریبک الی ما لایریبک فانّ الصّدق طمانینة وانّ الکذب ریبة. رواه جامع الترمذی: ٤ / ۲۸٦ رقم الحدیث ۲۵۱۸. ورواه السنن النسائی: ۸ / ۲۳۰ رقم الحدیث ۵۳۹۷ والدارمی: ۱ / ۲٦٤ رقم الحدیث ۱٦۷، ومسند احمد: ۳ / ۲٤۸ رقم الحدیث ۷۲۳.

ده کله چې ریب ته شک ویل شوی وي نو هلته به ذکر د مسبب وي او مراد به ترینه سبب وي او کله د دې عکس وي .

فانّ الشک ریبة: هم په فرق د دواړو دلالت کوي ځکه ریبة په شک ورحمل دی نو چې حمل شو بیا په دواړو کې تغیر ضرور وي ځکه که فرق پکې نه وائ نو دا قضیه به داسې وه فانّ الشک شک بیا به حمل اولي وه او حمل اولي مفید د فائدې نه وي[1] .

## (د ریب او شک ترمینځ فرق)

د ریب او شک ترمینځ د علماو درې اقوال دي:

(۱) په شک او ریب کې ترادف دی دواړه یوشي دي.

(۲) ریب خاص دی شک مع التهمت ته وائي او شک عام دی مع التهمت وي او که بلا تهمت وي یعنې په شک او ریب کې نسبت دعموم خصوص مطلق دی

(۳) په ریب کې درې شیان وي (۱) شک (۲) تهمت (۳) حاجت کله کله ریب مجازًا په شک کې استعمالیږي ځکه شک اطمنان ختموي او د اضطراب سبب دی[2]

قاضي بیضاوي رحمه الله د ریب او شک ترمنځ د فرق ثابتولو لپاره په تائید کې حدیث پیش کوي (دعْ مایُریبُک اِلی مَا لَا یرِیبُک) له دې حدیث نه په دوه طریقو سره تائید کوي او دا چې په حدیث کې ریب په شک ور حمل شوی او د محمول او محمول علیه ترمینځ فرق وي دویمه طریقه دا چې د ریب په مقابل کې لفظ د طمانیة راځي نو له دې نه هم معلومیږي چې ریب د شک په معنی نه دی بلکې په معنا د اضطراب او قلق ده.

---

(۱):- عبدالرحمن الجوزی رحمه الله فرمائي د ریب درې معناګانې دي (۱) ظاهراً نفي ده خو په معنی د نهي ده معنی داچې مناسبه نه ده چې ځوک پکې شک وکړي ځکه احکام د قرآن متقن اومظبوط دي دا مذهب د خلیل او ابن الانباري دی (۲) شک پکې ځکه نشته چې داکتاب هدایت لپاره د متقیانو دی دا قول د مبرد دی (۳) شک پکې ځکه نشته چې داکتاب من عندالله دی (تفسیر زادالمسیر: ۱/ ۲۷ (مکتبه حقالیة )

(۲):- مأرب الطلبة: ۱ / ۳۲٤.

## د هدایت معنی:

**تفسیربیضاوي**: (هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ) يَهدِيهم الى الحقِّ وَالهدى فى الأَصل مَصدرٌ كَالسُرى وَالتُّقى وَمعناهُ الدَّلالةُ وَقيلَ الدَّلالةُ المُوصِلة الى البُغْيةِ لأَنَّه جعَل مُقابل الضَّلالة فى قَوله تعالى لَعَلَىَ هدًى اَوفِى ضلالٍ مّبين [1])

**ترجمه**: قرآن لاربنونکی دی لپاره د مؤمنانو نو رهنمائي کوي مؤمنانوته د حق طرف ته او هدًی په اصل کې مصدر دی لکه سُری اوتقی پرهیزګاري ته وائي معنی د هدًی دلالت دی اوچا ویلي دي چې هدایت دلالت موصله الی المطلوب ته وائي ځکه چې الله (جَلَّجَلَالُهُ) په خپل دې قول کې هدایت دضلالت مقابل ګرځولی دی (ترجمه) زمونږ اوتاسې څوک په هدایت او څوک په ښکاره ګمراهۍ کې دي.

**تشریح**: له دې ځای څخه درې بحثونه شروع کوي او بحث د هدًی تحقیق کوي دویم بحث د متقین تحقیق کوي او دریم بحث د هدًی للمتقین مجموعه تحقیق کوي

**اول بحث**: یهدیهم الی الحق: غرض د قاضي رحمه الله په دې سره دفع د یو سوال دی

**سوال**: دلته هدًی حال دی اوحال حمل وي خو دلته حال مصدر دی او د دې حمل مواطاط نه دی جائز؟

**جواب**: دا وائي چې هدًی دلته مبني للفاعل دی په معنی د هاديٌ سره دی او هادی یهدیهم الی الحق کوي او معنی ئې الدلالة دی دلالت نه مراد دلالت بلطف دی چې خلق اسباب طاعة دی چې دا دلالت موصله او ارائت الطریق دواړو ته راځي دا ځکه چې الدلالة کې الف لام عهدي دی او معتزلهٔ ویلي دي چې مراد له دلالت نه دلالت موصله الی المطلوب دی، د دې لپاره دوئ دوه دلائل وائي:

(۱) هدایت مقابل دضالت دی نو ضلالت کې عدم ایصال وي نو هدایت کې به ایصال وي.

**ردالدلیل**: لکن دا دلیل د دوئ غلط دی ځکه دلته ضلالت مقابل د هدایت لازمي کې راغلی یعنې اهتداء دی او زمونږ خبره په هدایت متعدي کې ده او بل دا چې دائې په صیغه د تمریض سره ذکر کړی.

---

[1]:- سورة السباء: آية ٢٤.

**تفسیربیضاوي**: (وَلأَنَّه لَایُقال مُهدی الّا لِمَنْ اِهتَدی اِلی المَطلُوب واِخْتِصَاصُه بِالمُتَّقِین لأَنّهم المُهتَدُون بِه والمُنْتَفِعُون بِنَصبِه وإن كَانَتْ دَلالة عَامَة لِكلِّ نَاظِر من مُسلم او كَافِر بِهذا الاعتِبار قَالَ تعالی ( هُدًی لّلنّاس) أو لأَنّه لَايَنتَفع بِالتأمّل فِيه الّا مِن صَقَل العقلَ وَاسْتعمَلهُ فی تَدْبیرالآیاتِ وَالنّظر فِی المُعجزاتِ تَعرف النبوات لِانّهٗ كَالغذاءِ الصَّالح لحِفظِ الصِّحة فَانّهٗ لَایَجْلِب نَفعًا مَالمْ تَكنِ الصّحة حَاصِلة وَالیهِ أَشار بِقوله تعالی (وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَاهُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَلَایَزِيْدُ الظّالِمِیْنَ اِلّا خَسَارًا[1])

**ترجمه**: او بل له دې وجې چې داسې نه ویل کیږي فلاني په سمه لار دی مگر هغه چاته ویل کیږي چې مطلوب ځېل ته رسیدلی وي او اختصاص د دې هدایت لپاره د متقینو دی ځکه دوئ په قرآن سره هدایت حاصلونکي دي او دوئ په دلائلو د قرآن نفع حاصلونکی دي اګر چې هدایت د قرآن هر ناظر لره عام دی که مسلمان وي او که کافر وي په دې اعتبار الله جلّ جلاله فرمایلي دي دا قرآن د ټولو خلکو لپاره هدایت دی.[2] او بل دا چې نفع نه اخلي له هدایت د قرآن په سبب د فکر مګر هغه څوک چې عقل ئې صفا کړی وي او ځپل عقل ئې په سوچ او فکر د آیاتونو کې استعمال

---

(۱):- سورة الاسرآء : آية ۸۲.

(۲) تفسير القرطبي (۱/ ۱٦۱)

قَوْلُهُ تَعَالَى: لِلْمُتَّقِينَ. خَصَّ اللَّهُ تَعَالَى الْمُتَّقِينَ بِهِدَايَتِهِ وَإِنْ كَانَ هُدًى لِلْخَلْقِ أَجْمَعِينَ تَشْرِيفًا لَهُمْ، لِأَنَّهُمْ آمَنُوا وَصَدَّقُوا بِمَا فِيهِ

و تفسير الزمخشري - الكشاف عن حقائق غوامض التنزيل (۱/ ۳۵)

فإن قلت: فلم قيل: هُدىً لِلْمُتَّقِينَ والمتقون مهتدون؟ «۱» قلت: هو كقولك للعزيز المكرم: أعزك الله وأكرمك، تريد طلب الزيادة إلى ما هو ثابت فيه واستدامته، كقوله: (اهْدِنَا الصِّراطَ الْمُسْتَقِيمَ) . ووجه آخر، وهو أنه سماهم عند مشارفتهم لاكتساء لباس التقوى: متقين، كقول رسول الله صلى الله عليه وسلم «من قتل قتيلا فله سلبه» «۲» وعن ابن عباس: «إذا أراد أحدكم الحج فليعجل فإنه يمرض المريض وتضل الضالة، وتكتنف الحاجة» «۳» فسمى المشارف للقتل والمرض والضلال قال محمود رحمه الله: «فان قلت: فلم قيل هدى للمتقين والمتقون مهتدون ... الخ» . قال أحمد رحمه الله: الهدى يطلق في القرآن على معنيين: أحدهما الإرشاد وإيضاح سبيل الحق. ومنه قوله تعالى: (وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْناهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمى عَلَى الْهُدى) . وعلى هذا يكون الهدى للضال باعتبار أنه رشد إلى الحق، سواء حصل له الاهتداء أولا.-

-والآخر خلق الله تعالى الاهتداء في قلب العبد، ومنه: (أُولئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُداهُمُ اقْتَدِهْ) فإذا ثبت وروده على المعنيين فهو في هذه الآية يحتمل أن يراد به المعنيان جميعاً. وأما قول الزمخشري: إن القرآن لا يكون هدى للمعلوم بقاؤهم على الضلالة، فإنما يستقيم إذا أريد بالهدى خلق الاهتداء في قلوبهم. وأما إذا أريد معناه الأول، فلا يمتنع أن الله تعالى أرشد الخلق أجمعين، وبين للناس ما نزل إليهم فمنهم من اهتدى، ومنهم من حقت عليهم الضلالة. هذا مذهب أهل السنة.

کړی وي او خپل نظر ئې په معجزاتو او پیژندنه د دلائلو نبویه وو کې استعمال کړی وي قرآن پشان صالح غذاء دی لپاره د حفاظت د صحت ځکه چې صحت صحیح نه وي نو غذاء څه فائده نه ورکوي او دې مضمون ته الله جلّ جلاله په خپل دې قول کې اشاره کړې ده مونږ نازله وو د قرآن هغه حصې چې په هغې کې شفاء او رحمت دی او نه زیاتوي ظالمانو لره مګر تاوان.

**تشریح**: دا دوهم دلیل د معتزله ؤو بیانوي چې هدایت نه مراد دلالت موصله الی المطلوب دی ځکه مهدي مشتقي دی او مهدي هغه چاته ویل کیږي چې مطلوب ته رسیدلی وي نو چې مشتقي کې ایصال معتبر شو نو په مبداء کې چې هدایت دی خو په طریقه اولی معتبر وي.

ردالدلیل: په دې مشتقي کې که ایصال دا د ذات له وجې نه دی معتبر بلکه د قرائنو خارجیه وو له وجې معتبر دی په مقام د مدحې کې هم استعمالیږي او په مقام د ذم کې هم استعمالیږي لکه (وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَیْنَاهُمْ).

**سوال**: الله جلّ جلاله قرآن ته هدایت لپاره د متقینو ویلی دی هدًی للمتّقین او حال دا چې قرآن متقي او غیر متقي دواړو ته هدایت دی ؟

له دینه ورته دوه جوابونه کوي چې دواړه به د متقین په دوه معناګانو بناء وي.

(۱) **جواب**: یو د متقي معنی ده چې التقوی عن الکبائر ځان ساتل له غټو ګناهونو ،نو که دغه معنی واخلی نو معنی به دا شي قرآن هدایت دی هغه چاته چې ځان ساتي له غټو ګناهونو څخه یعنې هدایت دی اولیاؤو ته دغسې غیر ولي ته هم هدایت دی خو غیر ولي په مقابله د دوئ کې کالعدم دي نازلة منزلة المعدوم.

(۲) **جواب**: (أو لأنّه لَایَنتَفع بِالتأمّل فِیه الّا مِن صَقّل العقلَ) چې د متقي معنی اجتناب عن الشرک واخلی په دې کې ټول مسلمانان وَلیّان دی ځکه ټولو اجتناب د شرک نه کړی دی نو په دې معنی ئې هدایت تر متقینو پورې ولې خاص کړو وجه دا ده چې قران کریم نه فایده هغه کس اخستلی شي چې عقل یې له ګندګي څخه صفا کړی وي په معجزاتو او په دلایلو د نبوت کې یې غور کولو سره یې ایمان راوړی وي ځکه هدایت په منزله د غوړیو دی او دا تقوی په منزله د صحت دی نو چې صحت

دې خراب وي غوړي دي نور هم خرابوي او که صحت دې ښه وي نو غوړي به دې نور هم ښه کړي يعنې ايمان په منزله د صحت دی او دا هدايت په منزله د هغې دوائي دی چې نافعه وي له دې وجې نه کافرانو ته قرآن نور هم مرض ورزياتوي ځکه هغوی ايمان نه لري دغسې لکه د ګلمُو مريض باندې چې غوړي وخوړئ نورئې هم خرابوي او که صحت دي ښه وي نور دي هم قوي کوي.

لکه الله تعالى فرمايي: (وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَاهُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَلَايَزِيْدُ الظَّالِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا) له قران څخه مونږ داسې مضامين نازلو چې د مومنانو لپاره روحاني شفا او رحمت وي او د ظالمانو لپاره يوازې تاوان زياتوي. نو چې کله قران د کفارو لپاره تاوان زياتولو نو ځکه تخصيص د متقينو وشو په هدايت سره

او همدارنګه الله جلّ جلاله نبي عليه الصّلوة والسّلام ته وائي (اِنَّمَا اَنْتَ مُنْذِرٌ مَّنْ يَّخْشَهَا)[1] ته هغه چالره ويرونکی ئې چې ويريږي او حال دا چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ويريدونکو او غير ويريدونکو دواړو لپاره ويرونکی دی.

**تفسيربيضاوي:** ( وَلَايَقدحُ مَافيهِ مِن الجُمَل والمُتشابِه فِي كَونه هُدًى لِمَا لَم يَنفَک عَن بَيان تَعِين المُراد مِنه).

**ترجمه:** او د قرآن په هدايت کيدو کې هيڅ ايات مجمله اومتشابه عيب او نقصان نه پيداکوي ځکه چې هغه هم د مراد د تعين نه خالي نه دي.

**تشريح:** دې سره دفع د اعتراض ده هغه دا

**سوال:** تاخو قرآن ته هدايت وويل او په قرآن کې خو مجملات اومتشابهات دي لکه الٓمٓ وغيره د دې په معنی خو څوک نه پوهيږي او هدايت خو د دې تقاضا کوي چې په معنی به ئې خلک پوهيږي؟

---

(۱):- سورة النزعات :آية (۸۱).

**جواب**: (ولايقدح من الجمل والمتشابه فى كونه هدًى لما لم ينفک عن بيان تعين المرادمنه) ستا اعتراض په هغه چا وارد دی چې هغوی متشابهاتو ته غير معنا مراد وايي او مونږ متشابهاتو ته معلوم المراد وايو لکه قاضي بيضاوي رحمه الله وايي: هيڅ عيب نه لګوي چې مجمل او متشابه دې په قرآن کې هدايت شي ځکه دا مجمل او متشابه نه دي خالي له بيان د تعين د مراد نه (منه) ضمير مافيه ته راجع دی.

دا **جواب**: په طريقه د شوافعو دی ځکه مصنف شافعي دی.

او احناف چې هغوی متشابهاتو ته غير معلوم المراد وايي داسې جواب کوي دا مجمل او متشابه هم هدايت دی خو په دې طريقه چې يو د جاهل امتحان دی او بل د عالم امتحان دی په جاهل دا امتحان دی چې علم وکړه مهملي پرېږده فرائض و غيره ياد کړه او د عالم امتحان دا دی چې عالم خو په علم کې شپه او ورځ مشغول وي يعنې علم او زده کړه ئې معشوقه وي نو ده ته الله جلّ جلاله وائې د متشابهاتو معانيو پسې مه ګرځه نو د خپلې معشوقې نه ئې حصاروي نو که عالم ترې نه حصار شو نو عدم علم د معنی مرادي د عالم لپاره هدايت دی.

**تفسيربيضاوي**: (وَالْمُتَّقِى اِسمُ فاعلٍ منْ قولِهِم وَقَاهُ فاتَّقَى والوِقايَة فَرط الصِّيانَة وَ هوُ فى عُرف الشَّرع اسْمٌ لمَن يَقِىْ نَفسهُ ممّا يَضُره فى الآخِرةِ)

**ترجمه**: متقی اسم فاعل دی له دې قول د عربو نه مأخوذ دې هغه لره ئې محفوظ کړ (زيد عمرو لره محفوظ کې) نو هغه محفوظ شو و قايه نهايت محفوظيت ته ويل کيږي او په عرف د شرعه کې د هغه چا نوم دی چې خپل ځان محفوظ کړی د هر هغه شي نه چې په آخرت کې ده ته ضرروي.

**تشريح**: دويم بحث: متقی له باب افتعال نه د اسم فاعل صيغه دی په اصل کې موتقی وو واو په تاء سره بدل شو بيا تاء په تاء کې مدغم شوه متقي شو او مجرد يې وقی يقی وقاية راځي په معنا د انتهايي احتياط او پرهيز سره متقي هغه انسان ته وايي کوم چې له داسې شيانو ځخه ځان ساتي کوم چې په اخرت نقصان ورکونکي وي او دا د متقی اصطلاحي تعريف دی.

## ( مراتب التقوى )

**تفسیربیضاوی:** ( وَلَهُ ثَلاثَ مرَاتِبٍ الأُولى التَوَقي مِن العَذابِ المُخَلَّد بالتَبَرِّى مِن الشِّرک وعَليه وقوله تعالى (وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَقْوى) [1]

**ترجمه:** اوتقوى لره درې مراتب دي اوله مرتبه د همیشه عذاب نه ځان ساتل په سبب دبې زارۍ د شرک ځخه او په دې مرتبې دا قول دالله تعالى دلالت کوي ترجمه الله جلّ جلاله هغوئ (صحابه) پورې کلمه د توحید لازمه کړې وه.

**تشریح:** دا اوله مرتبه دتقوى دى او په دې مرتبه کې ټول مسلمانان داخل دي او د کلمې د تقوى نه کلمه د توحيد چې لااله الاالله مراد دى او دې معنى سره ايمان ظاهري مراد دى.

**تفسیربیضاوي:** ( الثَّانيةُ التَّجنُّب عَن كلِّ مَايُؤثِم مِن فِعلٍ اوتَركٍ حَتَّى الصَّغَائِرعِند قَومٍ وَهو المُتعارَف بِاسم التَّقوى فِي الشَّرعِ وَهوالمَعنى بقوله تعالى (وَلَوْ انّ اَهلَ القُرى اٰمَنُوا وَاتّقوا [2])

**ترجمه:** دوهمه مرتبه د تقوى دادى چې د هر هغه شي نه ځان ساتل دي چې تا په ګناه کې مبتلا کوي هغه کول د يو شي وي اويا پريښودل د يو شي وي تردې چې د صغائرونه هم اجتناب وکړى شي په نزد د يو قوم او په شریعت کې په اسم د تقوى سره هم دامعنى متعارفه دى او همدا معنى مقصود د الله تعالى هم ده لکه دا قول دالله جلّ جلاله ترجمه که چيرته د کليو والا ايمان راوړي وائې او اجتناب ئې له ټولو معاصى وو ځخه کړى وائې او اِتيان ئې په ټولو حسناتو کړى وائې نو مونږ به پرې د هرشي دروازې راخلاصي کړى وائې.

**تشريح:** دويمه مرتبه دادى چې د هغې فعل يا ترک تا په ګنا کې غورځوي ،فعل لکه زنا کول اوترک لکه ترک الصلوة دواړه تاپه ګناه کې مبتلا کوي.

---

(١):- سورة الفتح : آية (٢٦).

(٢):- سورة الاعراف : آية (٩٦) .

## اجتناب عن الصغائر داخل دی په مفهموم د تقوی کې

دلته د معتزله و او متکلمينو اختلاف دی هغه دا چې اجتناب له صغائرو په مفهموم د تقوی کې داخل دی او که نه؟

متکلمين وايي : چې داخل دی او دليل دا وايي چې رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمايي:

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إن الرجل لا يكون من المتقين حتى يدع ما لا بأس به حذرا لما به بأس.[1]

سړی تر هغه د متقيانو درجې ته نه شي رسېدلی تر څو پورې چې هغه شيان پرې نه ږدې په کومو کې چې هيڅ باک نشته ځکه د دې شيانو په وجه چېرته په ګناه کې اخته نشي.

معتزله وايي: اجتناب عن الصغائر د تقوی په مفهوم کې داخل نه دی ځکه بيا به انبياء عليهم السلام د متقيانو له ډلې خارج شي ځکه انبياء عليهم السلام له صغائرو څخه قبل البعثت او بعد البعثت معصوم نه دي، خو اصل او بنيادي اختلاف په دې کې دی چې اجتناب عن الکباير مکفر د صغايرو دی او که نه.

(۱) بعضي علماء وائې چې اجتناب عن الکبائر دا مکفرد صغائرو دی يعنې غټو ګناهونو نه ځان و ساته واړه د رته الله هسې معاف کوي يعنې دصغائرو لپاره د توبې ضرورت نشته دا د معتزله و قول دی اګر که بعض اهل سنتو هم دا قول غوره بللی.

(۲) بعضي علماء فرمائي چې اجتناب عن الکبائر مکفر د صغائرنه دی بلکه صغائرونه هم اجتناب پکار دی يعنې دصغائرو لپاره د مستلقې توبې ضرورت دی.

او د قوم (متکلمينو) خبره ئې په صيغې د تمريض ذکر کړه ځکه که د تقوی دا دوهمې مرتبې لره اجتناب عن الصغائر شرط شي نو په ټوله دنيا کې به اولياء پيدا نشي حتى چې د بعضو خلکو په

---

(۱) المستدرك على الصحيحين للحاكم - كتاب الرقاق حديث:۷۹۷۱
أخبرنا عبد الله بن الحسين ، بمرو ، ثنا الحارث بن أبي أسامة ، ثنا هاشم بن القاسم ، ثنا أبو عقيل عبد الله بن عقيل الثقفي ، عن ربيعة بن يزيد ، وعطية بن قيس ، عن عطية بن سعد رضي الله عنه وكان من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه قال : ... هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه

نزد به انبیاء علیهم السلام هم اولیاء نتني ځکه دوی وائي چې انبیاء و نه قبل النبوة اوبعدالنبوة صغائر صادرېږي لاعندنا.

**تفسیربیضاوي**:( وَالثَّالثةُ أَن يَتَنَزَّه عمّا يَشغِل سِرّه [1] عَن الحقّ ويَتَبَتّل اليه بَشرا شِرِهِ وَهو التَّقوى الحَقِيقى المَطلُوب بِقوله تعالى (يَاَيهاالّذِيْنَ اٰمَنُوْا اتّقُواللّٰه حَقّ تُقَاتِه [2] وقدْ فسّرقوله (هُدًى لّلمتّقين) هَهُنا عَلى الأوجه الثلاثة).

**ترجمه**: دریمه مرتبه دا چې ځان وساتي د هر هغه څه نه چې د ده زړه او فکر د حق نه مشغوله وي او بالکلیه د الله جلّ جلاله طرفه متوجه شي او دا حقیقي تقوی دی او همدا د الله جلّ جلاله په دې قول سره مطلوب دی اې ایمان والاوو د الله جلّ جلاله نه وویرېږئ په حقه ویرې سره او تفسیر شوي دی د دې قول چې هدًى للمتّقين په دې درې واړو مراتبو سره.

**تشریح**: هُدًى لّلمُتّقِيْن تفسیر په درې واړه مراتبو د تقوی شوی هغه داسې .

(۱) هدًى لّلمتّقين دا هدایت کوي هغه چاته چې ځان د شرک نه ساتې لکه الله تعالی فرمایي والزمنهم كلمة التقوى نو څوک چې شرک نه ځان ساتي هغه خو په هدایت دی دا وائي چې دې نورو دواړو مراتبو طرف ته ورته هدایت کوي نو تحصیل د حاصل رانغلو او دا عوامو مرتبه دی.

(۲) هدًى للمتّقين دا هدایت کوي هغه چاته چې ځان له څه ساتي چې دی په ګناهونو کې اخته کوي که له قبیلې د فعل څخه وي او که له قبیلې د ترک څخه وي او دېته الله تعالی په دې قول کې اشاره (ولو انّ اهل القرى امنوا والتقوا ) دا مرتبه بیا هدایت هغې دریمې مرتبې ته کوي او دا دخواصو مرتبه دی.

(۳) هدًى لّلمتّقين دا هدایت هغه چاته کوي چې هرهغه شي نه ځان ساتي چې د ده روح د الله نه غافله کوي او په پوره ډول الله جل جلاله طرفته متوجه شي او دېته الله تعالی په دې قول کې اشاره کړې ده (والتقوا الله حق تقاته) دې کس ته په دې شان هدایت دی چې دا مرتبه یو

---

(۱):- سِرّ هغو بټو خبروته ویل کېږي چې د انسان په نفس کې پیداکېږي لکه الله جلّ جلاله فرمائي يَعْلَمُ سِرّهُم وَنَجْوَاهُمْ اومراد ترینه محل ده چې زړه اوفکر ده (حاشية الشهاب : ۱ / ۱۹۸.

(۲):- سورة آل عمران : آية ۱۰۲ .

بحرعميق دى چې مخکې پکې لاړشى په دې کې خپله ډير مراتب دي چې څوک ئې آخر ته نه دي رسيدلي، نو دا بيا هغو مراتبو ته هدايت کوي او د اخص الخواص مرتبه دى.

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معنى |
|---|---|---|
| ۱ | تبرى | بيزاري |
| ۲ | تبتل | متوجه |
| ۳ | شراشر | بالکليه |
| ۴ | تنزه | پاکي |

## (الٓمٓ ترکيب)

**تفسيربيضاوي**: ( وَاعْلَمْ أَنّ الآيَةَ تَحتَمِلُ أَوجهًا مِن الإعرابِ انْ يَكونَ (الٓمٓ) مُبتداء عَلى أَنّه اسمٌ للقُرآن أو السُّورة أَومُقدَّرٌ بالمُؤَلَّف مِنهاوَ(ذلک)خَبرُه وَإن كانَ أَخصّ من المُؤلَّف مُطلقًا وَالأَصلُ انّ الأَخصَّ لَايَحمِل عَلى الأَعمِّ لأَنّ المُرادَ به المُؤلفُ الكَامل فِي تَألِيفه البَالِغ أَقصى دَرَجات الفَصاحَة وَمرَاتبِ البَلاغَة وَالكتَابُ صفَّة ذلِك.

**ترجمه**: پوهه شه چې دا آيات د اعراب د يوڅو وجوهاتو احتمال لري اول دا چې الٓمٓ مبتداء شي بناء په دي چې دا اسم د قرآن دى او يا اسم د سورت دى اويا د «المؤلف من هذه الحروف» په تاويل سره واخستل شي بيا به ذلک د دې لپاره خبر وي او ذلک (خبر) اګر که په مقابل د «المؤلف من هذه الحروف» کې خاص دى او قاعده هم داده چې خاص په عام باندې نه حمل کيږي خو دلته حمل کيديشي ځکه دا المؤلف نه مراد مؤلف کامل دى چې انتهاء درجې د فصاحت او مراتبو دبلاغت ته رسيدونکى وي او دا کتاب به د دغه ذلک صفت وي.

**تشريح**: **دريم بحث**: په الٓمٓ ذلک الکتاب کې شپږ ترکيبه دي درې اوس کوي او درې د لاريب فيه د ترکيب نه روسته کوي.

**اول ترکیب**: دا چې الٓمّٓ اسم د سورت شي دوهم دا چې الٓمّٓ اسم لپاره د قرآن شي او دریم دا چې الٓمّٓ مؤول په المؤلف من هذه الحروف شي، په دې درې واړو احتمالاتو کې دا مبتداء او ذالک ورته خبر دی او کتاب صفت د ذالک لپاره دی.

**سوال**: الٓمّٓ تا مؤول که په المؤلف من هذه الحروف او دا اعم دی او ذلک ئې خبردی او دا اخص دی.

او حمل د اخص خو په اعم نه دی جائز [1] لکه الحیوان انسان خو خلک نه وائي بلکه الانسان حیوان دی ؟

**جواب**: المؤلف من هذه الحروف په ظاهرکې تا ته اعم ښکاري خو په حقیقت کې اخص دی چې المؤلف الکامل دی او المؤلف الکامل یوازې ذلک الکتاب دی اومساوي دی له ذلک الکتاب سره نو حمل د مساوي په مساوي راغئ.

**تفسیربیضاوي**: وَأَن یکونَ (الٓمّٓ) خَبرمُبتداءِ مَحْذُوف وَذلک خَبرًا ثانیًا أَوبدلًا وَالکِتاب صِفَّته)

**ترجمه**: یا الٓمّٓ د مبتداء محذوفې لپاره خبردی او ذلک ئې خبرثاني دی اویا ورنه بَدل دی اوکتاب صفت د ذلک دی.

**تشریح**: دا دوهم ترکیب دی هغه دا چې که الٓمّٓ اسم د قرآن یا د سورت شي اویا مؤول په المؤلف من هذه الحروف شي نو بیا به مبتداء محذوفه وي لکه هذا مبتداء الٓمّٓ خبر یا المتحدی به مبتداء او المؤلف من هذه الحروف ئې خبر او ذلک موصوف او کتاب صفت ،صفت سره له موصوفه خبر ثاني د مبتداء.

**تفسیربیضاوي**: ( وَلَارَیْبَ) فِی المَشهُورةِ مَبنِیٌّ لتَضَمُّنه مَعنی مِن ،مَنصُوبُ المَحلِّ علی أَنّه اسمٌ لا النَّافیة لِلْجِنس العَاملة عَمل اِنّ لأَنّها نَقِیضُها ولازِمة لِلأَسمآء لُزُومَها).

**ترجمه**: او لاریب په قرائت مشهور کې چې داد محققینو نُحاتو مذهب دی مبنی دی ریب مبنی بالفتحه دی له وجې د متضمن کیدو معنی د مِن لره محلًا منصوب دی په دې شرط چې دا

---

[1]:- اخص په اعم نه ورحملیږي ځکه اعم انتزاعي اوتابع دی له انسان نه منتزع دی انسان زړه ته وائي ځکه مرکز ئې زړه دی دا زړه له دې حیثیته چې مبداء د حیات ده حیوان ترینه منتزع دی اوله دې حیثیت چې دا مبداء د ادراک المعقولات ده نو ناطق ترینه منتزع دی

اسم د لاء نفی جنس ده چې د غه عمل د انّ په شان کوي ځکه چې لاء نافیه نقیض د انّ دی، او لاء نفی جنس د اسمآء سره لازم دی لکه لزوم د انّ له اسمآء وو سره.

**تشریح**: له دې ځای څخه د لاریب تحقیق کوي: په لاریب کې دوه قرآئته دي (۱) لاریبَ په فتحې د با (۲) لاریبُ په ضمې د باء سره خو متواتر قرائت د لاریب په فتحې د باء سره دی او په دې کې دوه ترکیبه کوي (۱)

دا کلمه د لاء لنفی الجنس دی [۱] او ریب اسم د لاء دی او چې کله اسم د لاء نفی جنس نکره مفرده راشي نو مبنی به په فتحې سره وي او منصوب به محلاً وي او س مبنی به ولې وي، ځکه چې دغه نکره مفرده متضمنه ده معنی د مِنْ لره او مِنْ حرف دی او حروف ټول مبنیات دي نو د دې مشابهت له امله دا نکره هم مبنی شوه او متضمن معنی د مِنْ لره ولې وي ځکه چې دا غالبًا په جواب د مِنْ استغراقي کې راځي لکه سائل چې سوال کړی وي هَل مِن ریب دا ورته جواب کې وائي لاریب ای لا مِن ریب.

او منصوب به محلًا ولې وي ځکه چې دا لاء نفی جنس عمل د انّ کوي انّ اول اسم ته نصب دویم ته رفعه ورکوي دغسې لا لنفی الجنس هم اول ته نصب دویم ته رفعه ورکوي پاتې شوه دا خبره چې لا لنفی الجنس عمل د انّ ولې کوي نو دا ورته جواب کوي چې ځکه د لا لنفی الجنس له انّ سره شبه تضاد او شبه د تجانس لري شبه د تضاد هغه داسې چې انّ راځي لپاره د تحقیق د اثبات او لا لنفی الجنس راځي لپاره د تحقیق د نفي ګویا چې په دې دواړو کې تناقض پیدا شو نو احد النقیضین مو په اخر ور حمل کولو نو لا ته مو انّ عمل ورکړو.

او شبه د تجانس ده داسې چې لکه څنګه چې انّ په اسماء باندې داخلیږي فعل او حرف باندې نه داخلیږي دغسې لا لنفی الجنس هم په اسم داخلیږي او په فعل او حرف نه داخلیږي ګویا دا لزوم

(۱):- لاء نفی جنس عمل دحروف مشبه بالفعل په شان کوي چې کله ئې اسم مضاف وي لکه لاغلام رجل ظریف فی الدّار اوکه اسم ئې نکره مفرد وو بیا دا اسم مبنی په فتحې سره وي لکه لا رجل فی الدّار اوکه اسم ئې معرفه وو دالام له بلې معرفې سره مکرر وو نو دلته به لام ملغاة العمل وي اواسم به مرفوع بنا برابتدائیت وي لکه لازید عندی ولا عمرو اوکه اسم د لام نکره و اودا لام له بلې نکرې سره مکرر وو بیا په دې کې پنځه وجې جائزدي (نحومیر).

په اسم کې په دواړو کې مناسبت شو او دواړه د يو بل مثالونه شول نو احد النظيرين په يو بل حمل کولو سره مو لا ته د انّ عمل ورکړو.

**تفسيربيضاوي**: (وَفى قِراءَة إلى ابي الشَعَثَاء مَرفُوع بِلا أَلتَّى بِمعنى لَيس فِيه خَبرهُ وَلَم يُقدَم كماقَدَّمَ فى قوله تعالى (لَافِيْهَا غَوْلٌ [1]) لِأَنَه لَم يَقصدْ تَخصِيص نَفى الرَّيبِ به مِن بَين سَائِرالكتَاب كَمَا قَصدَ ثَمَّة اوصِفَّته وللْمتَّقينَ وَخبَرهُ وَهُدى نَصب عَلى الحَالِ)

**ترجمه**: او «ريب» په قرائت د ابى شعثاء کې مرفوع دى په هغې لا چې په معنى د ليس سره دى او «فيه» ئې خبر دى او دا فيه په لاريب مقدم نکړى شو لکه څنګه چې په دې قول دالله جلّ جلاله کې مقدم کړى شوى «لا فيها غول» ځکه د ټولو اسماني کتابونو ترمينځ تخصيص د نفى د ريب يوازې له قرأن پورې نه ده قصد کړى شوي لکه څنګه چې په «لافيها غول» کې تخصيص قصد شوى دى او يا ئې کائنٌ صفت دى او للمتقين ورته خبر ده او هدًى بناء په حاليت منصوب ده.

**تشريح**: دلته د خبر متعلق بحث کوي. ابو شعثاء مشهور تابعي دى چې نوم ئې سليم بن اسود دى دا وائې چې دا لاء لنفى الجنس نه دى بلکه لام په معنى د ليس دى ريب اسم د ليس دى او فيه ورته خبر دى، خو اول قرائت قوي دى ځکه هلته لاء لنفى الجنس ده او هلته نفى د ټولو افرادو د ريب راغلي ده ځکه په انتفاء د جنس سره انتفاء د ټولو افرادو راځي لکه په انتفاء د حيوان سره انتفاء د ټولو حيواناتو راځي يعنې د لته نفى د ټولو افرادو يقينًا راځي په خلاف د لا مشابه بليس هلته نفى د ټولو افرادو راځي خو احتمالًا ځکه دلته لام لپاره د نفى جنس نه ده بلکه لام لنفى نکرة ده چې ريب دى او ريب نکره ده کله له دې نه فرد غيرمعين مراد وي او کله جنس مراد وي نو که فرد غيرمعين مرادشي نو يو فرد دې نفى کړ او که جنس ترينه مراد شي جنس دې نفى کړ نو يقين په نفي د ټولو افرادو نشته محتمل د احتمالينو دي.

---

(۱):- سورة الصافاة : آية ۲۷.

## په لاریب کې درې ترکیبه

لَا فِيْهَا غَوْلٌ: په دې کې درې ترکیبه دي 21

(۱) چې دا لاء فیها ته متوجه کړې نو دا به قضیه موجبه معدولة المحمول[۱] شي نو معنی به داشي چې دا غَوَل مقصور دی تر «لافیها» پورې ای عدم کون فی خمور الجنة، (نشتوالی دفساد عقل یا سر درد په شرابو د جنت کې)

(۲) او که لاء غول ته متوجه کړی نو دا به قضیه موجبه معدولة الموضوع شي نو معنا به دا شي چې عدم سر درد (غول) چې دی دا مقصور تر کون پورې فی خمر الجنة.

(۳) او که لاء دې نسبت ته متوجه کړې کوم چې په «لافیها او غول» کې دې نو دا قضیه سالبه بسیطه دی نو معنی به دا شي چې دا سر درد (غول) لافیها یعنې نشته په خمورو د جنت کې نو په دې ترکیب کې تقدیم د اسم لپاره د قصر دی او دا قصر صحیح دی ځکه غول په خمور د جنت کې نشته او په خمورو د دنیا کې شته ما یوجد فیه ولایوجد فی غیره.

نو که دلته داریب مقدم کړې اولافیه ریب ئې ووائې ، او دا قضیه معدولة المحمول کړې نومعنی به دا شي داریب چې دې مقصوردی ترعدم کون فی القرآن اوکه معدولة الموضوع ئې کړی نومعنی به دا شي عدم د ریب مقصوردی ترکون فی القرآن پورې او که سالبه بسیطه ئې کړی نومعنی به دا شي چې ریب په قرآن کې نشته بهر تقدیر دلته معنی د قصرنه ده صحیح ځکه قصر وائې مایوجد فیه ولایوجد فی غیره ته نو قرآن کې به ریب رانشي اوپه نورو کتب سماویه وو کې به ریب راشي او حال دا چې په هغو کې هم ریب نشته.

**تفسیربیضاوي:** ( أوِ الخَبرُ المَحذُوف كمَا فِي لَا ضَيْرَ ولِذلک وُقِفَ على (لَا ريبَ) عَلَى أَنّ فِيه خَبر هدًى قَدَّم علَيه لِتنكِيرِهِ وَالتَّقديرُ لاريبَ فِيه فِيه هُدًى )

---

(۱):- قضیه حملیه په دوه قسمه ده یوه معدوله دوهمه محصله : معدوله هغه قضیه ده چې حرف نفی ئې جزء گرځیدلي وي بیا دابه درې قسمه ده (۱) معدولة الموضوع (۲) معدولة المحمول (۳) معدولة الطرفین ، معدولة الموضوع هغه ده حرف نفی جزء دموضوع وي معدولة المجمول هغه ده چې حرف نفی جزء دمحمول وي اومعدولة الطرفین هغه قضیه ده چې حرف نفی جزء دطرفینو وي.

**ترجمه**: او یا دلته خبر محذوف دی لکه په «لاضیر» کې فیه محذوف دی ای لاضیر فیه) او له دغه سبب نه په لاریب وقف کیدلی شي او مقدم کړی شو په دې باندې له وجې د نکارت نو تقدیر داشو لاریب فیه فیه هدًی للمتّقین.

**تشریح**: دا دریم ترکیب دی او دلته معانقه دی معانقه دې ته وائې چې د یو آیات په منځ کې چې درې نقطې راشي، هدی مبتداء او فیه ئې خبر ای فیه هدی للمتقین د ادنی تخصیص لپاره خبر په هغې مبتداء مخکې کولی شې چې کومه مبتداء نکره واقع شي چې دابتدائیت مستحقه وګرځي په لاریب فیه فیه هدی کې اوله فیه مقدر دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وأَن یکونَ (ذَلک) مُبتدَاء و(الکتَاب) خَبرهُ عَلى مَعنی أَنّه الکِتَاب الکَامِل الّذی یَستَأهِل أَن یُسمّى کتَاباً أَو صِفَّته وَمابَعده خَبرهُ والجُملَة خَبرُ(الٓمٓ)

**ترجمه**: او یا ذلک مبتداء او الکتاب ئې خبر دی معنی به داشي چې دا کامل (پوره) کتاب دی چې د دې لائق دی چې کتاب ورته وویلی شي یا ذلک موصوف او کتاب ورته صفت دی (موصوف سره دصفت نه مبتداء) اومابعد (لاریب فیه ) ورته خبر دی مبتداء سره د خبرنه ټوله جمله خبر د الٓمٓ شوه (المؤلف من هذه الحروف ذلک لاریب فیه شو).

**تشریح**: په الٓمٓ کې درې ترکیبه مخکې مونږ کړی وو او درې ترکیبه اوس نور کوي

(۱) الٓمٓ مبتداء او ذلک مبتداء ثاني او الکتاب خبر د مبتداء ثاني مبتداء ثاني سره له خپل خبر دا بیا خبر د مبتداء اولی.

**سوال**: مونږ په تلخیص المفتاح کې وایو چې مبتداء او خبر دواړه معرفې وي او یو پکې بیا معرفه بلام وي نو دا معرفه بلام په مقصور وي او غیر معرفه بلام به مقصور علیه وي لکه زید الرجل دلته رجلیت تر زید پورې مقصور دی نو ذلک الکتاب کې به دا کتاب یوائې تر ذلک (قرآن یا سورت یا المؤلف من هذه الحروف) پورې مقصور وي او حال دا چې کتاب خو ذلک پورې مقصور نه دی بلکه بیضاوي هم کتاب دی مطول هم کتاب دی احقاق الحق هم کتاب دی یعنې تر دې درې معانیو د الٓمٓ پورې مقصور نه دی چې یا قرآن دی یا سورت دی یا المؤلف من هذه الحروف دي؟

**جواب**: کتابوالی تر ذلک پورې مقصورنه دی بلکه کاملر الی تر ذلک پورې مقصوردی یعنې کامل کتاب پوازې ذلک دی.

(۲) الٓمٓ مبتداء اوله ذلک موصوف الکتاب ئې صفت موصوف سره دصفت نه دا مبتداء ثاني لاریب فیه ئې خبر مبتداء سره دخبرنه دا خبر دمبتداء اولې.

**تفسیربیضاوي**: ( وَ ألاوْلی أَن یُقالَ أَنّها أربعُ جُملٍ مُتناسِقةً یُقَرِّرُ اللّاحقَة مِنْها السَّابقَة وَلِذٰلک لَم یَدْخُل العَاطِف بَینَهُما ف( الم) جُملةٌ دَلَّت عَلی أَنّ المُتحدَّی به هُو المُؤلف مِن جِنْس مَایُرکّبونَ منْه کَلامَهم و(ذٰلِک الکتابُ) جِملةٌ ثَانیَة مُقرِّرةٌ لجِهةِ التَّحدِّی بانّه الکِتابُ المَنعُوت بِغایةِ الکَمَالِ ثُمَّ سَجَل علی کمَالِه بِنَفی الرَّیب فیْهِ و(لَارَیْبَ فِیْهِ) جُملةٌ ثَالثَة تَشهَد علی کَمالِه اِذ لَاکمَالَ أَعلی مِمّا لِلحَقِّ والیَقِین وَ(هدًی لّلمتّقین) بِمایُقَدَّر لهُ مُبتداء جملة رَابعَة تُؤَکّد کونَه حقًّا لَایَحُوم الشَّک حَولَه بانّه (هدًی للمتَّقین).

**ترجمه**: غوره خبر دادی چې وویلی شي چې دا څلور جملې دي چې د یو بل سره منضمې او پیوستې دي سابقه جمله لاحقه جمله ثابتوي نو له دې وجې نه ئې په منځ کې حرف عطف رانه وړل شونو (الٓمٓ) جمله دلالت کوي په دې چې دا کتاب په کوم چې طلب دمعارضې شوی له جنس د هغه حروفو تهجیه وو څخه جوړ دی کومو نه چې دوئ خپل کلام مرکب کوي او (ذلک) جمله ثانیه ده دا جهت د تحدی لره ثابتوونکې ده (مطلب داچې په دې کتاب سره طلب د معارضې شوی چې دا حق دی ځکه کامل کتاب دی اوڅوک ئې معارضه نشي کولی) چې دا کتاب په نهایت کمال سره موصوف دی بیائې محکمتیا کړې ده د دغه کتاب په نفی دریب سره په دې کتاب چې دې کتاب کې هیڅ ریب نشته اولاریب فیه دریمه جمله ده دا په کمال د دغه کتاب شاهد ده ځکه نشته کمال اعلی د هغه کمال نه کوم چې حق ا و یقین لره دی او (هُدًی لمتقین) سره د دې نه چې دې لپاره مبتداء مقدره ده ای هو هدی للمتقین دا څلورمه جمله ده د دې کتاب د حق کیدلو تاکید کوي او شک له دینه ګیرچاپیره نه ګرځي ځکه دا هدایت دی متقیانو ته.

**تشریح**: مخکې چې کوم تراکیب ذکر شوه هغه د احتمال په درجه کې دي کوم نکته او د بلاغت څه فایده پکې نه ښکاریده قاضي صیب داسې ترکیب ذکر کوي چې په هغې کې بلاغت موجود وي نو فرمايي چې ښه خبره داده چې له الم نه تر هدی للمتقین پورې دا څلور جملې اومنلی شي او هره جمله له خپل ماقبل سره وتړلی شي

(۱) الٓمٓ خبر د مبتداء محذوفې که اسم د قرآن شي هذا مبتداء الٓمٓ خبر او که اسم د سورت شي هم هذه مبتداء الٓمٓ خبر اوکه عبارت له المؤلف من هذه الحروف شي نو المتحدی به مبتداء الٓمٓ خبر شي.

(۲) ذلک مبتداء او الکتاب خبر دابله جمله.

(۳) لاریب فیه مستقله جمله ده څنګه چې مونږ مخکې وویل.

(۴) هدًی للمتّقین دلته هدی مبتداء للمتقین ئې خبر.

## د ربط دوه طریقې

او د هرې جملې له بلې سره ربط دی او د ربط دوه طریقې دي:

لومړی ربط: هره روستنۍ جمله د مخکینۍ جملې لپاره تاکید اومنلی شي یا داسې ووایه هره روستنۍ جمله په مخکې جملې مشتمله وي او د تاکید او مؤکد په مینځ کې کمال اتصال وي او د کمال اتصال له وجې حروف عاطفه پرېښودل شول لکه المتحد به الٓمٓ (المؤلف من هذه الحروف) دایوه جمله دی ولې (المتحدبه) دي؛ ځکه ذلک الکتاب یعنې دا کامل کتاب دی ،بله جمله دا چې ولې کامل کتاب دی ځکه لاریب فیه دی شک پکې نشته او په کامل کتاب کې شک نه وي دابله جمله شوه او ولې پکې شک نشته ځکه هدی للمتقین دی نو په دې څلور واړو جملو کې روستۍ جمله د مخکی لپاره تاکید دی او ربط مصنف راروان درس کې ذکرکړی.

**تفسیربیضاوي**: (أَو تَستتبِع السَّابقَة مِنهَا اللَّاحقَة اِستِتباع الدَّليلِ لمَدلُول وَبَيانُه أَنَّه لمَّا نَبَّه أَولًا على إِعْجازِ المُتَحدَّى به من حَيثُ انَّه من جِنسِ كَلامِهِم وَقَدعَجزُوا عَن مُعارضَتِه اِستَنْتَج مِنه انّه الكتَاب البَالِغ حَدَّ الكمالِ وَاستلزَم ذَلک أَنْ لايَتَشبَّث الرَّيب بِأَطرَافه إِذ لا أَنقَض مِمّا يَعتَرِيْه الشَّک والشبْهَة وماكَان كذَلک كَان لَامحَالةَ (هدًى لّلمتّقين) .

**ترجمه**: او يا مستلزمه دی مخکنی جمله روستنی لره لکه څنګه چې مستلزم دی دليل مدلول سره او بيان د دې دا دې هر کله چې الله تعالی تنبيه وکړ په اعجاز د متحدبه له دې حيثيت نه چې دا د دوئ د کلام جنس دی او حال دا چې دوئ د معارضې د قرآن نه عاجز شوی وه د عجز د دې قومونو نه دا نتيجه راوځي چې دا کتاب حد د اعجاز ته رسيدلی دی او دا کمال د کتاب مستلزم شو چې ريب له اطرافو د دې کتاب سره تعلق نه لري او د هغه کتاب نه به بل ناقص کتاب وي چې شک او تردد ورته عارض کيږي او کوم کتاب چې په دغه صفت وي نو خامخا به متقيانو لپاره هدايت وي.

**تشريح دويم ربط**: مصنف په دې سره دويم ربط بيانوي هغه داسې چې هره سابقه جمله د لاحقې لپاره مدلول او منلی شي ځکه څنګه چې دليل خپل مدلول لپاره مستلزم وي دغه شان هره سابقه جمله لاحقې لره مستلزمه وي او هر کله چې سابقه جمله لاحقې لره مستلزمه شوه نو سابقه جمله مدلول او لاحقه ورته دليل شوه او دليل خپل مدلول لره شامل وي نو سابقه جمله به په لاحقې مشتمله وي او د دويمې جملې به حيثيت سره د جملې په مقابل کې په شان د بدل اشتمال وي او د بدل او مبدل منه په مابين کې کمال اتصال وي او د کمال اتصال په وجه حرف عطف ترک کړی شو هغه په دې طريقې سره الله تعالی وويل «المتحدی به الٓمٓ» دا متحدی به هم د همدوی د کلام له جنسه دی خو بيا هم دوی عاجزه شول نو ثابته شوه چې دا کامل کتاب دی نو الم مستلزم شو ذلک الکتاب لره او دا کامل کيدل مستلزم شو دې لره چې د دېکې هيڅ شک نشته نو ذلک الکتاب مستلزم شو لاريب لره بيا عدم شک دا خبره ثابته کړه چې دا به ضرور هدايت وي نو لاريب مستلزم شو هدی للمتقين لره.

**تفسيربيضاوي**: ( وَفِى كُلِ وَاحِدَةٍ منهَا نُكتَةُ ذَات جَزَالةٍ فَفِى الأَولى الحَذفُ والرَّمزُ الى المَقصُود معَ التَّعليل وَفِى الثَّانِية فَخَامَةَالتَّعريف وفِى الثَّالثِةِ تَأخيرُ الظَّرف حذرًا عن اِبهامِ البَاطل وَ فِى الرَّابعَة الحَذف وَالتَّوصيفُ بِالمَصدرِ لِلمُبالغَةِ وَ ايرَادهُ مُنكر اللتَّعظيْم وتَخصِيص الهُدى بِالمتَّقينَ باعْتِبار الغَايةِ تَسْمية المُشَارِف للْتَّقوى مُتقيًا اِيجازًى اوتَفْخيمًا لِشانهِ) .

**ترجمه**: او په هره يو جمله کې د عظمتو نو والا يوه نکته ده په اوله جمله کې حذف دی او مقصود ته اشاره ده او ورسره په دې کې تعليل او علت ته هم اشاره ده او په دوهمه جمله کې

(ذلک الکتاب) کې عظمت د تعریف ته اشاره ده او په دریمه جمله کې (لا ریب) تأخیر د ظرف دی چې (فیه) دی لپاره د اجتناب د وهم باطل نه چې د باطل وهم پیدا نشي په څلورمه جمله کې (هدًی للمتقین) کې حذف د (مبتداء) دی او دمبالغې لپاره توصیف بالمصدر دی او هدًی د تعظیم لپاره نکیره راوړلی شوی دي او دا هدایت د متقیانو پورې خاص کول په اعتبار د غائې دی او متقي نوم کینښودل دي هغه چالره چې تقوی ته مقارب وي په دې کې عظمت د شان د متقی دی.

## څلور نکتې

**تشریح:** دلته په خپلو ترکیبونو کې د بلاغت نکتې بیانوي وائې په هره جمله کې د عظمت والا نکته دی لکه په اوله جمله کې حذف وو یامبتداء حذف وه یاخبر حذف وه دلته ئې حذف ته نکته ویلې دی مبالغتًا خو اصل کې حذف مقتضي د نکتو دی او بل اشاره دی مقصود ته مقصود دلته تحدی او چیلنج ده اوسره د دې نه چې علت ته هم پکې اشاره دی او هغه دا چې ماده د قرآن او ماده ستاسو د کلام یو شئ دی بیاهم تاسو مقابله د قرآن نشئ کولي او دوهمه جمله چې ذالک الکتاب دی د یکې فخامت ته اشاره دی لکه په تیر درس کې مونږ وویل چې مبتداء او خبر دواړه معرفې وي بیاوګوره چې کوم پکې ذو اللام دی نو ذو اللام به مقصوروي تر غیر ذو اللام پورې نو دلته هم کتاب په اعتبار د کمال سره تر ذلک پورې مقصور دی او په دریمه جمله کې چې لاریب فیه دی دفع د ابهام باطل دی په تأخیر د ظرف کې ځکه که لافیها ریب ئې ویلی وائی بیا قصر راتلو او دلته قصر غیر صحیح دی څلورمه جمله چې هدًی للمتقین دی د یکې یو حذف دی اګرکه حذف نکته نه دی خو دې ته نکته ویل مبالغتًا دي او بل توصیف بالمصدر راغلی دی چې قرآن عین هدایت دی مبالغتاً یې توصیف بالمصدر شوی ځکه قرآن هادي دی لکه زید عدلٌ او بل ئې هدًی نکره ذکرکه لپاره د تعظیم او بل تخصیص ئې د هدایت ترمتقینو پورې کړی دا په اعتبار غائې او انتهاء دی.

یو ابتداء د هدایت دی بل انتهاء د هدایت دی لکه څنګه چې ابتداء د هدایت ترمتقینو پورې خاص ده نو انتهاء ئې هم ورپورې خاص ده او بل تسمیه د مشارک الی التقوی ئې وکړه په متقې

باندې او دا ئې ورته اختیارې ویلې دي که داسې ئې ویلی وائې چې «هدًى لمشارک للمتقین» په دې کې طوالت راتلو او بل ئې اشاره تعظیم د شان د مشارک الی التقوی ته وکړه.

(اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ) [1]

**تفسیربیضاوي**: ( اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ) اِمّا مَوصولٌ بالمُتَّقين عَلى انّه صِفَةٌ مَجْرُورةٌ مُقَيَّدةٌ له اِنْ فُسّرالتّقوى بِتَرک مَالَا يَنْبغى مُتَرتِّبة عَليه تَرَتُّب التّحْليةِ عَلى التَّخْلية وَالتَّصوير على التَّصْقِيل أومُوْضحَةً انْ فُسِّربمايَعُمُّ فعْل الحسناتِ أوتَرک السيّئاتِ لِاشتماله على مَاهو أَصل الأَعمال وأَساس الحَسناتِ منَ الاِيمان وَالصّلوة والصّدقة فَانّها اُمّهاتُ الاعمَال النّفسانِيَّة والعبادَات البَدنِيَّة والمَالِيَّة المُستَتْبِعة لِسائِرالطّاعات والتّجنبِ عنِ المَعاصى غَالبًا)

**ترجمه**: دا متقین هغه کسان دي چې دوئ ایمان په غیبو راوړی دی یا دا (یؤمنون بالغیب) له متقینو سره په دې شرط متصل او متعلق دی چې دا صفت مجروره مقیده دی(للمتقین مجرور و) که د تقوی تفسیر په ترک د مالاینبغی سره وشي معنی د صفت به مرتب شي په متقین باندې په شاند ترتیب د تحلي په تخلي یالکه ترتب د تصویر په تصقیل (صفاء) او یا صفت موضحه دی که چیرته د متقین عام تفسیر وشي چې فعل د حسناتو او ترک د سیئاتو دی. ځکه چې دا مشتمل دی په داسې شیانو چې هغه اصل د اعمالو دی او بنیاد دنیکیو دی چې ایمان ، لمونځ اوصدقه ده نویقینًا دا اصول داعمالو نفسانیة اوعباداتو بدنیه اومالیة وو دي او مستلزم دی ټولو طاعاتو لره او هم دغه شان مستلزم دی له بچ کیدلو د معاصیو نه هم غالبًا.

**تشریح**: دلته قاضي صاحب درې بحثونه ذکر کوي اول بحث د جملې د ترکیب متعلق دویم بحث د ایمان د تحقیق متعلق او دریم بحث د غیب د تفصیل متعلق.

---

(۱):- سورة البقرة : آية (۳)

**اول بحث**: په الذین کې دوه احتماله دي یا مفصول دی له متقین څخه یا موصول دی له متقین نه که مفصول شي نو الذین یؤمنون مبتداء ده او اولئک علی هدًی ورته خبر ده او که موصول ئې کې بیا پکې درې احتماله دي یا به مجرور وي یابه منصوب وي یا به مرفوع وي که مجرور ئې کې بیا پکې درې احتماله دي یابه صفت موضحه وي یابه صفت موقیده وي یابه صفت مادحه وي

(۱) **احتمال دجر**: دا درې واړه احتمالات دجر په ترجمه د متقین باندې بناء دي.

(۱) که د متقین ترجمه په ترک مالاینبغی سره وشي یعنې متقین یوازې تارکین شوه عاملین پکې رانغله نو په الّذین یُؤمنون کې ورسره ذکر دعاملینو وشو چې دا قرآن یوازې هدایت تارکینو ته نه دی بلکه ورسره عاملینو به هم وي چې دواړه یوزاې شي بیاور ته هدایت دی یعنې ترک مالاینبغی او عامل په ماینبغی یا داسې ووایه چې د متقین ترجمه په تخلي وکړی نو الذین ورسره د تحلی ذکردی او یا دریم تعبیر وکړه چې په متقین کې د تصقیل بیان دی او په الذین کې د تصویر بیان دی نو په دې صورت کې الذین صفت مقیده دی.

(۲) که د متقین ترجمه په ترک مالاینبغي ، عمل ماینبغی ، تصقیل ، تصویر ،تحلی اوتخلی سره وشي یعنې په دواړو سره وشي نو الّذین یؤمنون به ورته صفت موضحه وي.

**سوال**: دلته په موصوف متقین کې دوه صفته دي ترک د مالاینبغی اوعمل په ماینبغی تخلي اوتحلي تصویر او تصقیل او په صفت کې خو دواړه نشته یوازې تحلی ده هغه هم په بعضو مأموراتو یعنې عمل کول په بعض ماینبغي نو داڅنګه صفت موضحه شو ؟

**جواب**: دلته اګرکه صراحتًا ترک د مالاینبغي او عمل په ماینبغي نه دی راغلئ خو التزامًا راغلئ ځکه ماینبغي به یاول یا تعلق د قلب سره لري یا به تعلق د قالب سره لري یا به ئې مال سره لري که تعلق د قلب سره لري نو له هغې نه ئې ایمان ذکرکړو ځکه د قلب په اعمالو کې اصل ایمان دی او که تعلق د قالب سره لري له هغې نه صلاة ذکرکړو ځکه د قالب په اعمالو کې اصل صلاة دی اوکه تعلق له مال سره لري له هغې نه ئې زکوة ذکرکړو ځکه اصل پکې زکوة دی نو عمل په ټول ماینبغي راغلو او عمل په ماینبغي مستلزم ده ترک د مالاینبغي لره.

(۳) او که چیرته د مخاطب علم وي په متقین باندې او تقید د مخاطب نه وي له الذین یؤمنون څخه او نه ئې توضیح وي نو بیا الذین یؤمنون صفت مادحه دی.

**تفسیربیضاوي**: ( الاَ تَرى اِلى قَوله تَعالى: (انّ الصّلوة تَنهى عن الفَحشاء والمُنْكرِ [۱]
وَقَوله علیه الصّلوة والسَّلام: الصّلوة عِمادُ الدّین وَالزّكاةُ قِنطرةُ الِاسلام [۲] أومَادِحة بِماتَضمَّنهُ المُتَّقین.

**ترجمه**: ته د الله جلّ جلاله قول ته نه ګورې چې فرمائي یقینًا لمونځ منعه کوي بې حیائۍ او بدو کارونو څخه او دا قول د نبی علیه الصّلوة والسلام چې لمونځ د دین ستن ده اوزکات د اسلام پول دی او یا صفت مادحه دی په هغه اوصافو سر چې کومو او صافو لره متقین متضمن دي.

**تشریح**: الله جلّ جلاله لمونځ موقوف علیه د فعل حسنات لپاره ګرځولی او په حدیث کې زکات موقوف علیه د فعل حسنات لپاره ګرځولی شوی دا په دې دلالت کوي چې په مالي عبادت کې زکات او په بدني عبادت کې لمونځ اولی دی او دا حدیث بیهقي به شعیب الایمان کې حضرت عمر (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) نه روایت کړی.

(قنطره) پول ته وائي لکه اسد الاحناف علامه امام زاهدکوثري رحمه الله فرمائي: اللامذهبیة قنطرة اللادینیة، او شیخ صاحب ورسره کبری لګوي والمماتیة قنطرة اللامذهبیة نتیجه دا شو چې المماتیة قنطراللادینیة [۳]

---

(۱):- سورة العنكبوت : آیة ۴۵.

(۲):- دا یو حدیث نه دي بلکه دوه احادیثه دي دا لُف نشر غیرمرتب ده لومړی حدیث اخرجه الدیلمي : ۳۷۹۵ والطبراني كما المقاصد ۶۳۲ من حدیث علی رضی الله عنه وذكره السخاوي فى المقاصدحسّنه : ۶۳۲ ایضا وقال اخرجه البیهقي بسند ضعیف حدیث عكرمه عم عمر مرفوعًا ونقل البیهقی عَن شیخه الحاكم انّه قال عكرمة لم یسمع من عمر قال : رواه ابن عمر و اورده خاحب الوسیط ولم یقف علیه ابن الصلاح فقال فى مشكل الوسیط انّه غیر معروف وقال النّووي فى التنقیح: منكر. قال السخاوي : ثم رواه ابو نعیم شیخ البخاريفى كتاب الصلوة عن حبیب بن سلیم عن بلال بن یحي قال جاء رجل الى النبى صلّ الله علیه وسلّم یسئله عن الصلوة فقال: ا لصّلوة عمودالدین وهو مرسل ورجاله ثقات. وله شواهد (۱) اخرجه الترمذي: برقم ۲۶۱۶ . والنسائى فى الكبرى برقم ۱۱۳۹۴ . وابن ماجه برقم ۳۹۷۳ عم معاذبن جبل رضی الله عنه رأس الامر الاسلام وعموده الصلوة) وقال الترمذی هذا حدیث حسن صحیح.

(۳):- قنطره اوجسر کې فرق دادی چې قنطره هغه پول ته وائي چې په اوبو تیرشوی وي او جسر عام دی (فروق اللغات : ۹۹ والبروق فى انواع الفروق :۱۷۲.

فرق په مابین د صفت مادحه او صفت موضحه کې دا دی: په صفت موضحه کې صرف وضاحت مقصود وي او په مادحه کې صرف مدحه د موصوف مقصود وي.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَتخصِيص الِايمانِ بالغَيب وَاقامَةالصَّلاةِ وَإيتاءِ الزَّكاةِ بِالذّكر اِظهار لفَضلهَا عَلى سَائريَدخلُ تحتَ اسمِ التَّقوى أَوعلى أَنّه مَدح منْصوب أَومرفُوع بِتَقديرِ أَعنى أوهُم الذِينَ وَاِمَّا مفْصولٌ عنه مَرفُوع بِالابْتداءِ وَخبرُه (أُولئک عَلَى هُدًى) فَيكُون الوَقْف على المُتَّقين تامًا)

**ترجمه**: او تخصیص د ایمان بالغیب او اقامت الصلاة او ایتاء الزکاة یې وکړو په ذکر سره (یوازې یې دا ذکر کړل) لپاره د اظهار د فضیلت د دې په نورو ټولو هغو اشیاء باندې چې داخلیږي لاندې د اسم دتقوی نه. او یا «الذین» د للمتقین لپاره مدح ده منصوب ده په تقدیر داعنی سره اویا مرفوع ده په تقدیرد هم الذین سره او یا مفصول دی للمتقین نه یعنې څه تعلق ورسره نه لري اومرفوع ده بناء برابتدائیت او خبرئې اولئک علی هدًی دی نو بیا په للمتقین باندې وقف تام دی.

**تشریح**: تردې ځای پورې د مجرور بحث وو اوس د منصوب او مرفوع احتمالات ذکرکوي.

(۲) **احتمال د نصب**: دا «الذین» یا مدح ده لپاره دللمتقین او منصوب ده په تقدیر داعنی سره دی ای اعنی الذین یؤمنون.

(۳) **احتمال درفعې**: یا مرفوع ده په تقدیر دهم سره نو «هم» مبتداء الذین یؤمنون ئې خبر.

د وقف اقسام مونږ مخکې بیان کړي دي دلته وقف تام دی ځکه وقف تام دې ته وائې چې په داسې ځای وقف وشي چې مابعد د کلام ماقبل ته محتاج نه وي او دلته هم داسې ده.

## (بحث الایمان)

**تفسیربیضاوي**: (وَالایمَانُ فی اللُّغة عِبارةٌ عن التَّصدیقِ مَأخوذٌ منَ الأَمن كأنّ المُصدِق أمن المُصدَّق مِنَ التَّكذِیب وَالمُخالَفة وَتَعدیَّته بِالباءِ لِتَضمُّنِهِ معنی الاعْتِرافِ وقَد یُطلقُ بمعنی الوُثُوق مِن حَیثُ أَنّ الوَاثِقَ صَار ذَا أَمْنٍ، وَمنه مَا أَمنتُ أنْ اجدُ صُحابةَ وكِلا الوَجهینِ حُسْنٌ فِي یؤمنونَ بالغَیب)

**ترجمه**: او ایمان په لغت کې له تصدیق څخه عبارت دی او له امٰن نه مأخوذ دی ګویا چې تصدیق کونکی مصدق خپل د تکذیب او مخالفت نه په امن کړو او تعدیت د ایمان په باء سره دی ځکه دا متضمن ده معنی د اعتراف لره کله په ایمان باندې د وثوق اطلاق کیږي له دې حیثیت چې وثوق کونکی هم په امن او مطمئن شي او له دې نه «ما امنت» مأخوذ دی ای ما وثقت زما اعتماد نه وو چې زه به دوستان و مومم (دلته یؤمنون په معنی د یوثقون شو) او دلته په یؤمنون بالغیب کې دواړه وجې حسنې دي (یعترفون او یوثقون).

**تشریح**: **دویم بحث**: له دې ځایه د ایمان بحث او تحقیق کوي چې ایمان په لغت کې څه ته وائې او دا یوه مشکله مسئله ده شیخ الحدیث شهید حسن جان رحمه الله به فرمائل چې زه تر اوسه د ایمان په معنی نه پوهیږم.

ایمان مزید دی او د دې مجرد امن راځي امن اطمینان ته وائې او دا امن متعدي دی یو مفعول ته نو چې کله مجرد متعدي وي یو مفعول ته او بیا ته له دې نه صیغه د مزید جوړه وي نو همزه د باب افعال به پکې راوړې نو د امن نه به ایمان جوړشي په دې کې بیا دوه کاره کیږي کله داسې کیږي چې دا متعدي شي دوه مفعولو ته او کله داسې وشي چې دا متعدي لازمي شي؛ نو که ته دا متعدي یو مفعول ته متعدي کړې دوه مفعولو ته نو بیا به داسې وائې امنته غیری معنی دا چې د غیر نه مي مطمئن کړو او که لازمي ئې کړې نو بیا به داسې وائې صرت ذا امن زه په خپله مطمئن شوم دا یو معنی د ایمان شو چې منقول عنه ده.

**دوهم معنی**: دوهمه معنی د ایمان تصدیق او وثوق دی او دا منقول الیه معنی ده بعضو علماءؤو پکښې فرق کړی هغه داسې چې ایمان د امنته غیری نه رانقل کړی شو تصدیق ته او د صرت ذا امن نه رانقل کړی شو وثوق ته یعنې د تصدیق لپاره منقول عن متعدي معنی ده او د وثوق لپاره منقول عنه لازمي معنی ده اوس ایمان په دې دواړو معناګانو کښې استعمالیږي اوپه دې دواړو کښې استعمال د ایمان حقیقت لغوي ده او که حقیقت عرفي دی او که مجازدی نو په دې کښې د علماءوو اختلاف دی.

(۱) بعضې علماء وائي چې په دې کښې ئې استعمال په طریقه د مجاز دی لکن دا صحیح نه قوی ده.

(۲) بعضې علماء وائې چې په دې کښې ئې استعمال په طریقې د حقیقت عرفي ده او دا صحیح او راجح دی.

(۳) او د قاضي بیضاوي رحمه الله د عبادت نه دا معلومیږي چې په دې کښې ئې استعمال حقیقت لغوي دی خو دا لغت په مقابله د مجازکښې دی چې متناول شي لغوي او عرفي دواړو ته کله چې ایمان په معنی د تصدیق وي بیا به دا متعدي بالذات وي او کله چې متعدي په باء سره وي نوبیا به متضمن وي معنی د اعتراف لره، او دا دواړه معناګانې چې تصدیق او وثوق دی استعمال ئې په یؤمنون بالغیب کښې حسن دي لکه وائي (یصدقون بالغیب) نو معنی به داشي دوی د غیبو په شیانو تصدیق کونکي دي. (ویوثقون بالغیب) نو معنی به داشي دوی دغیبو په شیان اعتماد کونکي دي.

## (په ایمان کښې د مذاهبو اختلاف)

**تفسیربیضاوي**: (وَأَمَّا فِی الشَّرعِ فَالتَّصدِیق بمَا عُلِمَ بِالضَّرورُة أَنّه مِن دینِ مُحَمّدصلّی الله علیه وسلّم کَالتّوحیْد وَالنّبوةِ وَالبَعث وَالجَزَاء وَمَجْمُوع الثّلاثَة أُمُوْر اِعتِقَادِ الْحَقّ والاِقْرار بِه والعَمل بِمقتَضَاهُ عنْد الجُمهُورِالمُحدِّثینَ وَالمُعتزِلةِ وَالخَوارِج [1]) -

**ترجمه**: او ایمان په شرع (اصطلاح) کښې تصدیق په هغه احکامو او عقائدو چې کوم بداهةً او قطعًا معلوم شوي وي چې دا له دین د محمّد (صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څخه دي لکه توحید نبوت بعث

---

(۱):- دا مسئله محدثین د ایمان د بساطت اوترکیب ترعنوان لاندې څیړي او همدغه مذاهب پکښې دي چې (۱) جهمیه (۲) مرجیه (۳) معتزله اوخوارج (۴) امام شافعي اوجمهور محدثین (۵) امام ابوحنیفة او جمهور متکلمین.

بعدالموت او جزاء د اعمالو نو مجموعه د ایمان درې اموردي عقیده په حق او اقرار په حق او په مقتضی دحق عمل کول په نزد د جمهورو محدثینو ، معتزله[1] وو او خوارجو .

**تشريح**: ایمان کې ټول دولس مذاهب دي د هغې هسې تفصيل درته په مشكوة كې تيرشوي دلته يو وازې اجمالاً څو مذاهب بیانوو ،

(۱) ایمان په اصطلاح کې فقط تصدیق قلبي نه مراد دی او اقرار لساني د دنیوي احکامو د جاري کولو لپاره ورته شرط دی او دامذهب د محقیقینو دی لکه امام ابو منصور الماتریدي رحمه الله ، امام ابو حنیفه رحمة الله هم يو روايت دی او حمهور محققین.

(۲) يا ایمان په اصطلاح کې عبارت دی له تصدیق قلبي او اقرار لساني دواړو نه دا مذهب داکثرو احنافو دی لکه شمس الائمه السرخسي فخر الاسلام بزدوي و غیره (رَحِمَهُمُ ٱللَّهُ).

(۳) يا ایمان په اصطلاح کې عبارت دی له تصدیق قلبي ، تصدیق لساني اوعمل بالارکان درې واړونه او دا مذهب د جمهورو محدثینو ، متکلمینو ، معتزله اوخوارجو دی .

(۴) ایمانعبارت دی یو وازې له شهادتینو څخه دا مذهب د کرامیه و دی

(۵) ایمان صرف اعمالو نوم دی هغه کول د يو فعل وي او يا ترک د فعل وي

(۶) ایمان عبارت دی یو وازې له اعمالو مفروضه و څخه .

(۷) ایمان عبارت دی یو وازې له معرفت د الله (جَلَّ جَلَالُهُ) څخه دا مذهب قدریه و د يو جماعت دی .

(۸) ایمان عبارت له معرفت الهي او له معرفت ماجاء به رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ).

---

(۱): تاج العروس (۲۹/ ٤٦٨)

والمُعْتَزِلَةُ: فِرْقَةٌ مِنَ القَدَرِيَّةِ، زَعَمُوا أَنَّهُم اعْتَزَلُوا فِئَتَي الضَّلَالَةِ عِنْدَهُم، أي أَهْلَ السُّنَّةِ والجَمَاعَةِ، والخَوَارِجَ الذينَ يَسْتَعْرِضُونَ النَّاسَ قَتْلاً، أو سَمَّاهُمْ بِهِ سَيِّدُ التَّابِعِينَ الحَسَنُ بنُ يَسارٍ البَصْرِيُّ، لَمَّا اعْتَزَلَهُ واصِلُ بْنُ عَطاءٍ، وكانَ مِنْ قَبْلُ يَخْتَلِفُ إِلَيْهِ، وَكَذَا أَصْحَابُهُ، مِنْهُم عَمْرُو بنُ عُبَيْدٍ، وغيرُه، إلى أُسْطُوانَةٍ مِن أُسْطُوانَاتِ المَسْجِدِ، فَشَرَعَ وَاصِلٌ يُقَرِّرُ القَوْلَ بِالْمَنْزِلَةِ بَيْنَ المَنْزِلَتَيْنِ، وأَنَّ صَاحِبَ الكَبِيرَةِ لاَ مُؤْمِنٌ مُطْلَقٌ وَلَا كَافِرٌ مُطْلَقٌ، بَلْ)هُوَ بَيْنَ المَنْزِلَتَيْنِ، كجَمَاعَةٍ مِنْ أَصْحَابِ الحسَنِ، فقالَ الحَسَنُ: اعْتَزَلَ عَنَّا واصِلٌ، فسُمُّوا المُعْتَزِلَةَ لذلكَ. وقالتِ الخوارِجُ بتكفيرِ مُرتكِبي الكَبائرِ، والحَقُّ أنَّهم مؤمِنونَ، وإنْ فَسَقُوا بالكَبائرِ،

## د بالضرورة دوه ترجمې:

**اوله ترجمه**: یوه علامه زمحشري رحمه الله کړې هغه دا چې بالضرورة نه هغه احکام مراد دی کوم چې مشهوره وي عندالخواص والعوام دا به خواصو او عوامو ټولو ته معلوم وي او په دې معنا او ترجمې سره تصدیق ایمان دی او عدم تصدیق بیا کفر دی نو دا یمان معنی به دا شي په هغو احکامو دصدیق کول کوم چې خواصو او عوامو کې مشهور وي.

**سوال**: که چیرته یوه مسئله عوامو کې نه وي مشهوره ، لک عواموته اکثره د لمانځه او ودس فرائض نه وې معلوم نو پکار دی چې دا عوام کافرشي ؟

**جواب**: دلته له عوامونه مراد علماء دي اوله خواصونه مراد مجتهدین دي .

**دوهمه ترجمه**: علامه سعدالدین تفتازاني رحمه الله د ماعلم بالضرورة نه مراد هغه چې د هغې ثبوت په دلیل قطعي سره وي یعنې چې قطعي الثبوت او قطعي دلالت وي او دا معنی صحیح هم ده.

قاضي بیضاوي رحمه الله د محقیقینو مذهب غوره کړی دی او دوهم مذهب ئې روسته ذکر کړی او دریم مذهب ئې هم دلته ذکر کړی دی چې ایمان مجموعه د دې شیانو ده تصدیق قلبي اقرار لساني او عمل بالارکان په دې درې واړو کې دوه اتفاقي دی او یو اختلافي ده.

**تفسیربیضاوي**: (فَمنْ أَخلّ بِالاعْتقَادِ وَحدهُ فهُو مُنافِق ومَن أَخلّ بِالاقْرارِ فَكافِرٌ ومَن أَخلّ بِالعَمل فَفاسقٌ وَفاقًا وَ كافِرٌ عندَالخَوارِج[1] وَخَارِجٌ عنِ الايمَانِ غَير دَاخِلٍ فى الكُفْرِعِندَالمُعتَزلة).

**ترجمه**: نوچا چې خلل (نقصان) یوازې په اعتقاد کې وکړو دا منافق دی او چاچې خلل په اقرار کې وکړو دا کافردی او چاچې خلل په عمل کې وکړو نو دا فاسق دی اتفاقًا او کافردی په نزد دخوارجو او خارج دی له ایمان څخه او داخل نه دی په کفر کې په نزد دمعتزله وو.

---

(۱) الْخَوَارِجُ : يَقُولُ الْجُرْجَانِيُّ : هُمُ الَّذِينَ يَأْخُذُونَ الْعُشْرَ مِنْ غَيْرِ إِذْنِ السُّلْطَانِ . وَهُمْ فِي الأَصْلِ كَانُوا فِي صَفِّ الإِمَامِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي الْقِتَالِ ، وَخَرَجُوا عَلَيْهِ لَمَّا قَبِلَ التَّحْكِيمَ . قَالُوا : لِمَ تُحَكِّمُ وَأَنْتَ عَلَى حَقٍّ وَيَقُولُ ابْنُ عَابِدِينَ : إِنَّهُمْ يَرَوْنَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى بَاطِلٍ بِقَبُولِهِ التَّحْكِيمَ ، وَيُوجِبُونَ قِتَالَهُ ، وَيَسْتَحِلُّونَ دِمَاءَ أَهْلِ الْعَدْلِ ، وَيَسْبُونَ نِسَاءَهُمْ وَذَرَارِيَّهُمْ ، لأَنَّهُمْ فِي نَظَرِهِمْ كُفَّارٌ . وَأَكْثَرُ الْفُقَهَاءِ يَرَوْنَ أَنَّهُمْ بُغَاةٌ ، وَلا يَرَوْنَ تَكْفِيرَهُمْ ، وَذَهَبَتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْحَدِيثِ إِلَى أَنَّهُمْ كُفَّارٌ مُرْتَدُّونَ . الموسوعة الفقهية

**تشريح**: په اولنيو دوه وو حکمونو (چې منافق او کافر دی)کې اتفاق دی چې اقرار او عمل ئې وي او تصديق ئې نه وي دامنافق دی اتفاقًا دوهم چې تصديق او عمل ئې وي خو اقرار ئې نه وي دا کافر دی اتفاقًا ده دريم چې اقرار او تصديق ئې وي خو عمل ئې نه وي د ده په فسق کې اتفاق دی خو خوارج ورته بيا هم کافر وائې او معتزله خارج من الايمان او غير داخل په کفر کې ورته وائې.

خوارج ورته ځکه کافر وائې چې دوی وائې چې کفر عبارت له عدم الايمان څخه دی نو د ده ايمان هم نشته ځکه کافر دی او معتزله نه ورته کافر وائې او نه مؤمن ځکه دوئ وائې کفر عبارت دی له تکذيب نه په عدم عمل سره خوله ايمان نه ووت خو تکذيب ئې لا ندی کړی نو په کفر کې نه دی داخل.

معتزله د خپلې دعوې لپاره دليل وايي:

عن أبي هريرة رضي الله عنه، قال: قال النبي صلى الله عليه وسلم: لا يزني الزاني حين يزني وهو مؤمن، ولا يشرب الخمر حين يشرب وهو مؤمن، ولا يسرق حين يسرق وهو مؤمن، ولا ينتهب نهبة، يرفع الناس إليه فيها أبصارهم حين ينتهبها وهو مؤمن.(١)

کوم کس چې زنا کوي په دغه وخت هغه مومن نه وي کوم کس چې غلا کوي په دغه وخت کې هغه مومن نه وي.

نو له دې حديث څخه ثابته شوه چې د ارتکاب د کبيرې په وخت کې ايمان نفي کيږي نو علومه شوه چې عمل د ايمان په حقيقت کې دا خل دی

(١)صحيح البخاري - كتاب المظالم والغصب

باب النهي بغير إذن صاحبه - حديث:٢٣٦٣ حدثنا سعيد بن عفير، قال: حدثني الليث، حدثنا عقيل، عن ابن شهاب، عن أبي بكر بن عبد الرحمن، وعن سعيد، وأبي سلمة، عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم مثله "إلا النهبة"

**تفسیربیضاوي**: ( وَالَّذی یَدُلّ علی أَنَّه التصْدیقُ وحدَه أَنه سُبحانَه تعالی أَضافَ الاِیمانَ الی القَلْب فَقالَ (اُولئِک کَتَبَ فِی قُلُوْبِهِم الاِیْمَان) ﴿۱﴾ (وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالایمان)﴿۲﴾ (وَلَمْ تُؤمِنْ قُلُوْبهم)﴿۳﴾ (ولَمّا یَدْخُل الایْمان فی قُلُوبکمْ ﴿٤﴾ ).

**ترجمه**: او په دې بره باندې چې ایمان صرف د تصدیق نوم دی دا دلیل دي چې الله جلّ جلاله د ایمان نسبت او اضافت زړه ته کړی الله تعالی فرمائې [۵] الله جلّ جلاله په زړه دمؤمنانو کې ایمان کلک کړی وو (۱) او زړه د هغه په ایمان باندې مطمئن وي (۲) او زړونو د دې خلکو ایمان نه دی راوړي (۳) لا تراوسه ایمان په زړونو د دوئ کې نه دی داخل شوی.

**تشریح**: دلته مصنف درې قسمه دلائل وړاندې کوې اول د د مذهب د اثبات لپاره دویم دمخالف مذهب د نفي لپاره دریم داړه طرفه جامع دلیل.

**اول قسم دلایل** : محقیقینو وایي ایمان یوازې تصدیق قلبي دی عمل او اقرار دواړه خارج دي، ځکه ایمان په زړه کې دی او اقرار او عمل په زړه کې نشته بلکې په جوارحو سره کیږي او په دلیل کې یې څلور ایاتونه پیش کړي له دې پرته نور هم ګڼ ایاتونه شته چې د ایمان نسبت پکې زړه ته شوی دی.

**تفسیربیضاوي**: (وَعطفَ عَلیهِ العَمل الصَّالح فِی مَواضِعِ لَاتُحصی وَقَرَنَه بِالمَعاصِی فَقَال تعالی(وان طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ اقْتَتَلُوْا [۶] (یَاَیّهاالّذِیْنَ اٰمَنُوْا کُتِبَ عَلَیْکم القِصَاصُ فِی القتلی) [۷] (اَلّذین اٰمَنُوا وَلَمْ یلبسوا اِیْمَانهم بظُلمٍ )[۸].

(۱):- سورة المجادلة : آیة (۲۲).
(۲):- سورة النحل : آیة (۱۰٦).
(۳):- سورة المائدة : آیة (٤۱).
(٤):- سورة الحجرات: آیة (۱٤).
(۵):- سورة الحجرات: آیة (۹).
(٦):- سورة الحجرات: آیة (۹).
(۷):- سورة البقرة: آیة (۱۷۸).
(۸):- سورة الانعام: آیة (۸۳).

**ترجمه**: او الله جلّ جلاله په بې شماره ځایو کې عطف د عمل صالح په ایمان کړی دی او الله
22 جلّ جلاله یو ځای ذکر کړی ایمان د معاصیو سره الله جلّ جلاله فرمائي: که دوه ډلې دمؤمنانو په خپل منځ کې سره جنګ کوي. بل ځای فرمائي ای مؤمنانو په تاسو قصاص فرض کړی شوی دی په باره د مقتولینو کې، کې بل ځای فرمائي: هغه خلک چې ایمان ئې راوړی وي او ظلم سره ئې یو ځای کړی نه وي.

**تشریح**: دلته مصنف رحمه الله دویم قسم دلایل بیانوي او رد کوي په محدثینو خوارجو اومعتزله وو هغه داسې که عمل په ایمان کې داخل وائې نو الله جلّ جلاله عطف د اعمالو ولې؟ په ایمان کولو اوپه معطوف او معطوف علیه کې تغیروي دغسې یې له ایمان سره د ګناهونو تذکره کړې ده نو معلومه شوه ایمان او عمل کې تغایر دی او ایمان د ګناهونو باجود هم باقي پاتې کیدی شي لکه په ایاتوونو کې تذکره وشوه.

**قانون**: یو حکم دی بل موصوف دی او بل صفت دی نو دا صفت به په موصوف کې په وخت د حکم کې وي لکه دلته چې ذوات ذمؤمنانو موصوف دي په صفت د ایمان سره اویو حکم پرې مرتب شو چې اقتتلو دی نو دا حکم به په وقت الایمان کې پرې مرتب وي همدغه شان په دې نورو آیاتو کې نو د دې قاعدې د قتال په وخت کې په طائفتان کې ایمان موجود دی اګر که فتل اشدّ ګناه ده.

## (دلائل عقلي)

**تفسیربیضاوي**: ( مَع مَا فيهِ منْ قِلَّة التَّغِيبُر فانّه أقرب الى الأَصل وَهومُتعيّن الارَادةِ فِي الأَيةِ اذَالمُعدّى بِالباءِ هُو التَّصديق وَفاقًا)

**ترجمه**: سره له دینه چې په مذهب دمحقیقینو کې قلت تغیر دی ځکه دا معنی لغوي ته ورنږدیده او ایمان په معنی د تصدیق متعین الارادة ده ځکه متعدي بالباء تصدیق دی اتفاق.

**تشریح**: له دینه مخکې دلائل نقلیه وو اوس دلیل عقلي ذکرکوي او دا دریم قسم دلیل دي کوم چې جامع دی دواړو مفهومونو لره هغه دا چې دلته په لغوي معنی چې وثوق دی او اصطلاحي معنی چې التصدیق بماعلم مجئ النبی (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) بالضرورت صرف قیدونه زیات شو نور

فرق نشته يعنې يو مطلق دی او بل مقيد دی او په نورو تعريفونو کې په لغوي او اصطلاحې معنی کې صرف قيدونه نه زياتيږي بلکه ډير فرقونه راځې ځکه لغوي معنی کې ايمان بسيط دی چې يوازې تصديق دی او اصطلاحې معنی کې مرکب کيږي چې التصديق والاقرار والعمل دی نو په دې مذاهبو کې فرق د بساطت اوترکيب دی اوپه اول مذهب کې فرق دمطلق اوتقيد دی او دمطلق اومقيد په مابين کې فرق کم وي په نسبت سره بسيط اومرکب ته نو معلومه شوه چې د محققينو مذهب اقرب اليالاصل دی او نور ابعد من الاصل دي او اقرب راجح وي په نسبت سره ابعد ته.

**د معتزله وله دليل ځخه جواب:** په حديث کې چې نفي د ايمان راغلي په وخت ګناه کبيرې کې هلته له ايمان ځخه کامل ايمان مراد دی يعنې زاني په وخت زنا کې کامل مومن نه دی يا له ايمان ځخه مراد طاعت دی په دغه وخت د ګناه بنده مطيع نه وي يا دا په طور د تشبيه ده يعنې د زنا په وخت کې مومن داسې دی لکه لامومن.

**تفسيربيضاوي:** ( ثُمّ أُختُلِف فِي أَنّ مُجرّد التصديق بِالقلْب هَل هُوكَافٍ لأَنّه المَقصُود أَم لَابُدّ مِنَ انْضِمامِ الإقْرار بِه لِلمُتَمَكّن مِنه وَلَعل الحَقَّ هُوالثّانى لانّه تعالى ذَمّ المُعَانِد أَكثَرَ مِن ذَمِّ الجَاهل المُقْصِر وَلِلمَانع أَن يجْعَل الذّم لِلانكَار لَا لعدمِ الاقْرارِ لِلمُتمَكّن منهُ)

**ترجمه:** بيا په دې خبره کې اختلاف دی چې يوازې تصديق بالقلب کافي دی لپاره د حصول د نجات اوکه نا، ځکه تصديق قلبي مقصود دی اوکه لابدي ده له انضمام د اقرار نه لپاره دهغه چاچې قدرت ئې په اقرار حاصل کړی وي اوکيدی شي چې دا دوهم مذهب حق وي ځکه الله جلّ جلاله دمعاند زيات مذمت کړی دی د مذمت د جاهل نه هغه جاهل چې مقصروي او د معاند او معترض لپاره داخق شته چې وګرځوي( متوجه کړی) ذم لپاره د وجود د انکارنه لپاره د عدم اقرار د چا چې قدرت په اقرار وي.

**تشريح:** دا هغه دوهم مذهب دی داکثراحنافو دلته د محققينو او ا اکثر احنافو په مسلک کې فرق کوي په دې کې خو د دواړو اتفاق دی چې ايمان عبارت له تصديق قلبي ځخه دی اختلاف په دې کې دی چې اقرار لساني د مجات او خلاصي لپاره ضروري دی او که نا؟ محققين وايي چې

صرف تصديق قلبي كافي دي اقرار ضروري نه دى لكه امام غزالي رحمه الله وايي كه يو سړى الله تعالى په دلايلو سره وپيژني او دومره وخت هم ورته ميلاو شي چې اقرار په كې وكړي و ده اقرار ونه كړو نو د ده دا عدم اقرار د هغو ګناهونو قايمقام دى كوم چې د ايمان سره له سړي نه صادرېږي هم دا رنګه په حديث كې راځي چې كه د چا په زړه كې د زرې برابر ايمان هم وي هغه به مخلد في النار نه وي او اكثر احناف وايي چې اقرار د ايمان ركن زايد دى .

قاضي صيب دويم مسلک ته حق ويلي او دليل يې دا بيان كړى چې څوک سره له تصديق قلبي اعتراف او اقرار نه كوي هغه معاند دى او الله تعالى د معاند مذمت زيات بيان كړى په نسبت سره جاهل ته لكه الله تعالى جاهل ته كلمه د لايعلمون استعمال كړې (ومنهم لايعلمون الكتب الا امانيّ وان هم الا يظنون) او معاند ته يې كلمه د «ويلٌ» استعمال كړې ده (فويل للذين يكتبونه الكتاب ...) نو معلومه شوه چې له تصديق قلبي سره د اقرار ضرورت شته [1] .

(۱):- په ايمان كې بله اختلافي مسئله دزيادت اونقصان ده : (۱) امام ابوحنيفة اوجمهور متكلمين وائي ايمان بسيط دي زيادت اوكمي (نقصان) پكې نشي راتلل، ځكه زيادت اونقصان په هغه څه كې راځي چې مركب له اجزاء څخه وي. (۲) آئمه ثلاثه اوجمهور محدثين وائي ايمان مركّب دى اعمال پكې داخل دي نوپه اعمالو كې زيادت اونقصان راځي ځكه ايمان زيادت اونقصان قبلوي، اصل كې دا اختلاف يو ظاهري اختلاف دى حقيقي ندى امام ابوحنيفة رحمه الله چې وائي ايمان زيادت اونقصان نه قبلوي هغه نفس ايمان يادوي اوله دينه آئمه ثلاثه هم انكارنه كوي او آئمه ثلاثه دزيادت اونقصان قائل دي هغه كمال دايمان يادوي اوله دينه امام ابوحنيفة رحمه الله انكارنه كوي (۳) اختلافي مسئله په ايمان كې هغه نسبت ده په مابين دايمان او اسلام كې په دې مسئله كې څلور قوله دي (۱) آئمه ثلاثه جمهور محدثين معتزله اوخوارج دوئ وائي د ايمان او اسلام په مابين كې دوجود اومفهوم په اعتبار سره مساوات اوترادف دى (۲) امام ابوحنيفة رحمه الله اوجمهور متكلمين وائي دمفهوم په اعتبارسره جدا جدا دي خو د وجود په اعتبار سره پكې نسبت دعموم خصوص من وجه ده (۳) ملاعلي القارى رحمه الله وائي د ايمان او اسلام په مابين كې نسبت دعموم خصوص مطلق دى (٤) سيدمرتضى زَبيدي رحمه الله وائي تغاير في المفهوم تلازم في الاعتباردى (مرقاةالمفاتيح :۱ / ۱۷ وفيض البارى : ۱ / ٤٥.

## (بحث دغيب)

**تفسيربيضاوي**: ( وَالغيْب مَصدرٌ وُصِفَ به لِلمُبالِغةِ كَالشَّهادة فى قَوله تعالى (عالم الغَيْبِ وَالشَّهادَة) [1] وَالعَرب تُسمَّى المُطمَئِنَ منَ الأَرض وَالخِمصَةالَّتى تَلِيَ الكُلية غَيبًا)

**ترجمه**: اوغيب مصدردى او په دې سره ذوات مبالغةً موصوف كيداى شي لكه شهادت په دې قول دالله تعالى كې الله جلّ جلاله عالم دى په ښكاره اوپټو شيانو اوعرب ژورې ځمكې ته غيب وائې.

**تشريح**: **دريم بحث** : له دې ځاى نه د غيب تحقيق كوي په صيغه دغيب كې دوه احتماله دي ياصيغه دمصدرده يا صيغه دصفت مشبه ده كه مصدر شي معنا به يې د پټېدو وي او دا په ځلورو اوزانو سره راځي ،غيباً، غيبةً، غياباً له دينه روسته معنى دغيب ذكركوو هغه داچې په دې كې درې احتماله دي كه دا باء د تعديت لپاره شي نوغيب نه به اشياء غائبه مرادوي اوكه باء دمصاحبت لپاره شي نو د غيب نه به مراد خفاء او غيبوبت وي اوكه باء د الى په معنى شي نو دغيب نه قلب مرادوي (۱) كه اوله ترجمه شي چې غيب نه اشياء غائبه مرادشي نومعنى به داشي چې ددوئ ايمان په اشياء غائبه و باندې وو نوه په دې بيا اعتراض واردېږي .

**سوال**: ته وائې چې ددوئ ايمان دى په اشياء غائبه و باندې وو ايمان خو تصديق دى اوتصديق علم دى نو ددوئ علم دى په اشياء غائبه باندې وو او علم په غيبو خو دالله جلّ جلاله خاصه ده ؟

**جواب**: اشياء غائبه په دوه قسمه دي يو هغه اشياء غائبه دي چې دليل عقلي يانقلي ورباندې نه وي اوبل هغه اشياء غائبه دي چې دليل عقلي اونقلي ورباندې وي نو زمونږ هغه اشياء غائبه مراد دي چې دليل عقلي يانقلي ورباندې وي لكه په عذاب قبر پل صراط وغيره.

**سوال**: دلته تاله غيب نه اشياء غائبه واخيسته او بيادې پكې تخصيص وكړ چې هغه اشياء غائبه مراد دي چې دليل عقلي يانقلي ورباندې وي په دغو شيانو به ايمان وي نو په دې نورو به ايمان نه وي ؟

(۱) سورة التوبة : آية (۹۳).

**جواب**: په هغو شيانو چې دلائل نقلي يا عقلي ورباندې نه وي په هغوئ ايمان اجمالي دی چې ( الله يعلم الغيب كله) اوپه كومو چې دلائل نقلي يا عقلي وي په هغوئ ايمان تفصيلي دی. (۲) اوكه غيب نه غيبوبت او خفاء واخلې ددې بيا خپله دوه ترجمې دي (۱) داده چې مغيب عنه نبی عليه الصّلوة والسّلام دی (۲) داده چې مغيب عنه مؤمنان دي. كه مغيب عنه مؤمنان كړې نو ترجمه به داوي چې يؤمنون بالغيب دوئ ايمان لري په حالت دغيبوبت کې يعنې رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) كه مؤمنان سره حاضروي هم ايمان ئې شته او كه غائب وي هم ايمان ئې شته دمنافقانو په شان نه دي.

اوكه مغيب عنه نبی (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) كړې نو معنی به داشي يؤمنون بالغيب په حالت دغيبوبت عن النبی (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) کې دوئ ايمان لري په دې سره ټول مسلمانان مراد دي له تابعينو نه ترقيامته پورې چې نبی (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) ئې نه دی ليدلی او دوئ پرې ايمان لري (۳) كه دغيب نه قلب مراد كړې نو ترجمه به دا شي يؤمنون بالغيب دوئ دزړه نه مؤمنان دي په خوله نه دي لكه منافقان [1] نو په دې ټولو ترجمو کې كومه ترجمه اولی ده د قاضي بيضاوي رحمه الله نه دا معلومېږي چې اوله ترجمه اولی ده او صاحب دروح المعاني وائي چې دوهمه اولی ده ځكه په اوله ترجمه دوه اعتراضات راغلي وو .دا دنن ورځ دټول درس خلاصه شوه.

---

(۱):- امام عبدالرحمن بن جوزي رحمه الله فرمائي چې په غيب کې شپږ اقواله دي (۱) ابن عباس او ابن جريج رضی الله عنهم وائي له غيب نه وحي مراد ده (۲) ابو رزين العقيلي او زربن حبيش رحمهما الله وائي الله جلّ جلاله ترينه مراد ده (۳) امام سدي له خپلو شيوخو څخه روايت كوي او ابوالعالية او دقتادة هم دغه رأيه ده دوی وائي چې له غيب نه مراد هغه څه دي چې په قرآن کې ذكردي خوله بندګانو څخه پناه دي لكه جنت، جهنم وغيره (٤) امام زهري رحمه الله وائي له غيب نه قَدَر وقار ، جلال، اويا قضاء، د الله جلّ جلاله مراد ده (٥) ايمان په رسول الله ترينه مراد ده دهغه چا په حق کې چې ليدلی ئې نه ده عمروبن مرة رحمه الله فرمائي عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته خپلو ملكرو وويل څومره خوش نصيبه ئې له رسول الله صلّى الله عليه وسلّم سره دې ناسته او جهادونه كړي عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ورته وويل هو هغه چاچې نبی عليه الصّلوة والسّلام ليدلی دهغه مرتبه خو روښانه ده خو زه تعجب هغه چاته كوم چې يوازې په يوليكلي شوي كتاب به ايمان راوړي اورسول الله صلّى الله عليه وسلّم به هيڅ ليدلی نه وي بيا ئې دا آيت تلاوت كړ (الّذين يؤمنون بالغيب (زادالمسير : ۱ / ۲۸.)

**تفسیربیضاوي**: أَوفَيعَلْ خُفِّف كَقَيلَ وَالمُرادُ بِه الخَفّى الّذى لَايُدرِكُه الحِس وَلَايَقْتَضِيه بَدِيهة العَقل وَهُوقِسمان قسمٌ لَادَلِيلَ عَليه وَهوالمُعنى بِقولِه تعالى (وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَايَعْلَمُهَا اِلَا هُوَ [1] ).

**ترجمه**: اویا دا فیعل وزن دی تخنیف یکې شوی لکه قیل اومراد په غیب سره هغه خفي شي دی چې حس ئې ادراک نه کوي اونه ئې بداهة العقل تقاضا کوي او دا غیب په دوه قسمه دی یو هغه قسم دی چې دلیل ورباندې نه وي او همدغه مراد دی په دې قول دالله جلّ جلاله سره چې الله جل جلاله سره چابیانې دغیبو دي نه پوهیږي پرې بل څوک مګر یو الله جلّ جلاله.

**تشریح**: غیب په وزن دفیعل دی په غیب کې خو درې حروف دي اوپه فیعل کې څلور دي نو څنګه هم وزنه شوه نو داوائې چې داپه اصل کې غییب دی بیایوه یاء په بله کې مدغمه شوه غیّب شو په تشدید سره نوبیا یکې تخفیف وشو یوه یا حذفه شوه نو غیب ترینه جوړشو لکه قیل کې چې تخفیف شوی په اصل کې قییل و نو قیل ترینه تخفیفا جوړ شو (والمراد) سره قاضي صیب دلته دا خبره بیانوي چې کوم ځای کې د غیب لفظ راغلي د هغې معنا مراده به هغه شیان وي چې د هغې ادراک په حس سره نه کیږي او نه عقلا بدیهي وي دا بیا دوه اقساموته تقسیموي یو هغه چې دلایل نقلیه او عقلیه ورباندې وي او دویم چې دا دلایل ورباندې نه وي

**تفسیربیضاوي**: ( وَقسمٌ نُصِبَ عَليهِ دَلِيل كَالصَّانِعِ وَصفَاته وَاليَومِ الآخِرِ وَأَحوَالِهِ وَهُو الْمُرادُ بهِ فِى هذهِ الآيَة)

**ترجمه**: دوهم قسم دغیب دادی چې دلیل ورباندې وي لکه وجود د صانع (الله جلّ جلاله) اوصفات د الله جلّ جلاله او ورځ آخرنۍ او احوال ددې ورځې او مراد په دې آیت سره همدغه معنی ده.

**تشریح**: نو په دې باندې دلیل عقلي یا نقلي شته چې الله جلّ جلاله صانع دعالم دی دالله جلّ جلاله صفات شته او ورځ آخرنۍ او دحوال د دې ورځې په دې ټولو دلایل موجود دي.

---

[1]:- سورة الانعام : آية (٥٩).

**تفسیربیضاوي**: (هَذا اِذَا جَعَلْتَه صِلة لِلايْمَان وَأَوقَعْتَه مَوقِع المَفعول بِهِ وإنْ جَعلْتَه حَالًا على تَقدِير مُلْتَبِسِينَ بِالغَيبِ كَانَ بِمعنى غَيبَة وَالخَفَاء وَالمَعنى أنَهم يُؤمنوهُ غَائِبِين عَنكُم لَا كَالمُنافِقِين الَّذينَ ( اِذَا لَقُوالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْا اٰمَنَّا وَاِذَا خَلَوْ اِلَى شَيَاطِيْنَهِمْ قَالُوْا اِنَّا مَعَكُمْ [1]) .

**ترجمه**: له غيب نه دا معنى(چې دلايل نقليه يا عقليه ورباندې وي) په هغه صورت کې ده چې دا (بالغيب) صله لپاره دايمان شي او دا يؤمنون په ځای د مفعول به کې واقع کړې او که ته دا (جار مجرور) حال کړې نو په معنى دغائب والي اوپټ ولي به وي او معنى به داوي (ترجمه) چې دوئ (متقين) ايمان لرونکي وو په دې حال کې چې دوئ له تانه غائب وو ،نه په شان دمنافقانو (ترجمه) چې کله دمؤمنانو سره مخامخ شي نو وائي چې مونږ ايمان راوړی دی او چې کله دخپلو مشرانو د شيطانانو سره مخامخ شي نو وائي چې مونږ له تاسو سره ملګري يو.

**تشريح**: په دې ايت کې چې له غيب نه څه مراد دي د دې باره کې درې اقوال دي او دريواړه موقوف دي په تعين د باء د بالغيب باندې ځکه د باء درې قسمونه دي اول د صلې لپاره دويم مصاحبت او دريم د استعانت لپاره نو که باء لپاره د صلې شي غيب صله د ايمان کړي او واقع ئې کړي په ځای دمفعول به يعنې مفعول به غيرصريحې ئې کړي د يؤمنون لپاره کمامرّ، او که باء لپاره د مصاحبت شي نو غيب معنا به پټوالی وي او په دې وخت کې به بالغيب حال وي د يؤمنون د فاعل لپاره نو معنا به داشي او کوم کسان چې ايمان يې راوړی په داسې حال کې چې هغوی له تاسو نه غايب دي داسې لکه منافقان، نو له دينه زمونږ عقيده هم روښانه شوه چې دغيبو علم الله جلّ جلاله سره دئ خو هغه غيب چې په هغې دليل عقلي اويا نقلي نه وي نو د دې علم ذاتا اوکلاً دواړه الله جلّ جلاله سره دي اوبل هغه غيب دي چې دلائل پرې قائم دي نقلي اويا عقلي نو دا غيب ئې بندګانو ته وربښودلی دی نو د دې علم مونږ سره شته خو الله راکړی يعنې جزي دی او اعطائي دی.

---

(۱):- سورة البقرة: آية (۱۳).

**تفسیربیضاوي**: ( وَ عَن المُؤمِن بِه لمَا روى أَنّ ابن مَسعُود رضى الله عنه قَالَ وَالَّذِى لَااِلٰهَ غَيرهُ مَا أَمنَ أَحد أَفضَل مِن اِيمَان بِغَيب ثُمّ قَرأ هَذه الآيَة) [۱] .

**ترجمه**: اويا حال شي دمؤمن به (محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)) نه لکه روايت کړی شوي د عبدالله بن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) چې په هغه الله جلّ جلاله مي دې قسم وي چې دهغه نه بل لائق دعبادت نشته ايمان نه دې راوړی هيچا چې افضل دي دهغه چانه چې ايمان ئې په غيبو راوړی بيائې دا آيت تلاوت کړ يؤمنون بالغيب.

**تشريح**: کله چې ايمان راوړونکی غايب شي نو مغيب عنه په ثوک وي مغيب عنه صحابه کرام هم کيدلی شي او رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) هم که صحابه کرام مغيب عنه شي معنا به داشي په داسې حال کې ايمان لري چې هغوی غايب دي له صحابه کرامونه او که رسول الله مغيب عنه شي معنا به داشي په داسې حال کې ايمان لري چې هغوی غايب دي له رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نه او د دې قول تائيد دابن مسعود (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ)قول هم کوي چې د غائبينو ايمان له حاضرينو عند رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) غوره دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وَقِيل المُرادُ بِالغَيبِ القَلْبُ وَالمَعنى يُؤمنُون بِقُلُوبِهم لَا كَمَن يَقولُونَ بِأفْواهِهم مَا لَيْسَ فِى قُلوبِهم فَالبَاء عَلَى الاوّل لِلتَعدِيَة وَعلى الثَانِى لِلمُصاحَبة وَعلى الثَالِثِ لآلة)

**ترجمه**: اوچا دغيب معنى په قلب سره کړې ده نومعنى به ئې دا وي چې دوی له زړونونه ايمان راوړي نه پشان د هغه کسانو چې وائې په خپلو خولو هغه څه چې په زړه کې ئې نه وي نو بناء په اول باندې باء دتعديت لپاره ده او په ثاني کې دمصاحبت لپاره ده او په ثالث کې دآلې لپاره ده.

---

(۱):- قال سعيد بن منصور حدثنا ابو معاوية عن الاعمش عم عمارة بن عمير عن عبدالرحمن بن يزيد قال كنّا عند عبدالله بن مسعود جلوسًا فذكرنا اصحاب رسول الله صلّى الله عليه وسلّم وما سبقوا به قال: فقال عبدالله ان امر محمدصلّى الله عليه وسلّم كان- - بينًا لمن رأه وَالّذى لااله الّا غيره ما امن احد ايمانًا افضل من ايمان بغيب ثم قرأ (المّ ذلک الکتاب الی قوله (المفلحون) رواه الحاكم (۲۰۳۳)وصححه وابن مندة فى كتاب الايمان :( ۱ /۳۷۱) باسناد صحيح وابن ابي حاتم وفى معنى هذالحديث رواه احمد.

**تشریح**: دا د باء دریم قسم دی چې دا لپاره د الې شي په دې صورت کې به د غیب نه مراد قلب شي نو معنا به دا شي چې هغوی له زړو څخه ایمان راوړی د هغو کسانو پشان نه دي چې

په خولو څه وایي او په زړونو کې یې هیڅ نه وي دا درې اقوال دي د اول بنا به د تعدیت لپاره وي او دویم د مصاحبت او د دریم د الې لپاره.

## (بحث یقیمون الصّلوة)

**تفسیربیضاوي**: (وَیُقِیْمُوْنَ الصَّلَوٰةَ) أی یُعَدِّلونَ أَرْکَانَها وَیَحفَظُونها مِن أَنْ یَّقعَ زَیغٌ فِی أَفعَالِهَا مِنَ العود اِذَا قَوّمهُ أَو یُواظِبُون علَیها مِن اِقامَت السُوق اِذا نَفَقَت أو اَقَمْتها اِذَا جَعَلتَها نَافِقةً)

**ترجمه**: او دوئ قائموي لمونځونه ای هررکن دلمانځه برابر اداکوي او حفاظت کوي د نقصان واقع کیدلو نه په افعالو دلمانځه کې دا دقام العود څخه مأخوذ ده چې کله زمیندار لرګی سیده کړي او یامعنی دا چې په لمونځ باندې دوام کونکي وي او دا د اقامت السوق نه مأخوذ دی چې کله بازار رواج شي او ته ووائې چې ما بازار رواج کړ.

**تشریح**: له دې ځای مصنف دوه بحثونه کوي اول د یقیمون متعلق او دویم د صلاة متعلق د یقیمونه معناګانې بیانوي اول تعدیل الارکان دویم مواظبت او دریم تشتمرلاداء الصلاة څلورم مطلقه اداکول.

**اوله معنا یعدلون** دا چې یقیمون د یعدلون ارکانها په معنا ده یعنې د لمانځه ارکان په بغیر له کمې او زیاتي سره ادا کوي او دا اخستل شوی له اقامت العود څخه عرب دا هغه وخت وایي چې کله کوږ لرګی نیغ کړي او استعاره تبعیه ده.

**استعاره** دیته وائي چې یو فعل مشابه کړې له یو مصدر سره او بیا د دې مصدر مشتقي په دې فعل کې مستعمل کړی نو دا استعاره بالتبعیه ده لکه یقیمون الصّلوة معنی ده یعدلون ارکانها یعدلون یو فعل دی او دا مشابه کړی شو د اقامت سره او اقامت دریدلو ته وائي یا له قیام سره چې دریدلو ته وائي دائې معنی لغوي ده او معنی حقیقت عرفي د اقامت تسویت الاجسام سره مشبه به یا د اقامت مصدر

مشتقي راغلو چې يقيمون ده په دې مشبه چې يعدلون دی په دې کې ئې مستعمله وو نو دا استعاره بالتبعيه شوه (يقيمون الصّلوة) وجه دشبه داده چې په يعدلون ارکانها کې تسويت افعال دی او په مشبه به کې چې اقامت دی تسويت الاجسام دی نوپه دواړو کې تسويه ده.

**دويمه معنا يواظبون**: بله معنا د يقيمون يواظبون ده او دا اخستل شوې ده له قامت السوق څخه دا هغه وخت ويلی شي چې کله بازار رائج شي اقمت السوق هغه وخت ويلی شي چې کله بازار رائج کړې په دې معنا سره بله طريقه داستعارې بالتبعيه ده هغه دا چې يواظبون مشبه او اقامت په معنی د رواج اسوق (چليدل دبازار) سره اخلو چې دائې بله معنی حقيقت عرفي ده بيا د دې مشتقي مو را وا خيستلو چې يقيمون دی په دې فعل (يواظبون) کې مو مستعمل کړو نو دا استعاره بالتبعيه شو خو اوله استعاره قوي ده ځکه هلته وجه د شبه قريبه ده چې دواړه په تنويه کې سره شريک وو او دلته وجه دشبه لګ بعيده ده چې حسن ده ځکه په کوم شي چې هميشه والی کيږي هغه هم حسن وي او کوم بازار چې چليږي او رائج وي هغه هم حسن وي.

**تفسيربيضاوي**: ( قَال أَقَامت غَزَالةُ سُوق الضِّرَابِ.... لأَهلِ العِراقِين حَولًا قَمِيطًا.

**ترجمه**: شاعر وائي چې رائج کړ غزالې بازار د جنګ لپاره د اهل دکوفي اوبصري پوره کال.

**تشريح**: مصنف دا شعر د دې لپاره ذکر کوي چې اقامت په معنا رائج کولو سره ده .

غزاله ديوې ښځې نوم وو او د دې د خاوند نوم شبيب الخارجي وو نو موړي حجاج قتل کړ کله چې د ښځه خبره شوه هغه ډېره شجاعه وه د مقابلې لپاره راغله اوله ځان سره ئې د بصرې اوکوفې لښکر راوست په حجاج باندې يې حمله وکړه په دغه جنګ کې د حجاج سره ډېرش زره لښکر و او له غزالې سره يوازې زرکسيز لښکر و په ډېره ثابت قدمی ورسره پوره يو کال وجنګېده اخر حجاج شکست وخوړ او غزاله راغله په جامع جومات کې يې د سحار لمونځ ادا کړ[1].

---

(۱):- دا د ايمن ابن حزيم د يوې لونې قصيدې بيت ده قصيده دا ډول ده:

ابى الجناء من اهل العراق - على الله والناس الاسقوطا-

- ايهزيهم مائتا فارسًا - من السافکين الحرام العبيطا

وخمسون من مارقات النساء - يجرون للمندبات المروطا

**تفسیربیضاوي**: ( فانّه اِذا حُوفِظَ علَیها کَانَت کَالنَّافِق الّذِی یَرغَب فِیه وَاذَا ضَیَّعتْ کَانَت کَالکَاسِدِ المَرغُوب عنْه)

**ترجمه**: کله چې دا لمونځ په حفاظت وکړی شي دا پشان د چلیدلي بازاردی هغه چې خلک ورته رغبت کوي اوکله چې دا لمونځ ضائعه کړي شي بیا داسي دی لکه کوټه روپۍ بازار کې څوک ورته رغبت نه کوي یعنې نه ورځي.

## حل اللغات

| شماره | لغات | معني |
|---|---|---|
| ۱ | حزّاب | جنګ (قتل قتال) |
| ۲ | قمیطًا | یوکال |
| ۳ | نافق | چلیدونکی |
| ۴ | کاسد | کوټه |
| ۵ | سوق | بازار |

**تفسیربیضاوي**: ( أو یَتَشمّرُون لأَدائها مِن غَیرِ فُتُورٍ لَاتَوَان مِن قَولِهِم قَامَ بِالأَمر وَأَقامهُ اِذا جَدّ فِیه وتَجَلَّد وَضدّهٗ قَعَد عَنِ الأَمر وتَقاعَد او یُؤدُونها غَیرعن الأَدائهَا بِالاقَامة لِاِشْتمالهَا علی الْقِیام کمَاعَبَّرعنهَا بِالقُنوت وَالرُّکوع والسُّجودِ وَالتَّسبِیح وَالاوَّل أَظهر لأَنّه أَشهر و اِلی الحَقِیقةِ أَقرب وأَفْیَدُ )

**ترجمه**: اوبه‌ي ئې راوهلي وي لپاره اداء کولو د لمانځه بغیر دسستی او قصورنه او دا مأخوذ دی د دې قول نه چې قام بالامر و اقامه لکه فلانی کوشش اوسختي په کارکې کوي د دې

---

رأیت الغزالة اذ طرحت - بمکة هو دجها والغبیطا
سیمت للعراقین من سومها - فلاق العراقان منها البطیطا
الا یتقی الله اهل العراق - اذا قلدو الغانیات السموطا
وخیل غزاله تغتالهم - فیقتل کهل ابو فاء الوسیطا
اقامت غزاله سوق الضراب - لاهل العراقین حولًا قمیطًا

ضد قعد عن الامر دى چې فلانى دکار نه کيناست اويا مراد دا چې دوئ لمونځ اداکوي لمونځ په اقامت مشتمل وي ځکه يې د صلاة تعبير په اقامت سره وکړو لکه څنګه چې دصلوة نه تعبيرپه قنوت ،رکوع ،سجده اوتسبيح سره کيږي او اوله معنى اظهره ده ځکه دا اشهره ده او اقربه ده حقيقت ته اوډيره مفيده ده.

**تشريح: دريمه معنا**: دا د يقيمون دريمه معنا ده چې يتشمرون للأداء يعني لمونځ بغير له سستى او کوتاهى نه په ښه راستى او بيدارى سره ادا کوي دا اخستل شوې له قام الامر واقامه څخه دا عرب هغه وخت وايي چې کله يو کار په طاقت او کوښښ سره ادا کوي او د دې په مقابل کې قعد عن الامر وتقاعد راځي يقيمون په دې معنا سره مجاز مرسل دى.

**مجاز مرسل**: ديته وائي چې ذکر د ملزوم مراد ترينه لازم يا ذکر د کل مراد ترينه جزء او يا ذکر دسبب او مراد ترينه مسبب وي، چوستي او چالاکي دا سبب دئ او دريدل (اقامت) ورته مسبب دى نو دلته ذکر د مسبب دى چې يقيمون الصّلوة دى او مراد ترينه سبب دى چې چستي او چالاکې سره لمونځ کول دي نو دا مجازمرسل دى.

**څلورمه معنا**: د يقيمون بله معنا اداکول د لمانځه ده يعنې اقامت سره ادا کول مراد شوې ده نو دا هم مجازمرسل دى ځکه ادا کل دي او اقامت ترينه جزء دى، يعنې ذکر د جز دى او مراد ترينه کل دى او داسې مثالونه چې ذکر د جز او مراد ترينه کل وي په قران ډېر زيات دي لکه قنوت يو جز دي چې قيام ته وايي او په قرآن کې ټول لمونځ ترينه مراد کړى شوى دى لکه فرمايي (وكانت من القانتين) بل ځاى الله تعالى فرمايي (والركعوا مع الراكعين) دلته هم ذکر د جز دى چې رکوع ده مراد ترينه ټول لمونځ ده بل ځاى فرمايي (وكن من الساجدين) دلته هم ذکر دسجدې او مراد ترينه ټول لمونځ دى بل ځاى فرمايي (ولو لا انه كان من المسبحين ) دلته هم ذکر د جز دى چې تسبيح ده او مراد ترينه ټول لمونځ دى، خو اوله ترجمه چې يعدلون ارکانها دى اظهره ده ځکه اشهره ده او حقيقي معنى ته اقربه ده ځکه دواړه سره شريکې دي په تسويه کې اوډيره مفيده ده.

**تفسيربيضاوی**: ( لِتَضمّنهِ التَّنبِيه عَلى أَنَّ الحَقِيق بِالمَدح مَن رَاعى حُدُودَها الظَّاهرةِ مِنَ الفَرائِضِ وَالسّنِنِ وحُقُوقها البَاطِنة مِن الخُشُوع وَالاِقبال بِقَلبه عَلى اللهِ تَعالى لَا المُصلّون( الّذين هُمْ عن صَلَاتِهم سَاهُون [۱] وَلِذلِک ذَكر فِي سِياق المَدْح (والمقيمين الصّلوة [۲]) وَفِي مَعرَض الذَّمّ (فويلٌ للمصلّين [۳]

**ترجمه**: اوله معنى ځكه مفيده ده چې متضمنه ده معنى د تنبه لره په دې خبره چې (يقيمون په ځاى د مدح كې ذكردى) لائق د مدحې هر هغه څوک وي چې رعايت د حدودو د لمانځه كوي هسې حدود چې له فرائضو او سنتو څخه ظاهروي اوهغه څوک چې دحقوقو باطنه وو د لمانځه رعايت كوي چې خشوع او په زړه سره الله جلّ جلاله ته متوجه كيدل دي نه هغه لمونځ ګذار چې خپل لمونځ نه غافل وي له دې وجه نه يقينون الصلاة په سياق د مدح كې ذكرده او په معرض د ذم كې فويل للمصلين ذكرده [٤]

## درې وجې د ترجيه

**تشريح**: له دې ځاى نه مصنف رحمه الله د اولې معنا چې يعدلون ده درې وجې د ترجيه بيانوي او له وجه داده چې يعدلون معنا زياته مشهوره ده په نسبت سره نورو ته ، دويمه وجه دا چې يعدلون خپلې خقيقي معنا ته قريبه او نږدې ده په نسبت د نورو معناګانو دريمه وجه د ترجيح دا ده چې يعدلون اركانها زياته مفيده ده په نسبت سره نورو ته؛ ځكه ډيره مفيده ده چې متضمنه دتنبه لره په دې خبره چې لائق په مدحه هغه څوک دى چې رعايت دحدودو كوي ځكه يقيمون الله جلّ جلاله په مقام دمدحه كې ذكركړى ده حكم چې په مشتقي مرتب شي نومبداء ئې ورته علت وي نو الله جل جلاله چې مدحه د يقيمون والاكړى ده هغه د تسويت الافعال په وجه ئې كړي تسويت الافعال ورته علت دى.

---

(۱):- سورة الماعون : آية (۵).

(۲):- سورة النساء : آية (۱٤۱).

(۳):- سورة الماعون : (٤).

(٤):- امام عبدالرحمن ابن جوزي رحمه الله وائي اقامت كې درې قوله دي (۱) ابن عباس رضى الله عنه او امام مجاهد رحمه الله وائي اقامت نه مراد تماموالى د اركانو دلمانځه ده په طريقې دمأموربه (۲) قتادة اومقاتل رحمهماالله وائي مراد ترينه ساتنه اومحافظت د اوقاتو ده، د اوداسه ، دركوع ، اوسجدې ده (۳) ابن كيسان رحمه الله وائي مراد اقامت نه دوام ده په لمانځه (زادالمسير : ۱ / ۲۸)

## (دصلوة معنى لغوي اواصطلاحي)

**تفسيربيضاوي:** ( وَالصّلوة فَعْلَة من صَلّى اذَا دَعَا كَالزَّكاةِ مِن زكّى كُتِبَتَا بِالوَاو على الفظِ المُفَخَّم)

**ترجمه:** صلوة د فعلة وزن دى د صلّى يصلى نه چې كله دعا وكړى لكه زكوة دزكى نه مأخوذ دى اوپه دې دواړو كي واو د هغه چا د لغت مطابق ليكلي شي څوک چې الف كې تفخيم كوي.

**تشريح: دويم بحث:** مصنف رحمه الله له دې ځايه د لفظ د صلوة تحقيق كوي.

## دجمهوراو علامه زمحشري اختلاف

هغه داسې چې د صلوة لپاره معنى لغوي اومعنى شرعي بيانوي (١) معنى شرعي دصلوة اركان مخصوصه دي (٢) په معنى لغوي دصلوة كې دوه قوله دي يو د جمهورو قول دى او بل د علامه زمحشري قول دى.

**جمهور:** وائې چې صلوة په وزن د فعلة دى د دې اصل صلوَة و واو پكې متحرک و ماقبل حرف صحيح ساكن و نو د واو حركت ماقبل ته نقل شو او واو په الف سره بدل شو لكه زكوة چې له زكوَة څخه جوړ شو خو واو په دواړو كې د تفخيم په بنا ليكلى شي

د تفخيم درې معناګانې دي (١) ترک اماله (٢) لام ډک لوستل (٣) وجود اماله او دلته دريمه معنى مراد ده يعنې په صلوة كې د لام فتحه او زكوة كې د كاف فتحه ضمې طرفته مايل كولو سره لوستل او دا قسم تفخيم هغه وخت كيږي چې كله د فتحې نه پس الف منقلب عن الواو واقع شي

نو د صلوة لغوي معنى دعاده نو دشرعي او لغوي معنى په مابين كې مناسبت دكل اودجزء دى چې شرعي معنى كل ده اولغوي معنى جزءده نو په طريقې د مجاز مرسل سره له دعا څخه اركان مخصوصه واخستل شو.

**تفسيربيضاوي:** ( وإنّما سمّى الفِعلُ المَخصُوص بِها لاشتِمالِه على الدُّعاء وقِيلَ أَصلُ صَلى حرّک الصلوَين لاَنّ المُصلّ يَفعلهُ فِى رُكوعهِ وَسُجُوده)

**ترجمه**: اوپه صلاة سره خاص فعل مسمی کړی شوی دی له وجې د اشتمال د دې فعل مخصوصه په دعا باندې اوچا ویلي دي چې صلاة اصل کې دکوناټو خوزولوته وائي ځکه چې په لمونځ کې هم د افعل په رکوع اوسجده کې کولی شي.

**تشریح**: په قیل سره د علامه زمخشري مذهب بیانوي او قیل مجهول صیغه د تمریض ده په دې کې اشاره ضعف د مذهب ته.

**علامه زمخشري**: وائي چې صلوة په معنا لغوي سره د صلا څخه دی اوصلا اسم دی لپاره د تحریک الصلوین یعنې اسم دی لپاره دمصدر چې تحریک الصلوین دی نو د ده په نزد د معنی لغوي اوشرعي په مابین کې مناسبت د اشتمال دی ځکه ارکان مخصوصه مشتمل دي په تحریک الصلوین دا هم په طریقې د مجاز رسل سره

**تفسیربیضاوي**: ( وَاشتِهَار هذَا اللَفظ فِي المَعنى الثَّانِي مَع عَدمِ اِشتِهارِ فى الأَوَّل لَايَقدَحُ فِي نَقلِه عَنهُ وانّما سمّى الدّاعى مُصلِيًا تَشبِيهًا لهُ فى تَخَشّعه بِالرَّاكِع والسَّاجد).

**ترجمه**: او په اشتهار د دغه لفظ (صلوة) په معنی ثاني کې سره دعدم اشتهار نه په معنی اوله کې (تحریک الصلوین) او په نقلولو کې د دې لفظ (صلوة) دمعنی حقیقي نه څه غیب نه شته اومسمی کړی شو دعاکونکی په مصلي سره له وجې دمشابهت دده په عاجزي کې له رکوع کونکي اوسجده کونکي سره.

**تشریح**: په دې عبارت یو سوال ده هغه دا

**سوال**: ته وائې چې دا تحریک الصلوین منقول عنه معنی ده او ارکان مخصوصه منقول الیه معنی ده اوموږ چې صلوة مطلق ذکرکړو منقول الیه معنی ترینه فهمیږي اومنقول عنه معنی خوترینه نه رافهمیږي نو دا څنګه منقول عنه شو نو دلته مجاز له حقیقت نه زیات اعرف شو او حال دا چې حقیقت اعرف وي له مجاز نه؟

**جواب**: دا ورته په دې عبارت سره جواب كوي چې «واشتهارهذا اللفظ» صلوة په معنا منقول اليه كې مشهوريدل او او منقول عنه كې نه مشهوريدل په منقول عنه كې څه عيب نه پيداكوي كيداى شي چې نقل دومره غالب شي چې اوله معنا بلكل ترك كړى شوي وي.

وانّما سمى سره دفع د اعتراض كوي چې په زمخشري وارد دى.

**سوال**: ته وائې چې صلوة تحريك الصلوين ته وائې او اركان مخصوصه وو ته خو صلوة څكه وائې چې هغې كې هم تحريك الصلوين شته نو كله خو دعا كونكي ته هم مصلي وائې په دعاكې خو تحريك الصلوين نشته ؟

**جواب**: دعا كونكي ته ئې وجې تشبه نه له اركان مخصوصه سره په عاجزي كې يعنې دعاكونكي ته تشبهًا مصلى ويل كيږي.

د علامه زمخشري او د جمهورو په مسلك كې فرق دا دى چې د مصلي استعمال په داعي كې په نزد دجمهورو حقيقت دى او په نزد علامه مجاز دى او د علامه زمخشري مذهب يې دوهمه مرتبه كې ذكركوي په دې كې اشاره ده ضعف د ده مذهب ته او دضعف وجهې ئې دا دي اوله وجه داده چې دلته ئې دصلوة لپاره مشتق منه اسم كړو كوم چې غير معنا حدثي دى او مشتق منه معنا حدثي وي او صلاة په وزن فعلة دى څكه صلاة په اصل كې صَلَوَةٌ دى واومتحرك ماقبل ساكن نو فتحه دواو مو ماقبل ته وركړه نو واو ساكن ماقبل مفتوح واو مو په الف بدل كړو صلاة شو.

دويمه وجه د ضعف دا ده چې د صلى ترجمه په تحريك الصلوين سره كوي او صلى فعل ماضي ده د باب تفعيل څخه او د تفعيل صيغه په معنا د تحريك سره راتلل نا اشنا دي.

**تفسيربيضاوي**: ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾

**ترجمه**: اوبعضې د هغه مال نه چې مونږ دوئ ته وركړى په لاره دالله جلّ جلاله كې ئې خرچ كوي.

**تشريح**: له دې ځاى څخه مصنف درې بحثونه ذكر كوي اول د زرق تحقيق او په دې كې د اهل السنة او معتزل و اختلاف دويم د ينفقون تحقيق دريم د ممارزقناهم مراد خو مخكې له دغو درې بحثونو دا خبره واوره په كلمه د «ما» دمِمّا كې درې احتماله دي (۱) موصوله (۲) موصوفه (۳)

مصدریه ده، (۱)که موصوله شي نو رزقناهم ئې صله ده اوصله اعراب محلي نه لري نوپه دې
2 ترکیب کې اعراب محلی نه شته.

(۲) که موصوفه شي نو رزقناهم ورته صفت دی اوبیا اعراب محلي لري چې جردی.

(۳) اوکه مصدریه شي نو معنی به داوي من رزقنا ینفقون.

یو رِزق دی اوبل رَزَق دی.

## مسئله درزق

**رَزَق**: وائې اعطاء الحظ یعنې دبرخې ورکول په دې کې یوازې دمصدریت احتمال دی.

**رِزق**: په دې کې د اسمیت احتمال هم شته او دمصدریت احتمال هم شته که مصدر شي همغه معنی ئې ده چې اعطاء الحظ دی اوکه اسم شي نو بیا په معنی د نصیب یعنې برخې سره دی.

**تفسیربیضاوي**: ( أَلرِّزقُ فی اللُّغةِ الحظُّ قَال اللهُ تعالی (وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ انّكُم تُكَذِّبُوْنَ[1]) وَالعُرف خَصّصَه بِتَخْصِيص الشَّئ بِالحَيوانِ لِاِنْتِفاع بِه وَتمَكِينه منهُ)

**ترجمه**: رزق په لغت کې خصې ته وائې الله جلّ جلاله فرمائې : تاسو د حق تکذیب خپله حصه گرځولې. اوعرف رزق خاص کړیده تخصیص دشې ترحیوان پورې یا رزق خاص ده ترحیوان د نفعي اخستلو پورې اوپه دغه رزق قدرت ورکولو پورې.

**تشریح**: **اول بحث**: دلته یې رزق داسمیت په معنی گرځولی.

## (حرام رزق دی اوکه نه)

**تفسیربیضاوي**: ( وَأَمّا المُعتزِلةُ لمّا استَحالُوا عَلى اللهِ تعَالى أَنْ يُمكنَ مِن الحَرامِ لأَنّه مَنعَ مِن الانْتفَاع بِه وَأَمر بِالزَّجر عَنه قَالوا آلحَرام لَيس برِزْقٍ).

**ترجمه**: هرچې معتزله دي دوئ داخبر محال گڼلی په الله تعالی باندې چې عبد لره قدرت په حرامو ورکړي ځکه الله جلّ جلاله د دې د نفع حاصلولو نه منع کړیده او امر ئې په زجر کړی له حرامو ځخه ویلي دي چې حرام رزق نه دی.

---

(۱):- سورة الواقعة :آية (۸۲).

**تشریح**: په رزق کې اختلاف دی چې حرام رزق دی او که نه دی اهل سنت والجماعة وائې حرام هم رزق دی او حلال هم رزق دی او معتزله وائې چې حلال رزق دی او حرام رزق نه دی.

**د معتزله وو دلائل**: [1] دوی درې دلایل وایي :

اول: دلیل درزق په تعریف کې د تمکین لفظ دی یعنې قدرت او دا دالله جلّ جلاله په جانب کې محاله ده چې چاته تمکین او قدرت په حرامو ورکړی ځکه دا قاعده ده تمکین القبیح قبیح او الله ته دقبحې نسبت نشي کیدلی نو حرام رزق هم نه دي او همدغه رنګه اصلح د عبادو په الله تعالی باندې واجب ده په نزد د معتزله و او اصلح رزق حلال دی.

**تفسیربیضاوي**: ( اَلا تَری أَنّه تعالی أَسنَد الرِّزقَ هَهُنا الی نَفْسِه اِیذَانًا بِأَنّهم یُنفِقونَ الحَلالَ المُطلَق فَانّ اِنفاقَ الحَرامِ لَایُوجِب المَدحَ)

**ترجمه**: آیا ته نه ګورئ دلته الله جلّ جلاله درزق نسبت خپل ځان ته کړیدی په دې خبره باندې د تنبه ورکولو لپاره چې حلال او پاک مال خرچ کوئ ځکه چې خرچ کول دمال حرام مدحه نه لازموي.

**تشریح**: داده معتزله دوهم دلیل دی هغه دا چې الله جلّ جلاله په مَمّا رَزقنهم کې رزق خپل ځانته منسوب کړی او بل دا مقام د مدح دی او مدح په حلال مال کې وي نه په حرام معلومه شوه چې حلال رزق دی حرام نه دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وَ ذَمّ المُشرِکینَ علی تَحرِیم بَعض مَارزَقهُم اللهُ تعالی بِقوله (قُل اَرَئَیْتُم مَا أَنزَل الله لَکُم مِنْ رُزقٍ فَجَعلْتُم مّنه حَرَامًا وّحلالًا [2])

(۱):- په اصلح دعبادو کې دمعتزله وو عقیده داده چې اصلح دعبادو په الله جلّ جلاله باندې فرض دی او الله جلّ جلاله ته نسبت دقباځو نه کیږي د ډیر احتیاط له وجې دوئ معتزله شوه اول به ئې دا ویل چې دګناهونو خالق انسان په خپله دی الله تعالی ته ددې نسبت غلط دی باالآخره ئې عام حکم وکړ چې خالق دټولو اعمالو دانسان په خپله انسان دی.

(۲):- سورة یونس : آیة (۵۹).

**ترجمه**: او الله جلّ جلاله مذمت بیان کړی د مشرکینو په حراملو د بعضې هغه څه چې ما رزق ورکړی وو دوئ ته په دې قول خپل کې (ترجمه) ته دوئ ته ووایه چې تاسو مالره خبر راکړی د هغه رزق چې الله تعالی نازل کړیدی ستاسو لپاره تاسو د هغې نه ګرځوئ حلال او حرام.

**تشریح**: دا دریم دلیل دی د معتزله وو هغه دا چې مشرکینو د رزق تقسیم وکړ حلال او حرام ته نو الله جلّ جلاله ئې مذمت بیان کړ نو معلومیږي چې دا تقسیم باطل دی ځکه رزق یوازې حلال دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وَأَصحابُنا جَعلُوا الإِسنَاد لِلتعظِيمِ والتَحرِيض عَلى الإِنفَاق وَالذَم لِلتَحرِيْم مَالَم يَحرمْ وَاِختصَاص مَارَزقْناهمْ بِالحَلال لِلقرِينَة).

**ترجمه**: او اصحابو زمونږ (اهل السنة) دا اسناد د زرق الله جلّ جلاله ته د تعظیم اوتیزولو لپاره ګرځولی دی او ذم د مشریکینو د دې وجې دی چې حرامول یې هغه شیان چې حرام نه وو (دوئ حرامول) او د رزق په حلال پورې خاص کول د قرینې دمقام په وجه ده.

**تشریح**: له دې ځای څخه اهل السنة د معتزله و دلایلو ته جوابو کوي.

**له اول دلیل نه جواب**: معتزله و ویلي و چې دزرق نسبت الله تعالی ځان ته کړی نو معلومه شوه چې یوازې حلال زرق دی.

**جواب**: حرام هم الله جلّ جلاله ته منسوب دي او حلال هم الله جلّ جلاله ته منسوب دي تمکین په حلالو او حرامو الله جلّ جلاله ورکوي خو دلته چې د رزق نسبت الله خپل ځانته کړی دا اختصاص د زرق تر حلالو پورې نه دی بلکې دالپاره د تعظیم اوتیزولو په انفاق.

دویم دلیل نه **جواب**: معتزله و ویلي و چې حلال زرق دی ځکه مشرکینو د زرق تقسیم حلال او حرام ته وکړ الله یې مزمت بیان کړ.

**جواب**: مذمت د مشرکینو الله جلّ جلاله د دوئ د تقسیم درزق په وجه نه دی کړی بلکه په دې وجه ئې الله جلّ جلاله مذمت کړی دی چې دوئ حلالو ته حرام او حرامو ته خلال ویلي دي له ځان څخه یې شارعین جوړ کړي.

له دريم دليل نه **جواب**: معتزله و ويلي وچې ممارزقناهم په مقام د مدح کې دي او مدح په حلال رزق کې.

**جواب**: په ممّا رزقناهم کې تخصيص د رزق تر حلال پورې دی داله وجې د قرينې د مدحې دی او يو شی تر بل شي پورې له وجې د قرينې خاص کيدل مستلزم نه دې خبرې لره چې په وخت د اطلاق کې به هم د غه شی تر هغه معنا پورې خاص وي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَتَمَسَّكُوا بِشُمُول الرِّزق لهُ بِقوله صلّى الله عليه وسلّم فى حَدِيث عَمروبن قرّة رضِى الله عنه لَقدْ رَزقڪُم اللهُ طيِّبًا فَاخْتَرت مَاحَرَّم الله عَليک مِن رِزقِه مَكانَ مَاأَحلَّ الله لَك من حَلالِهِ) .

**ترجمه**: اهل السنة دليل نيولئ دی په شمول درزق حرام لره په دې قول دنبی (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) په حديث د عمرو بن قرة (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ) کې فرمايي: الله تعالى تاته حلال رزق درکړي دی تاهغه رزق اختيار کړو چې کوم الله جلّ جلاله حرام کړی دی په عوض د هغه کې چې الله تعالى حلال کړی وو [1]

**تشريح**: **داهل السنة دلايل**: له دې ځای څخه د اهل السنة لايل بيانوي دوی دوه دلايل پيش کوي يو دليل نقلي او بل دليل عقلي.

**دليل نقلي**: صفوان بن امية (رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ) فرمائي چې مونږ درسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره ناست وو چې عمروبن قرة راغئ نوموړي به ساز اوسرود غږولو يعنې ډولکی به ئې وهلو رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته ئې وويل چې په مابدبختي مقررشويده ماته رزق نه حاصليږي مګر د ډولکي وغيره څخه، نوماله اجازه راکړه چې په ساز او سرود سره ځانته رزق پيدا کړم رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) اجازه ورنکړه ورته ئې وويل چې تاته الله جلّ جلاله حلال رزق درکړی ده او تا حرام اختيار کړی په ځای د حلالو.

---

(۱):- ذكر ابن ماجه الحديث عن صفوان بن امية رضى الله عنه قال كنّا عندرسول الله صلّى الله عليه وسلّم اذا جاء عمروبن قرة فقال يارسول الله انّ الله كتب على شقوة فلا ارانى ارزق الّا من ررقى بكفى فأذن لي فى الغناء من غيرفاحش فقال عليه الصّلوة والسّلام لا اذن لک ولاكرامة ولانعمة كذبت ياعدوالله لقد رزقک الله .رواه سنن ابن ماجه برقم ۲۶۱ قال البوحيري فى الزوائد فى اسناده بشر نميرالبصري قال فيه يحى القطان: كان ركنًا من اركان الكذب ويحيي بن العلاء قال احمد يضع الحديث( حاشية الشهاب :۱ / ۳۵۵)

نو کوره رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دلته د رزق تقسیم وکړو حلالو او حراموته او دواړه رزق وبلل.

**تفسیربیضاوي:** (وَبأَنّه لَولَم يَكن رِزقًا لَم يكُن المُتغَذّي بِه طُول عُمره مَرزُوقًا ولَيس كَذلك لِقوله تعالى (وَمَامِنْ دَآبّة فِى الاَرْضِ اِلا عَلَى الله رِزْقُهَا [1]).

**ترجمه:** اوکه حرام رزق نه وي د ډیر عمر غذا حاصلونکی د حرامو به د الله جلّ جلاله مرزوق نه شي او حالانکه داسې نه ده له وجې د دې قول د الله تعالى (ترجمه) نشته په زمکه یو ګرځیدونکی مګر د هغې رزق په الله تعالى باندې دی.

**تشریح: دلیل عقلي:** دا په قضیه شرطیه متصله سره ثابتوي هغه داسې (لولم يكن الحرام رزقاً) مقدم (لم يكن المعتذي به طول عمره مرزوقاً) تالي. التالي باطل فالمقدم مثله.

که حرام رزق نه شي یو سړي چې پول عمر حرام رزق خوړلی وي لکه سود خور وغیره نو دا به مرزوق نه شي او حال دا چې دا هم مرزوق دی اګر که ده حرام خوړلی ځکه په دې ایت کې (وَمَامِنْ دَآبّة فِى الاَرْضِ اِلا عَلَى الله رِزْقُهَا) په ډیر تاکید سره دا خبره ثابته شوه چې هر ساه لرونکی په زمکه د الله جل جلاله مرزوق دی د دابة الارض د رزق کفیل الله تعالى دی.

**تفسیربیضاوي:** (وَأَنْفَق الشّئ وَأَنفَدهُ أَخوانِ وَلِواسْتقْرَيت الأَلفاظ وَجدْت كُل مَايُوافِقه فِى الفَاء والعَين دَالاً عَلى مَعنى الذّهاب وَالخُروج)

**ترجمه:** اولفظ د انفق او انفد دواړه مترادف دي اوکه ته د الفاظو تفتیش وکړې نوته به بیامومي هرهغه لفظ چې له دې سره فاء اوعین کلمه کې موافق وي په معنى د ذهاب او خروج باندې به دال وي.

**تشریح: دویم بحث:** اوس درته د انفاق تحقیق کوي فرمایي: د انفق او انفد په مابین کې اخوت دی یعنې په دوی کې اشتقاق کبیر دی ځکه په تفسیرکشاف کې چې د اخوان کلمه راشي له هغې نه اشتقاق کبیر مراد وي او اشتقاق کبیر دیته وائي چې د دوه لفظونو معنى یوه وي او په اکثرو حروفو کې

(۱):- سورة هود :آية (٦).

هم سره شريک وي نو د دوئ دواړو معنى هم يو ده چې اخراج المال دى او په اکثرو حروفو کې شريک هم دى چې نون او فاء په دواړو صيغو کې د فاء او عين کلمې په مقابل کې راغلي دي.

**قاعده:** دلته يو قاعده ذکر کوي هغه دا چې کوم يو فعل کې نون او فاء ذکر وي په هغه کې به د خرچ کيدلو معنا لازم وي لکه نَفَس دخولې نه ساه بهرکول نفر د يوځاى نه خروج کول په تيخته نفاس خروج الدّم نفخ دخولې پوکي نفل زياتى کار ويستل.

## (له نفقې څخه مراد دي)

**تفسيربيضاوي:** ( وَالظَّاهر مِن هَذا لاِنْفاقِ صَرف المَال فِي سَبِيل الخَيرِ مِن الفَرض وَالنَّفلِ ومَنْ فَسّرهُ بالزّكاةِ ذَكر أَفضل انْواعِه والأَصل فِيه، أُوخَصَّصه بها لاِقتِرانهِ بِما هُو شَقِيقتُها)

**ترجمه:** او ظاهره داده چې د انفاق نه مراد خرچ کولو دى په لاره د خيرکې فرض وي او که نفل وي، اوچاچې د دې تفسير په زکاة کړى دى نوغوره نوعه او اصل دصدقې ئې مرادکړي دي اويا د آيات نفقه ئې خاص کړى تر زکاة پورې له وجې د اقتران دهرهغه شي سره چې د زکاة ملګرى (صلاة) دى.

**تشريح: دريم بحث:** دلته د مِمّا رزَقْنَاهُم ينْفِقُوْنَ معنا مراده ذکر کوي د دې په معنى مراده کې درې احتماله ذکر کوي.

(۱) عبد الله بن عباس (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) او حضرت قتادة (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) فرمائي چې د دې نه زکاة مراد دى ځکه دا مقابل ديقيمونَ الصّلوة دى او هغې نه لمونځ يعنې فرض لمونځ مراد وو نو له دې نه به فرض نفقه مراد وي چې زکاة دى [1]

(۲) امام مجاهد او امام ضحاک رحمهما الله فرمائي: چې له دې نه اعمه معنى مراد ده چې نفلي او

(۱):- تفسير زادالمسير: ۱ / ۲۸.

فرضي دواړو ته ورځي [۱] بيا په دې احتمال کې دوه قوله دي اول دا دی چې عامه معنی مراده ده او دا معنا بيا په خپل تعميم پاتي ده دوهم دادی چې عامه معنی ترينه مراد ده خو دلته په قرينې دمقام سره خاصه معنا ترينه مراد ده چې مقابله ده له صلوة سره [۲].

(۳) اعمه معنی ترينه مراد ده چې حسي او معنوي دواړو ته ورځي . حسي لکه نفلي او فرضي نفقه او معنوي لکه د علومو نفقه لکه تدريس امر بالمعروف او داسې نورو ته شامليږي (۱) (روح المعانی).

نو ترجمه به داشي چې موږ متقيانو څه هم ورکړي هغه که بدني وي يا روحاني په ټولو کې هغوی د الله تعالی په لاره کې خرچه کوي.

**تفسيربيضاوي:** ( وَتَقدِيم المَفعولِ لِلاهتِمامِ وَلِلمُحافَظةِ عَلى رُؤُوس الآى وَادْخَال مِن التَّبعِيضيَّة عليه لِمَنع المُكَلَّف عن الاِسرَاف المَنْهى عنهُ)

**ترجمه:** او تقديم دمفعول به د اهتمام لپاره دي او لپاره دمحافظت درؤوس دآياتونو دی او ادخال د من تبعيضيه (په مِمّا رَزَقْنٰهُم) کې له اسراف نه دخلکو دمنع کولو لپاره دی له کوم نه چې منع راغلې ده.

**تشريح:** مفعول ممّا رزقناهم دی او له ينفقون پورې تعلق لري يعني تقديم د معمول راغلی پر عامل باندې او د دې تقديم لپاره دوه جې بيانوي.

اوله وجه: تقديم د مفعول لپاره داهتمام دی ځکه تقديم دلالت کوي په تخصيص او حصر باندې په انفاق د بعض مال ځکه چې دا مِن تبعيض دی او دا لپاره دمنع ده له اسراف د مال څخه چې ټول مال مه خرچ کوه ځکه بيا به ته خپله سوال کوي خو که چيرته په داسې مرتبه دتوکل کې ئې لکه

---

(۱):- تفسير زادالمسير : ۱ / ۲۸.

(۲):- عبدالله بن مسعود او حضرت حذيفة رضى الله عنهما فرمائي چې له دينه نفقه اوخرچه په خپل عيال مراد ده اوځيني مفسرين بيا وائي چې له دينه هغه نفقه مراد ده چې له زکوة نه غير په انسان واجب وي (زادالمسير : ۱ / ۲۸ اوتفسير خازن وائي چې له دينه نفقه په جهادکې مراد ده اوامام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير احکام القرآن کې فرمائي وَمِمّا رزقنهم ينفقون اى ممّا علمنا هم يعلّمون : هغه علم چې موږ دوئ ته ښودلی دوئ ئې نورو ته وربنه ئې.

حضرت ابوبکر صدیق (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) او عمر (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) بیا ټول مال هم خرچ کولی شي لکه دوئ چې په یوه غزوه کې ټول مال خرچ کړی وو او او رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) یو صحابي ته وویل چې والثلث کثیر ثلث ډیردی نو رسول اله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته معلومه وه چې ابوبکر (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) که ټول نفقه کړي نو څه جزعه نه کوي او نه پښېمانه کیږي [1]

دویمه وجه د تقدیم: مفعول ځکه په عامل مقدم شې چې په دې سره ئې محافظت د سرونو دآیاتونو کړی دی چې د سورت بقرې آیاتونو نه په واو ونون او یاء اونون باندې ختم شوي دي نو که مفعول چې مما رزقنهم دی روسته کړی وای د سرونو دایاتونو محافظت نه راتلو.

**تفسیر بیضاوي**: ( وَيحْتَمل أَن يُرادبِه الانْفاقُ مِن جَميعِ المُعاون[2] أَلّتِي أَتاهُم الله مِن النَّعمِ الظَّاهرةِ وَالبَاطِنة)

**ترجمه**: او د دې خبرې احتمال هم لري چې مراد شي په دې سره انفاق د ټولو معاونو (شتمنیو) هغه چې الله جلّ جلاله دوئ ته ورکړي له نعمتونو نه چې هغه نعمتونه ظاهري او باطني دي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَيُؤَيّده قولُه عليه الصّلوة والسّلام (اِنَّ عِلمًا لَايُقالُ بِه كَكَنْزٍ لَايُنْفِق مِنه[3] وَاِلَيهِ ذَهَب مَن قَال وَمِمّا خَصَّصِنا هُم بِه مِن أَنوارِالمَعرِفة يُفِيضُون).

**ترجمه**: او د دې خبرې تائید د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دا قول کوي هغه علم چې د هغې نه چاته بیان نه کیږي دا پشان د هغې خزانې ده چې د هغې نه خرچ نه کیږي او دې رائې ته ذهاب کړی هغه چاچې وائې (ترجمه دآیت ئې داسې کړی ده) بعضې د هغه شیانونه چې مونږ دوئ ورباندې خاص کړی دي د انوارو د معرفت نه دالله جلّ جلاله په لاره کې خرچه (فیضان) کوي.

**تشریح**: نفقه خو په حسې شیانو کې مستعملیږي خو په طریقې دمجاز ترینه حسي او معنوي دواړه مراد دی لکه درسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په دې قول کې تشبهًا د نفقې اطلاق دعلم په بیان

---

(۱):- رواه البخاری فی کتاب المغازی : ٥ / ١٧٨ برقم ٤٤٠٩ من حدیث عامربن سعد عن ابیه.

(۲):- المعاون بزون مساجد جمع معونة وهی میستعان به وینتفع من العون وهوالمساعدة والمظاهرة (حاشیة الشهاب : ١ / ٢٣٠)

(۳):- اخرجه ابن عساکر من حدیث ابن عمر کما ذکرالمصنف.

شوی دی همدا راز رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) فرمائي : مثل العلم الذی یتعلم به ثم لا یحدث به کمثل الکنز لا ینفق منه [1] او صوفیان حضرات يې بیا داسې ترجمه کوي (ومما خصصناهم من انوار المعرفة یفیضون) هغه چې موږ خاص کړي د انوار د معرفت څخه هغه فیضان کوي:

(وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْک وَمَااُنْزِلَ مِنْ قَبْلِک وَبِالآخِرَة هُمْ يُوْقِنُوْنَ).

## (مراد یؤمنون)

**تفسیربیضاوي**:( وَالّذین یُؤمِنُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَیْک وَمَا اُنزل مِنْ قَبْلِک) هُم یؤمنُون أَهل الکِتابِ کَعبدِالله بن سلام رضی الله عنه وَأَضْرابِه مَعطُوفُون عَلی (الَّذینَ یُؤمنونَ بِالغَیبِ) دَاخِلونَ مَعهمْ فِی جُملَة المُتَّقِینَ دُخول أَخَصِّین تحتَ أَعَمِّ)

**ترجمه**: او متقیان هغه خلک دي چې ایمان لري په هغه کتاب چې په تا نازل شوی دی او په هغه کتابونو چې تا نه مخکې نازل شوي دي (تورات انجیل زبور) چې هغه مؤمنان د اهل کتابو دي لکه عبدالله بن سلام (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) او د هغه امثال په الذین یؤمنون بالغیب باندې عطف دي داخل دي سره د هغوئ نه په جمله د متقینو کې په شان د دخول د اخصو لاندې د اعم نه.

**تشریح**: مصنف رحمه الله دلته درې بحثونه کوي اول د الذین جملې په عطف او مراد باندې بحث کوي دویم د انزال تحقیق او کیفیت دریم ایمان بما انزل الیک وما انزل من قبلک شرعي حیثیت.

**اول بحث** : د والذین یؤمنون په عطف کې دوه احتماله دي (۱) یا عطف دی په المتقین باندې (۲) یا عطف دی په مخکې الذین یؤمنون بالغیب باندې که په الذین یؤمنون بالغیب باندې ئې ورعطف کي بیا پکې درې احتماله دي (۱) د مخکې الذین او د دې په منځ کې مساوات دی (۲) یا تباین دی (۳) عموم خصوص مطلق دی نو ټول څلور صورته شوه.

---

(۱):- اخرجه الطبرانی فی الاوسط کما فی المجمع برقم ۷٤۷ من حدیث ابی هریرة وقال الهیثمی ابن لهیعة وهوضعیف. وفی الباب من کتم علمًا تلجم بلجام من نار یوم القیامة اخرجه ابوداود برقم ۳٦٥۸ والترمذی برقم ۲٦٤۹ وابن ماجه برقم ۲٦۱ واحمد : ۲ / ۲٦۳ وابن حبان : ۹٥ والطیالیسی من حدیث ابی هریرة (حاشیة الشهاب : ۳٥۸.)

(۱) که په متقين ورعطف شي نو د متقين نه مراد متقين عن الشرک دي او د الذين معطوف نه به هغه خلک مرادوي چې د يو دين نه بل دين ته نقل شوي وي.

(۲) که په مخکې الذين ورعطف شي يا به پکې مساوات وي نوبه دې صورت اعتراض واردېږي.

**سوال:** د معطوف او معطوف عليه په منځ کې خو تغيروي او دلته خو مساوات دی ؟

**جواب:** قاضي رحمه الله ورته جواب ورکوي چې تغير په اعتبار د صِلاتو سره دی هلته صله جدا ده او دلته جدا ده.

(۳) که په مخکې الذين ورعطف شي يابه پکې تباين وي نوچې تباين شي د مخکې الذين نه به هغه خلک مرادوي چې نوي مسلمان شوي وي اوشرک ئې پرېښی وي اوله دينه به هغه خلک مراد وي چې ديو دين نه بل دين ته نقل شوي وي.

(۴) که په مخکې الذين ورعطف شي يا به پکې عموم خصوص مطلق وي نو بيا مخکې الذين نه عام مسلمانان مراد دي د شرک نه ئي ايمان راوړئ وي او که د يو دين نه بل دين ته نقل شوي وي او له دې الذين څخه خاص خلک مراد دی هغه چې ديو دين نه بل دين نقل شوي وي.

**تفسيربيضاوي:** (إذ المُراد بِأولئِک الّذينَ أمنُوا عَن الشِّرک وَالانْکارِ وبِهؤلآءِ مُقَابلُوهم فَكانَت الآيتَان تَفصيلًا (لِلمُتَّقين) وَهوَ قَول اِبن عَبَّاس رضى الله عنه أوعَلَى المُتقينَ فَكأنّه قال (هُدًى لّلمتّقين ) والّذينَ أمنوا مِن أهل المِللِ ويَحتَمل أَن يُرادبِهم الأوّلون بِاعْيانِهم وَوُسِّط العَاطِفُ فى قَولِه (اِلى المَلِک القَومُ وَابن الهَمَام وَلَيث الْكَتِيبَة فى المُزدَحَم).

**ترجمه:** ځکه مراد په الذين امنو سره هغه څوک دي چې ايمان ئې راوړئ وي له شرک او انکار څخه او په دوهم الذين سره مقابلين ددوئ مراد دي (چې ديو دين نه بل دين ته نقل شوي وي) نوشوه دواړه آياتونه تفصيل لپاره متقيانو او دا قول د ابن عباس (رَضِىَ اللهُ عَنهُ)دی او يا دا عطف دی په متقين باندې ګويا که الله جلّ جلاله داسې ويلي هدًى للمتقين دا قرآن هدايت دی متقيانو ته عن الشرک او هغه کسانو ته چې ايمان ئې راوړی وي له اهل مللونه او دا احتمال هم

لري چې په دې ايت کې هم هغه خلک مراد شي کوم چې په الذين يومنون بالغيب سره مراد و (اولني دواړه په خپله شي) اوپه منځ کې عاطف راوړل شو لکه په دې قول دشاعرکې مونږ بادشاه ته لاړو چې سردار دخلکو اوصاحب اوهمتونو اوپه وخت دقتل اوقتال کې زمری ددلښکرونو

**تشريح**: په دې سره دفع داعتراض ده کوم چې مخکې مونږ په خلاصه د درس کې وويلې چې دلته خومساوات دی او حرف عاطف خولپاره د تغير راوړلی شي يعنې د معطوف اومعطوف عليه په مابين کې تغيروي نو مونږ جواب ورته کړی وه چې دلته تغيرپه اعتبار د صِلاتو سره ده صلې ئې مغائرې دي يا داسې ووايه چې قضيه په درې قسمه ده

(۱) يوه هغه ده چې موضوع اومحمول ئې دواړه د محسوساتو څخه وي لکه النّار حارٌ دا د ما نحن فيه څخه نه دی (په دې ايمان راوړل معتبرنه دی)

(۲) هغه قضيه دی چې موضوع اومحمول ئې دواړه له معقولاتو څخه وي لکه الله موجودٌ الله واجبٌ.

(۳) هغه قضيه چې په موضوع اومحمول کې ئې يوله محسوساتو څخه وي لکه محمّد رسول الله صلى الله ليه وسلم نومحمد د محسوساتو څخه دی اورسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دمعقولاتو څخه دی نو دلته تغير په صِلاتوکې دي په مخکنې الذين کې دوهم قسم قضيه مراد ده چې موضوع او محمول يې دواړه له معقولاتو څخه وي چې هغه ايمان او غيب دی او دا له معقولاتو څخه دی ځکه د ايمان غيب مدرک بالحسّ نه وی

اوپه دې الذين (يو الذين يؤمنون بما أنزل) کې دريم قسم قضيه مراد دي چې انزل (قرآن) له محسوساتو څخه دی اويؤمنون (ايمان) دمعقولاتو څخه دی.

نو خلاصه د جواب دا شوه چې واو په مابين دمعطوف او معطوف عليه کې ځکه راوړلی شو چې دلته يې په صلو کې تغير موجود دي د دې په تائيد کې يو شعر پيش کوي چې په دغه شعر کې الملک القرام ،ابن الهمام او ليث دي دا ټول په اعتبار د ذات سره متحد دي ځکه ټول د يو ذات اوصاف دي خو د مفهوم په اعتبار سره متغاير دي نو ځکه په يو بل باندې ورعطف شول.

**تفسيربيضاوي:** ( وَقولهُ يَالَهفَ ذَيَّابَة للحَارِثِ ... الصَّابِح فَالغَانِم فَالائِب [1] )

**ترجمه:** اى افسوسه دزيابه حارث ته چې سحركې راغى بيرته غانم لاړو او بيرته سالم لاړو.

**تشريح:** دا د سلمه شعر دى كوم چې د ابن زيابه په نوم باندې مشهور و او د تيم قبيلې سره يې تعلق درلود او د جاهليت له شاعرانو څخه و، زيابة د شاعر د مور نوم دى او حارث نه مراد حارث ابن الهمام ابن مرة الشيباني مراد دى څوكسانو سحر وختي دزيابه په كلي حمله وكړه اوټول مال ئې لوټ كړ اوله دې څخه ئې هم ديرش اوښې بوتلې نوپه عربو كې به چې څه حادثه پيښه شوه نو دمور په نوم به ئې ورته أواز كولو ، نو دلته هم د شاعر درې اوصاف ذكر دي اول صابح : معنا سحار راتلونكى دويم غانم : معنا مال لوټونكى دريم آئب: معنا روغ رمټ واپس كيدونكى دا درې واړه صفات په اعتبار د ذات سره يو دي ځكه د يو ذات صفات دي خو په اعتبار د مفهوم سره متغاير دي ځكه يو په بل د فاء په ذريعه عطف كړى شو.

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معني |
|---|---|---|
| ١ | ليث | زمرى |
| ٢ | مذدحم | ځاى دجنګ |
| ٣ | لائب | راجع |
| ۴ | قرم | سيد |
| ۵ | صابح | سحار وختي راتلونكى |
| ۶ | لهف | ارمان |

(١):- دا شعر د ابن زيابه التيمي ده اصل كې داجواب ده له شعر دحارث بن همام بن مرة بن زهل بن شيبان هغه داسې وو
يا ابن زيابة ان تلقني ... لاتلقنى فى النعم العازب.. وتلقنى يشتد بى اجرد .... مشتقة البركة كالراكب ...
نوده ورته داسې جواب وكړ... يا لهف زيابة للحارث ... الصابح فالغانم فالآئب ... والله لولا لاقيته حاليًا...
وانا ابن زيابة ان تدعنى ... آتك واللعن على الكاذب.

**تفسیربیضاوي**: ( عَلى مَعنى أَنَهم الجَامِعون بَين الايمَان بِما يُدرِكه العَقلُ جُملة وَالاِتيَان بِما يَصدقُه مِن العِباداتِ البَدنِيَّة والْمَاليَّة وبَين الايْمان بِما لَاطرِيقَ الَيه غَيرالسَّمع )

**ترجمه**: په دې معنی چې دامؤمنان جمع کونکي دي په منځ دايمان کې په هرهغه څه چې ادراک ئې عقل کولی شي اجمالًا (لکه وحدانيت) او راتګ کوي په هرهغه عباداتو بدنيه اوماليه وو (صلاة اوزکوة) چې تصديق د دغه ايمان کوي اوجمع کونکي دي په منځ دهرهغو شيانو کې چې هغې لره سوا د سمع (نقل) نه بله طريقه نشته.

**تشريح**: چې دوئ جمع کونکي دي په مابين دقضايا ؤو کې (آخرين اقسام) او د دې قسم قضيې موضوع او محمول دواړه له معقولاتو څخه نه وي بلکې يو نقلي وي او بل عقلي نو مومنانو جمع کونکي دي په مابين د هغه ايمان کې چې ادراک يې په عقل سره کيږي لکه وحدانيت او په مابين دهغه کې چې تصديق يې کوي عبادات ماليي او بدني د همدغه دتغير له وجې يې تر منځ حرف عطف راوړل شو چې د يو الذين يومنون صله غيب يعنې معقول شوه او د بل الذين يومنون صله انزل اليک ده او دا منقول او محسوس ده

**سوال**: تامخکې وويل چې صِلاتو کې تغيردی نوپه موصولاتو کې خو تغيررانغی اوموصول ئې ولې مکرر ذکرکړ؟

**جواب**: **تفسيربيضاوي**: ( وكَرَّر الموصُول تَنبِيهًا على تَغايُرالقَبِيلين وتَبَاين السَبِيلينِ أَوطَائِفة مِنهم وهُم مُؤمنُو أَهل الكِتابِ ذَكَرَهُم مُخَصَّصِينَ عَن الجُملةِ كَذِكر جِبريل وَميكَائِل عَليهما السلامَ بَعد مَلائِكةِ تَعظيمًا لِشأْنِهم وتَرغِيبًا لِأَمثَالهمْ )

**ترجمه**: اومکرر ئې کړو موصول لپاره دتنبه په تغاير اوتباين ددوه لارو (عقل اونقل) يادا الذين هم د اول الذين نه يو طائفة ده چې دا مؤمنان داهل کتابو دي دائې ذکر کړه له نورو مومنانو څخه لکه چې خاص کړي يې دی جبريل اوميکائل عليهما السلام روسته له ملائکو نه لپاره دتعظيم دشان د دوئ او لپاره دترغيب په امثالو د دوئ.

**تشريح**: دا جواب د هغه سوال دی کوم چې په تکرار د موصول وارد شوی وو نو ده جواب ورکړو چې موصول ځکه مکرر شو چې دلته دې خبرې ته اشاره ده چې د دواړو موصولين صلات جدا جدا دي د اول الذين صله يؤمنون ده او لاره دعقل ده او دويم الذين صله انزل ده او دا لاره د سماع او نقل ده او طائفة سره هغه دريم قسم عطف هم بيانوي.

او دا خبره چې د مومنانو د اهل کتابو ذکر يې په خاص ډول ولې وکړ ؟

مصنف رحمه الله وايي چې دا د دوه وجو له امله اوله وجه دا چې د هغو عظمت شان ښکاره کول مقصود دي مومنان د اهل کتابو ډېر لوئ خلق دي دويم وجه دا ده چې د اهل کتابو د مومنانو هم جنسو يعني هغو خلکو ته چې لا په خپل ايمان ولاړ دي او په نبي عليه السلام يې ايمان نه دی راوړی، دې طرفته ترغيب ورکوي چې که تاسو ايمان راوړ نو داسې غزت به درکولی شي چې په خاص طور سره به مو تذکره کولی شي.

## (دانزال او نزول توپير)

**تفسيربيضاوي**: ( وَالاِنْزالُ نَقلُ الشَّئ من الأَعْلى الى الأَسفَل وَهُو اِنَّما يَلْحَق المَعَانى بِتَوسّط لُحوقِه الذّواتِ الحَامِلة لهَا وَلَعَلَّ نُزول الكُتُب الآلهِيَّة عَلى الرّسُل بَانْ يَلتَقَفَه المَلَك منَ الله تعالى تَلَقّفاً رُوحانيًا اويحفظَهُ مِن اللّوح المَحفُوظ فَينْزِل بِه فَيلْقِيه الى الرّسل)

**ترجمه**: انزال وائي نقل دشي اعلى نه اسفل ته او د انزال پيوسته کوي معانيو لره په واسطه د پيوستوالي دهغو ذواتو کوم چې حامل وي ددغو معانيوو. او شايد چې نزول دکتب الهية وو په دې طريقه وو چې ملائکو به له الله جلّ جلاله نه اخيستنه (زده کړی وي) کړی وي اخستنه په روحاني طريقې سره يا به ملائکو د لوح محفوظ نه ياد کړی وي او هغه به ئې نازل کړل او رسولانو ته به ئې ورکړل.

**تشريح**: **دويم بحث**: دلته د انزال تحقيق او د هغې کيفيت ذکر کوي . انزال وايي له پورته طرفنه ښکته طرف ته يو شی منتقل کول په انزال او نزول فرق دا دی چې انزال انتقال تدريجا وي او په نزول کې انتقال دفعتآ وي اوس دلته معترض اعتراض کوي.

**سوال**: ما انزل الیک نه قرآن مراد دی او قرآنونه دوه دي یو کلام نفسي دی بل کلام لفظي دی او په کلام نفسي کې د الله جلّ جلاله له خوا انزال نه دی متصور ځکه انزال حرکت ته وائي د علوي نه سفل ته ځکه کلام نفسي د الله جلّ جلاله صفت دی نه پکې حرکت بالذات راځي او نه پکې حرکت بالتبع (په تبع د الله جلّ جلاله چې موصوف دی) حرکت بالذات ځکه نشته چې داصفت دی او وصف قایم بالذات نه وي او بالتبع ځکه نشته چې د دې کلام نفسي موصوف ذات باري تعالی دی او ذات باري تعالی کې حرکت غیر متصور دی او په کلام لفظي کې هم حرکت نشي راتلی ځکه کلام لفظي عرض دی او په عرض کې هم حرکت او انتقال نه دي متصور ؟

**جواب**: دلته کلام نه کلام لفظي مراد دی او که ته وایي چې دا خو عرض دی او په کې حرکت او انتقال نه وي نو موږ وایو چې انتقال په دوه قسمه دی اول انتقال بالذات دویم انتقال بالتبع که انتقال بالذات پکې نسته انتقال بالتبع خو پکې شته چې جبرائل (عَلَيْهِ السَّلَامُ) دی ځکه هغه ئې حامل دی او په جبرائل علیه السلام کې حرکت شته نو د حامل په انتقال سره منتقل شوی دی؟

## کیفیت دنزول:

دقرآن د نزول کیفیت دوه قسمه دی:

(۱) یاخو داسې دی چې الله جلّ جلاله جبرائل علیه السّلام راوغوښت یو خاص مقام ته بیائې د قرآن د معانیو الهام ورته بیان وکړ بیا ئې ورته قدرت ورکړ په تعبیرد الفاظو له دې معانیو څخه نو دته دا الهام او قدرت ورکړی شو نو جبرائل علیه السّلام هغه په مناسبو الفاظو ولیکلو او په اسمان د دنیاکې ئې محفوظ کړو بیائې اسمان د دنیانه په رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې په درویشتو (۲۳) کالو کې لږ لږ نازلولو.

(۲) کیفیت داده چې جبرائل (عَلَيْهِ السَّلَامُ) ورغی لوح محفوظ ته هلته قرآن لیکلی شوي وه له هغې نه ئې یاد کړو بیا یې راوړ اسمان د دنیا ته هلته ئې ولیکلو بیائې رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته لږ لږ راوړو.

**تفسیربیضاوي**: ( وَالمُراد (بِمَا أُنْزِلَ اِلَيْک) القُرآن بِأَسْرِهِ وَالشَّريعَة عَن آخرِها وانّما عَبّرعَنه بِلَفظ المَاضِي وَان كَان بعضُه مُترقبًا تَغْليبًا لِلمَوجود عَلى مَايُوجد أَوتنزيلًا للْمُنْتظر مَنزلة الوَاقع)

**ترجمه**: اومراد په بما انزل الیک سره ټول قرآن اوشریعت د اوّل نه ترآخرپورې دی اوله انزال نه ئې تعبیرپه لفظ دماضي سره کړی اګرکه د بعضو آیاتونو ئې انتظار کیدلی شي تغلیبًا دوجې دموجود نه په غیرموجود باندې یا نازلول دا انتظار کړی شوي کلام دی په ځای د واقع شوی کلام.

**تشریح**: له انزل څخه ټول قران او شریعت مراد دی اصلاً دا دفع د یو اعتراض ده

**سوال**: کمال دادی چې په ټول قرآن دې ایمان وي چې په بعضې وي اوپه بعضې نه وي داکمال ندی ځکه دلته دا آیت په محل دمدح کې ذکرشوې اومدح په دې کې ده چې په ټول قرآن دې ایمان وي او دلته خو په ماانزل کې صیغه دماضي مستعمله شوه او د دې آیت د نزول په وخت کې نیم قرآن نازل شوی وو اونیم نه وو نازل شوی نو ایمان په بعضې قرآن راغلو اوپه بعضې رانغلو او داسې ایمان ممدوح نه دی ؟

(۱)**جواب**: قرآن دوه حصې وه (۱) متحقق النزول (۲) مترقب النزول متحقق النزول ته صیغه دماضي استعمالیده اومترقب النزول ته صیغه داستقبال استعمالیده دلته دواړو ته صیغه د ماضي استعمال شوه نو دا بناء دی په استعاره بالتبعیه هغه داسې چې دمترقب النزول اومتحقق النزول مشبه اوټول متحقق النزول مشبه به نو د مشبه به صیغه ئې په مشبه کې مستعمله کړه.

(۲)**جواب**: د دې آیت دنزول وخت کې بعضې قرآن متحقق النزول اوبعضې مترقب النزول وو کوم چې متحقق النزول دی د دې لپاره صیغه دماضې استعمالیږي نو دا اسم دجزء چې صیغه دماضي ده په کل کې مستعمله کړه نو دا مجاز مرسل دی.

نو ټول قرآن یاپه طریقې داستعارې یاپه طریقې دمجاز مرسل مراد دی.

**تفسيربيضاوي**: (وَنظِيرهُ قَوله تعالى (اِنّا سَمِعْنَا كِتَابًا اُنْزِلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَى [1] فانّ
24 الجنّ لمْ يَسمَعُوا جَميعه وَلمْ يَكنِ الكتَاب كُله مُنَزَّلًا حينئذٍ)

**ترجمه**: د دې مثال دا قول د الله جلّ جلاله دی (ترجمه) يقينا مونږ واوريده يو كتاب چې نازل شوی روسته د موسى عليه السّلام نه نو جناتو د ټول قرآن نه وه اوريدلی او نه ټول قرآن په دغه وخت كې نازل شوی وو.

**تشريح**: منصف رحمه الله دلته د بما انزل اليک په مثال كې يو بل ايت پيش كوي چې په هغه كې هم صيغه د ماضي استعمال شوې ده او مراد ورنه ټول قران دی او په دې ايت كې د هغې واقعې بيان دي كومه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له جناتو سره پيښه شوې وه واقعه دا وه چې مله رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د طائف نه نا اميده راغلو دطائف خلكو ورته فناه ورنكړه په لاره كې دتنوا په مقام تيريدو هلته ئې د سحر لمونځ كولو نو پيريانو د لمانځه تلاوت واوريده نو دوئ وويل انا سَمِعنَا كتَابًا انزل من بعد موسى نو دلته هم ټول قرآن نه دی نازل شوی بعضې قرآن څخه يې تعبير وكړو په ټول قران تغليبًا يا تنزيلًا يعنې په طريقې د استعارې تبعيې او يا مجاز مرسل.

**تفسيربيضاوي**: (وَبِمَا اُنزل من قَبْلِك) التَّوراةُ وَالاِنجِيل وَسائِرالكُتب السَّابِقةِ وَالايمَانُ بِها جُملة فَرض عَين وبِالأَوّل دُون الثّانى تَفصِيلًا مِن حَيث اِنَّا مُتَعبِدُون بِتفَاصيلهِ فَرض وَلكِن عَلى الكِفَايةِ لأَن وُجوبهُ عَلى كلّ أَحدٍ يُوجب الحَرج وَفسَادَ المَعاش)

**ترجمه**: او په ما انزل من قبلک سره تورات انجيل او ټول سابقه اسماني كتابونه مراد دي او په دې دواړه قسمونو اجمالي ايمان راوړل فرض عين دی او په اول چې قرآن دی تفصيلي ايمان په دې حيثيت چې موږ د دې كتاب د احكامو تفصيليه مكلف يو دا فرض دی لكن په فرض كفائې سره ځكه كه په هريو مسلمان باندې فرض عين شي بيا حرج (مشقت) او فساد د معاش لازموي.

**تشريح**: **دريم بحث**: لومړی په دې خبره ځان پوهه كړه چې په كتب الهية باندې ايمان راوړل په دوه قسمه دي يو اجمالي او بل تفصيلي.

---

(۱) :- سورة الاحقاف: آية (۳).

ایمان اجمالي معنا دا چې د یو حکم د تشریح او تفصیل نه بغیر ټول کتاب او مجموعه کتاب حق اومنلی شي او د حق عقیده پرې وساتلی شي او تفصیلي ایمان دېته وایي چې هر هر حکم سره له تفصیل او تشریح منزل من الله او د حق کیدو عقیده وساتلی شي اوس به راشو دریم بحث ته هغه دا چې د قرآن په شمول ټولو اسماني کتابونو باندې اجمالي ایمان فرض عین دی او ایمان تفصیلي په تیرو کتابونو نه فرض عین دی اونه فرض کفائې او په قرآن باندې تفصیلي ایمان فرض کفائې دی او ایمان تفصیلي ځکه فرض عین نه دی چې تفصیلي ایمان تفصیلي علم غواړي او په تفصیلي علم کې مشقت دی ځکه امور د نیوي ضروري به معطل شي خو دومره ده چې په هر قوم او جماعت کې داسې دداسې کس وجود ضروري دي چې هغه په تفصیلي قرآن ایمان لري ورنه ټوله ګناهګار دي[1]. یعنې د اجمالي ایمان په حکم کې قرآن او نورو کتابونو سره برابر دي په تفصیلي ایمان کې یې بیا فرق دی.

**تفسیربیضاوي**: (وَبِالآخرة هُمْ يُوقنُون) أَى يُوقنُون اِيقانًا زَال مَعهُ مَاكانُوا علَيه مِن أَنّ الجَنَّة لَايَدخلُها الّا مَنْ كانَ هُودًا أَونَصارى وأَنّ النّارَ لَنْ تَمَسَّهم الّا ايّاما مَعْدُودة)

**ترجمه**: دوئ یقین کونکي وو په هسې یقین چې زائله شي د دوئ هغه عقائد چې په کومو عقائدو باندې مخکې دوئ وو داچې جنت ته به نه داخلیږي مګر یهود اونصاری او اور به نه رسیږي دوئ لره مګر څو ورځې شمارکړی شوي.

**تشریح**: مصنف دلته پنځه بحثونه ذکرکوي (۱) د صحت الحصر (۲) دفائدة الحصر. (۳)بحث دیقین په وضاحت کې دی څلورم د لفظ د اخرة په تشریح کې دی پنځم بحث د لفظ دیوقنون په تشریح کې دی.

---

(۱) او دې طرف ته جې به قرآن تفصیلي علم فرض کفايي دې الله په دې ایت کې اشاره کړې ده .وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ (۱۲۲) قال في تفسير المظهري (٤/ ۳۲۲) وَما كانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً نفى بمعنى النهى واللام لتأكيد النفي والمعنى لا ينفروا كافة عن أوطانهم لطلب العلم فانه مخل بالمعاش ومفضى الى المفسدة فَلَوْلا فهلا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ اى من كل جماعة كثيرة كقبيلة واهل بلدة او قرية طائِفَةٌ جماعة قليلة لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ اى ليتكلفوا الطلب الفقاهة فى الدين ويتجشموا المشاق فى تحصيلها -

مصنف دلته لومړی دریم بحث ذکر کوي ځکه اول بحث باندې پوهېدل موقوف دې په دریم بحث باندې

**دریم بحث**: دا بحث دیقین په تعریف کې کوي یقین مصدر دی له باب ضرب یضرب څخه او د یقین یو تعریف ده کړی چې اتقان العلم بنفی الشک والشبهة عنه نظرًا واستدلالًا ، مضبوطول دعلم دي په نفی دشک او شبه له دینه نظرًا واستدلالًا په نظر صحیح او استدلال صحیح سره نوله دې وجې نه په دې باندې د الله تعالی علم نه موصوف کیږي ځکه علم د الله تعالی نظري او بدهي نه دی اونه وربانديې علوم ضروري موصوف کیږي ځکه په علوم ضروري کې نظر او استدلال نه وي خلافاً للحکماء ځکه حکماء بدیهي ته اجل یقینیات وایي .

او بعض حضرات یې داسې تعریف کوي (هو العلم الذي لایحتمل النقیض) یقین هغه علم دی چې په هغې کې مخالف طرفته احتمال نه وي

**سوال**: په منطقو کې خوئې علم یقین تقسیم کړي دی بدهي او نظري ته لکه په شرح عقائد کې چې تاسو وائې په متواتر چې کوم علم مرتب وي هغه علم یقیني ضروري وي او په خبرالرسول چې کوم علم مرتب وي هغه یقین نظري دی ګوره دلته توصیف دیقین په ضروري او نظري شوي دی ؟

**جواب**: هغه چې یقین موصوف کیږي په بدهي سره هغه توصیف په بل تعریف بناء دی په دې تعریف نه دی هغه داسې یقین وائې اعتقاد جازمه ثابته مطابق له واقعې سره په اعتقاد جازمه سره ظن خارج شو په ثابت سره تقلید خارج شو په مطابق له واقعې سره جهل مرکب خارج شو .

**اول بحث**: دا بحث په دصحت الحصر کې دی معترض اعتراض کوي.

**سوال**: دلته بالآخرة هم یوقنون دا بالآخرت جار او مجرو تریوقنون پورې متعلق دی او هم ئې مبتداء ده معنی به داوي دا مومنان داهل کتابو یقین بالآخرت لري نو دا هم فاعل معنوي دی د یوقنون لپاره او قانون دادی چې فاعل معنوي مقدم شي په فعل باندې په هغه ترکیب کې قصروي نو دلته هم قصردی چې یقین بالآخرت مقصور شوی ترمؤمنانو د اهل کتابو پورې متجاوز نشو

غیرمؤمنانو داهل کتابو ته حالانکه یقین بالآخرت خو دغیر مومنانو هم وو ځکه په تورات اوانجیل کې دآخرت ذکروو نو یقین تر مومنانو داهل کتابو پورې خاص کول صحیح نه شو؟

**جواب**: تا اوس په دریم بحث کې وویل چې یقین مضبوط علم ته وائي چې په نفی دشک سره راغلی وي خو په نظر اواستدلال سره دغه یقین مراد دی او دغه ترمؤمنانو داهل کتابو پورې مقصور دی او کافران داهل کتابو کې دغه سې یقین نشته بلکه هغوی به وهماً او تخمیناً ویل چې مونږ به اورته نه ځو مګر څو ورځې.

**تفسیربیضاوي**: ( وَاخْتلافُهم فى نَعِيم الجنَّة اَهُوَ مِن جِنس نَعيِم الدُّنيا أَوغيرِه وَفى دَوامِه وانِقطاعِه)

**ترجمه**: اوبل داچې د دوئ په نعمتونو دجنت کې اختلاف دی چې داجسماني دي که روحاني دي نوکه جسماني وي دابه دجنس دنعمتونو د دنیا څخه وي اوکه نه به وي او په دې کې هم اختلاف دی چې دا به هم دائم وي اوکه منقطع به وي.

**تفسیربیضاوي**: (وَتقْدِيم الصِّلةِ وَبِناء يُوقنُون على هُم تَعريضٌ لمَن عَداهُم مِن أَهل الكتَاب وَبَان اِعتِقادهُم فى أَمرالآخِرةِ غَيرمُطابِق ولَاصَادَر عَن اِيقانٍ)

**ترجمه**: په تقدیم دصلې (بالاخرة)کې اوبناء د یوقنون په «هُم» باندې په دې کې تعریض دی په هغه چاچې څوک سواه د دې مؤمنانو نه چې مؤمنان د نورو اهل کتابو دي، اوپه دې هم تعریض دی چې اعتقاد د یهودو اونصاری وو په امر د آخرت کې دنفس الامر سره غیرمطابق دي اونه دی صادر دیقین څخه.

**تشریح**: **دویم بحث**: دلته دریم بحث ذکرکوي چې فائدة الحصردی. مخکې له بحث نه دا خبره زده کړه چې تعریض د اهل معانیو په اصطلاح کې د هغې خبرې نوم دی چې په کلام د یوشي په ذکر کولو سره ته غیر مذکور مراد کړې لکه خالد او زکریا دواړه تهجد کوي یو څوک او وایي خالد هو المخلص في عمله یعنې اخلاص خو د خالد په کار او لمونځ کې دی دلته تعریض دې ته دی چې د زکریا په کار کې ریاده،

دلته دوه تقديمه او دا دوه حصره دي او همدا دوه فائدې دي.

(۱) يو دا چې بالآخرة په يوقنون مقدم شو تقديم دمعمول په عامل راغلی دی.

(۲) فاعل معنوي ئې مقدم کړی (هم) په يوقنون باندې.

اول حصر: دموصوف دی ترصفته پورې او دوهم حصر دصفت دی ترموصوفه پورې اول مؤمنانو د اهل کتاب په اعتبار د ايقان مقصور ترآخرت پورې دي د دې رجعه قصر دصفت ته کيږي خو په اصل کې قصر د موصوف دی.

**سوال**: يقين خوئې مقصورنه دې ترآخرت پورې بلکه په الله (جَلَّجَلَالُهُ) او رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) بعث وغيره ټولو باندې ئې يقين دی ؟

**جواب**: دلته فائدةالحصر تعريض دی کفارو د اهل کتابو ته، هغه داسې دمؤمنانو داهل کتابو يقين مقصوردی ترآخرت واقعي پورې متجاوز نه دی احوالو باطله وو د آخرت ته په خلاف کفارو د اهل کتابو د هغوئ يقين په آخرت شته خو په احوالو واقعيه وو نشته.

دوهم حصر: حصر دصفت دی ترموصوف پورې او دا په تقديم د فاعل معنوي کې دی چې هُم دی مقدم شوي په يوقنون باندې دايقين مقصوردی ترمؤمنانو داهل کتابو پورې متجاوز نه دی کفارو داهل کتابو ته نو د هم يوقنون معنا به داسې شي: يقين خو صرف مومنان د اهل کتابو لري دې کې هم تعريض دی کفارو داهل کتابو ته په دې خبره چې د چې د نورو اهل کتابو عقيده له يقين څخه نه وه صادره شوې.

**تفسيربيضاوي**: (وَالْيَقِين اِتقانُ العِلم بِنفي الشَّک وَالشّبهَة عَنه نظرًا واستدلالًا وَلِذکَلّ لَايُوصفُ بِه عِلم البَارِی ولَاعُلوم الضَّرورِيَّة)

**ترجمه**: اويقين وائې مظبوطوالي د علم په نفی دشک اوشبه په نظر او استدلال سره له دې وجې علم د باري تعالی نه موصوف کيږي په يقين او نه علوم ضروريه پرې موصوف کيږي.

**تشريح**: دا د يقين تعريف دی کوم چې مخکې موږ ذکر کړ.

استدلال: وائي چې ترتیب دامورو معلومه وو وکړی د دې لپاره چې مجهول درته حاصل شي لکه العالم حادث دعوه لانّ العالم متغیر وکلّ متغیر حادث فالعالم حادث.

## (آخِر او آخَر)

**تفسیربیضاوي:** ( وَالآخِرَة تَأنِيثُ الآخِر صِفَّة الدّار بِدليلِ قولهُ تعَالى (تِلْك الدّار الآخِرةُ [1] فَغَلبتْ كَالدُّنيا وَعَن نَافع أنّه خَفَّفهَا بِحذْف الهَمْزة اِلقَاءِ حَركتِها عَلى اللّام وَقَرى يُوقنُون بِقلبِ الوَاو بِضمِّ مَاقَبلِها اِجرَاء لَهَا مَجْرى المَضمُومَة فى وَجُوهِ وَوقّتَتْ).

**ترجمه:** اخرة د اخر تأنیث دی او دا صفت د دار دی(ای دار الاخرة) په دلیل د دې قول دالله تعالى (ترجمه) دا جنتونه دار آخرة دی تغلیبًا(۲) جنتونه په درا مسمی شوه لکه تغلیبًا دا اسم د دنیا ګرځیدلی دي حضرت نافع [3] نه نقل دي چې تخفیف دهمزې ئې کړی اوحرکت ئې په لام باندې ایښی دی (بِلَخِرَة) او یوقنون په بدلولو د واو په همزې سره هم لوستلې شوی دی (يُؤقِنُون) ځکه چې د واو ماقبل مضموم دی لهذا واو د واو مضمومه په ځای جاري شو لکه وجوه او وقتت.

**تشریح: ځلورم بحث:** دا بحث د لفظ د اخرة منعلق دی آخزة تأنیث داخر په کسرې د خا سره یو اخِر دی اوبل اخَر دی په دې دواړو کې دافرق دی چې اخِر صیغه د اسم فاعل ده او اخَر صیغه داسم تفضیل ده اوبل اخِر روستني ته وائي او اخَر بل ته وائي نو دا وائي چې آخرة تأنیث اخِر دی او دا صیغه د اسم فاعل صفت دی موصوف غواړي په موصوف کې يې دوه احتماله يې دا چې موصوف ورته الدار مقدر دی ، بل دا چې بعض علماء وائي چې موصوف ورته النشأة دی دار هم مؤنث سماعي دی او النشأة هم مؤنث ده په لفظ کې دواړه ورته موصوف کیدی شي ځوک چې

---

(۱):- سورة القصص : آية (۸۳).

(۲) د غلبي تعریف علامه رضي داسې کړی دی (تخصیص اللفظ ببعض ماوضع له)یعني لفظ لره د موضوع له تر بعض افرادو پورې خاص کول.

(۳) نافع ( - ۱۱۷ هـ)

نافع المدني أبو عبد الله مولى عبد الله بن عمر بن الخطاب . من أئمة التابعين بالمدينة . ديلمي الأصل . مجهول النسب . أصابه ابن عمر صغيرا في بعض مغازيه . كان علامة في فقه الدين ، متفقا على رياسته . أرسله عمر بن عبد العزيز إلى مصر ليعلم أهلها السنن . كان كثير الرواية للحديث . ولا يعرف له خطأ في جميع ما رواه . الأعلام للزركلي ۸ / ۳۱۹ ، وتهذيب التهذيب ۱۰ / ٤۱۲ ، ووفيات الأعيان ۲ / ۱۵۰ ]

ورته دار مقدر کوي دهغوئ لپاره دا قول د الله جلّ جلاله دلیل دی تلک الدّار الآخرة او څوک چې ورته نشأة مقدر کوي هغوئ وائي تلک النشأة الآخرة.

دنیا د اصل وضعې په اعتبار سره د اسم تفضیل صیغه ده چې د لغت په اعتبار سره هر قرب اونزدې شي ته وائي که له دُونو څخه شي اوکه له دنأة نه شي هر رزیل شي ته وایي تر دې ځایه په بالاخرة کې یو قرات و اوس دویم قرأت ذکر کوي کوم چې له نافع (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) څخه نقل نافع (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) څخه پکې تخفیف نقل دی چې همزه لرې کړي او فتحه د همزې لام ته ور کړې نو (بِلَخِرَة) به شي

**پنځم بحث**: دا بحث د یوقنون په قرأت کې دی په یؤقنون کې هم یو بل قرأت راغلي دی لومړی دا خبره زده کړه چې د اهل صرفو یو قانون دی چې کله په واو باندې ضمه اصلیه وي نو ثقل پکې راځي ځکه واو خپله له دوه ضمو څخه جوړ دی نو ضمه ئې په همزې بدله کړه نو یؤقنون به شي.

**سوال**: قانون خو دادی چې واو مضموم وي اوضمه پکې اصلیه وي نو بیا پکې ثقل راځي دلته خو واو مضموم نه دی بلکه ساکن دی ؟

**جواب**: که واو خپله مضموم نه دی ماقبل خوئې مضموم دی ضمه د ماقبل داسې وي لکه دده ضمه مثال یې لکه په وُجوهٌ او وُقّتت کې چې کله ضمه په همزې بدلیږي أجوة او أقتت ویلی شي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَنظِيرُهُ . . . لَحَبّ المُؤقِدانِ اِلَيّ مؤسى . . . وَجَعْدَةَ اذا أضاء هُما الوُقود[۱])

**ترجمه**: قسم دی چې خامخا محبت دوه داوربلونکو سره زما دی چې موسی . . . اوجعده دی چې کله دا دواړه رڼاکی اور بلوي.

---

(۱):- عفا النسران بعيك فالوحيد . . . لايبقى لجدته جديد . . . نظرنا نار جعدة هل نراه . . . علاها بعد ضوء ام همود . . . لحب المؤقدان الى موسى ـ وجعدة اذا اضاءهماالوقود . . . تعرضت الهموم لنا فقالت . . . جعادة اى مرتصل تريد . . . فقلت لها الخليفة غير شک . . . . هوالمهدى والحكم الرشيد . . . هشام الملک والحکم المصفى . . . يطيب اذا نزلت به الصعيد . (حاشية الشهاب : ۱ / ۲٤۰ )

**تشريح**: په يوقنون کې دويم قرأت دا و چې واو په همزې سره بدل کړي شي اوس د دې لپاره يو بل مثال بيانوي چې واو په همزې سره بدل شوی وي لکه په دې شعر کې په لحب کې لام موطئه للقسم دی اصل خبره په مؤقدان کې ده دلته کله مؤقدان په ځای د موقدان وويلی شي او د وقود په ځ ی کله أقود وويلی شي. دا يو سړی دی چې جرير ئې نوم دی د خپلو دوه ځامنو صفت کوي چې يو موسی دی او جعده دی خو دوه صفته ئې کوي يو دا چې دا دواړه سخيان دي اوبل دا چې دادواړه مشهور دي ،اور بليدل په سخاوت د دوئ دلالت کوي ځکه چې څوک اور ډير بلوي هغه ډوډی ډيره پخوي او څوک چې ډوډی ډيره پخوي هغه ميلمانه ډيرلري او څوک چې ميلمانه ډير لري هغه سخي وي.

(أُولئک عَلَى هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ وَأُولئک هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ [1]).

## (د استئناف اقسام)

**تفسيربيضاوي**: ( أُولَئك عَلَى هُدًى من رَّبِّهِمْ ) ألجُملةُ فى مَحل الرَّفع اِنْ جُعِل أَحدُالمُوصُولَين مَفصُولًا عَن المُتَّقِينَ خَبرلَه فَكَاَنَّه لَمَّا قيل (هُدًى لِّلْمُتّقين) قِيل مَابَالُهُم خُصُّوا بذلک ؟ فَاجِيبَ بقوله (الّذين يُؤمِنُوْن بِالغيبِ الى الآخر الآيات)

**ترجمه**: دغه موصوفين په دغو صفاتو اربعه وو سره په هدايت دي له جانبه د رب خپل نه دا جمله په محل درفع کې ده که يو له دوه و موصولينو نه (اول الذين يا دوهم الذين) د متقين نه جدا اوګرځولی شي نو دا جمله اولئک به خبر دمتقين شي نو شان دادی چې کله داسې وويلی شي هدًى للمتقين قرآن دمتقيانو لپاره هدايت دی ويلی شي چې دمتقينو څه حال دی چې په هدايت باندې خاص کړي شوي دي جواب ورکړی شو چې څوک په دغه صفاتو سره متصف دي هغ په هدايت باندې وي.

---

(۱):- سورة البقرة : آية (٥).

**تشريح**: دې ايت لاندې درې بحثونه کوي اول أولئک د ترکيب په اعتبار سره او ورسره څو فايدې دويم د على د استعمال متعلق او دريم هدًى نکره ذکر کولو متعلق. خو لومړى دا خبره زده کړه چې ايتناف څه ته وايي: د اهل معانيو په نزد استناف ويل کيږي:

الفضل لكون الجملة جواباً لسوال اقتضيته الاولى يسمى استينافا والجملة مستأنفة ويطلق عليها الاستيناف ايضاً.

يعنې که په جمله کې عطف په دې وجه پرېښودل شي چې هغه د سوال مقدر جواب واقع کيږي نو د عطف ترک ته استناف ويل کيږي او دې جملې ته مستأنفه وايلى شي او کله نا کله په دې جملې هم د استناف اطلاق کيږي بيا په استناف کې دوه تقسيمه دي په يو تقسيم کې په درې قسمه دى او په بل تقسيم کې په دوه قسمه دى.

**جمله مستأنفه**: ديته وائي چې په جواب د سوال مقدره کې راغلى وي، بيا صاحب د تلخيص او د علامه تفتازاني رحمه الله په مابين کې اختلاف دى صاحب د تلخيص رحمه الله وائي يو منشأ د سوال مقدره دى او بل جواب د سوال دى يعنې درې شيان دې دا وائي چې دا سوال مقدره نازل که په منزله د سوال موجوده او دا روسته ورته جواب که.

علامه تفتازاني رحمه الله وائي چې په دې کې تکليف دى چې سوال مقدره نازل کړى په منزله د سوال موجوده بلکه داسې وکړه چې دا منشأ د سوال نازل کړه په منزله د سوال او دا روسته جمله ورته جواب کړه بهر تقدير دا سوال به خالي نه وي يابه د سبب مطلق څخه وي او يابه د سبب خاص څخه وي يابه د سبب څخه نه وي يعنې د غيرالسبب څخه به وي نو دا درې اقسام د جملې مستأنفې شوه.

(١) هغه جمله مستأنفه ده چې د داسې سوال په جواب کې راغلي وي چې دا سوال د سبب مطلق څخه وي.

(٢) هغه جمله مستأنفه ده چې د داسې سوال په جواب کې راغلي وي دا سوال د سبب خاص څخه وي.

(۳) هغه جمله مستأنفه ده چې د داسې سوال په جواب کې راغلي وي چې دا سوال د غيرالسبب څخه وي.

داول قسم لپاره مثال: قال لي كيف انت قلت عليل... سحر دائم وحزن طويل)

(ترجمه) ماته يې ويل څنګه ئې ما ورته وويل چې مريض يم بې خوبي ده ډيره او غم اوږد.

دلته سحر دائم وحزن طويل جمله مستأنفه ده، داقلت عليل منشأ د سوال ده چې کله ده وويل مريض يم نو يو سوال را پيدا شو او هغه سوال مقدره داده چې ولې مريض ئې اي ماسبب مَرَضک دا سوال مقدره نازکه په منزله دسوال مذکوره يامنشأ د سوال نازله که په منزله د سوال نو چې په جواب کې کومه جمله واقع ده هغه مستأنفه ده.

د دوهم قسم لپاره مثال چې سوال د سبب خاص څخه وي لکه يوسف (عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ) وائې وَمَا أُبَرِّئُ نَفْسِيْ زه خپل نس ته برأت نشم ورکولی سائل سوال مقدرکوي چې ته نفس ته برائت ولې نه ورکوي هل النفس الامّارة بسوء ؟ دا سوال د سبب خاص څخه شو يوسف (عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ) ورته جواب کی وائې إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِسُوْءٍ. بيشکه نفس امرکونکی دی په سوء باندې نو دا جمله إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِسُوْءٍ مستأنفه شوه. اوش دا خبره چې دا سوال د سبب خاص څخه دی نو څنګه له سبب خاص څخه دي دا وايي هغه داسې چې دلته په ايت کې جواب ان او لام تاکيد سره موکد دی له دې نه معلوميږي چې نوره خبره د سايل په زهن کې شته خالي شک او شبه ختموي

**دريم قسم لپاره مثال:** چې سوال د غيرالسبب څخه وي لکه: الله تعالی فرمايي قالوا سلاماً قال سلام دې ايت کې قال سلام جمله مستأنفه ده هغه داسې کله چې ملائکې را خکته شوي او په ابراهيم عليه السلام يې سلام واچولو نو د سايل په زړه کې سوال پيدا شو چې ابراهيم عليه السلام په جواب کې څه ورته وويل نو الله تعالی ورته جواب کې وويل چې هغه هم وويل سلام نو دلته لپاره هيڅ سبب نشته.

**دوهم تقسیم**: په دې تقسیم کې جمله مستأنفه په دوه قسمه ده اوپه جمله مستأنفه کې اعاده دمبتداء کیږي دا دا تقسیم په اعتبار د مستأنف عنه سره ده د چا دسوال په جواب کې چې جمله مستأنفه ذکر شي دغه کس ته مستأنف عنه الحدیث وایي.

**اول قسم**: کله اعاده پکې داسم دمستأنف عنه وي.

**دوهم قسم**: کله اعاده پکې دوصف دمستأنف عنه وي او دا قسم پکې بلیغ دی، ځکه په دې کې تنویع الدعوی بالبرهان فایده حاصلیږي او هغه داسې چې کله په وصف باندې څه حکم مرتب کیږي دا وصف به د حکم د ترتب لپاره علت وي مثال لکه احسنت الی زید نو چاسوال مقدروکړ چې زید لائق دنیکی ده او که نه نو؟ ده جواب وکړ زید حقیق بالاحسان یاصدیقک القدم حقیق بالاحسان.

په زید حقیق بالاحسان کې اعاده داسم دمستأنف عنه وشو چې زید دی اوپه صدیقک القدم حقیق بالاحسان کې اعاده دوصف دمستأنف عنه وشو صدیق دی.

اوبله خبر دا چې کله اعاده د ضمیر وکړي شي په جمله مستأنفه کې نو دا به د اول قسم نه حسابولی شي او که د دوهم قسم نه؟ نو فرمائي چې دابه داول قسم نه حسابولی شي ګویا که اعاده د اسم مستأنف عنه شوې ځکه په ضمیرکې اشاره ذات ته وي صفت ته نه وي او که اعاده د اسم اشارې وشي هغه به د دوهم قسم نه حسابولی شي ځکه اشاره کې ذات مع الوصف ته اشاره وي.

اوس به آیات شریف ته راشو أولئک عَلَی هُدًی یادا دماقبل سره مربوط کړه (وصل) یائې دماقبل نه مفصول کړه اول وصل بیانوي هغه داچې په وصل کې درې احتماله دي.

**اول احتمال**: الذین یؤمنون بالغیب معطوف علیه و والذین یؤمنون بما انزل الیک معطوف معطوف سره معطوف علیه دا مبتداء أولئک علی هدی ورته خبر دا ټوله جمله مستأنفه ده داجمله مستأنفه په اول تقسیم کې د قسم اول څخه ده چې سوال دسبب مطلق څخه ده ای مابال المتقین اختص بالهدی هغه سبب څه دی چې هدایت له متقینو پورې خاص دی نو الله جلّ جلاله جواب ورکړ چې الذین یؤمنون بالغیب او الذین یؤمنون بما انزل او اولئک علی هدی خلاصه ئې دا ده چې د دوئ صحیح عقیدې دي اوصحیح اعمال ئې دي، په بالغیب کې صحیح عقیدې ته اشاره ده

او په يقيمون الصلوة کې صحيح اعمالو ته اشاره ده او په دوهم تقسيم کې هم د قسم ثاني څخه ده ځکه دې جمله کستأنفه کې اعاده د اوصافو دمتقينو شوی (اعاده دصفت دمستأنف عنه شوی) او دا ابلغه ده ځکه دلته به دا وصف علت کې لپاره د ترتب حکم چې اولئک دی.

**دوهم احتمال**: چې الذين يؤمنون بما انزل مبتداء شي او اولئک على هدى ورته خبرشي مبتداء سره د خبرنه دا ټوله جمله معطوفه ده په متقين باندې په دې ترکيب دا جمله مستأنفه نه ده بلکه جمله تعريضيه ده په دې کې تعريض دی کفارو د اهل کتابو ته چې قرآن هدايت دی متقينو ته اومؤمنانو داهل کتابوته اونه دی هدايت کفارو داهل کتابو ته ځکه جمله مستأنفه نه مُصدّره کيږي په واو عاطفه سره او دلته مُصدّره ده ځکه تعريضيه ده.

**سوال**: د دې دواړو جملتينو ( هدًى للمتقين او والذين يؤمنون بما انزل...) په مابين کې مناسبت څه شئ دی ؟

**جواب**: مناسبت کمال دی ځکه په معطوف عليه کې هم کمال د قرآن ذکرشو او په معطوف کې هم کمال د قران ذکرشو او دا له تعريض څخه راووت چې مؤمنان داهل کتاب اومتقين د قرآن په وجه مؤمنان دي.

**سوال**: فان جعل احد الموصولين سره مصنف دواړو ترکيبونو ته اشاره کړې وه او حال دا چې په فکانّه سره يوازې اول ترکيب ذکرکوي داولې ؟

(۱)**جواب**: بعض علماء وو دا جواب کړی چې په ان جعل احد الموصولين کې الف لام عهدي دی معهود او مراد هغه اول موصول دی نو اول ترکيب په اجمال کې هم راغی او د اول ترکيب تفصيل هم کوي.

(۲)**جواب**: بعضې علماء وائي په اجمال کې دواړو ترکيبو ته اشاره ده خوپه تفصيل کې ئې يو ذکر کړ ځکه دوهم ترکيب ضعيفه ده او ځکه ضعيفه دی چې کله يو موصول روسته د بل موصول څخه راشي اومانع د عطف څخه هم نه وي نو هلته عطف اولی دی دلته يو موصول روسته د بل نه راغلی دی او عطف ئې [illegible] کړی په الذين بلکه په هغه متقين ئې ورعطف کړی او بل دا چې په دوهم ترکيب

والذين يؤمنون نه مؤمنان داهل كتابو مراد دي نو معنى به داشي دامؤمنان داهل كتابو چې اولئک على هدى من ربهم واولئک هم المفلحون نو دا دنيوي او اخروي فائده دي مؤمنانو د اهل كتابو ته ثابته كړه اومؤمنانو دمشركانو ته دي ثابته نه كړه او حال دا چې مومنانو د مشركينو هم په قرآن ايمان راوړى اوله شرک څخه بيزاره شوي وو نو په دې کې تو هم د دې نقصان راځي.

**دريم احتمال**: چې اولئک د ماقبل نه مفصول كړى شي نو په دې کې بيا يو تركيب دى اولئک مبتداء ده على هدًى ئې خبردى او اولئک مبتداء ده او هم المفلحون ئې خبردى يو په بل عطف دي يا عطف د مفرد په مفرد دى يا عطف د جملې دى په جملې باندې نو دا بيا جمله مستأنفه په اول تقسيم كې اول قسم هم كيداى شي او دريم قسم هم كيداى شي چې اول څخه شي نو سوال مقدر به دا وي ماسبب اختصاصهم بالهدى او كه له دريم قسم څخه شي نو سوال به داوي مافائدة الصفات والاحكام نو جواب كوي اولئک على هدًى من ربّهم احكام دادي: چې قرآن كامل دى او قرآن هادي دى او صفات دادي: الذين يؤمنون يعنې صحيح عقيده اوصحيح اعمال دي دا ده آول سبق خلاصه شوه اوپه دوهم تقسيم كې قسم ثاني ده ځكه دې كې جمله مستأنفه كې اعاده داسم اشارې دى اعاده د اسم اشارې اعاده دصف وي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَاِلّا فَاستِنافٌ لَامَحَلَ لهَا فكَانّه نَتِيجة الأَحكامِ وَالصِّفات المُتَقَدَمة أوجوَاب السَّائلِ قَال مَالِلمَوصُوفَين بِهَذه الصِّفاتِ اِختَصُّوا بِالهُدى ؟ وَنظِيرهُ اَحسنتَ الى زَيدٍ صَديقک القَديم حَقِيق بالاحْسان)

**ترجمه**: اوكه داسې نه وه بيا جمله مستأنفه ده اومحل د اعراب ورلره نشته گويا كه داده مخكينو احكامو اوصفاتو نتيجه ده اويا جواب دى د سائل د سوال مقدر چې څه ذي دموصوفينو د دې صفاتو لره چې خاص كړى شوي دي په هدايت سره اومثال د دې احسنت الى زيد صديقک القديم حقيق بالاحسان. احسان دي وكړ زيد سره چې ستا پخوانى دوست دى دا داحسان لائق دى.

**تشريح**: د استناف نه مراد هغه دريم قسم استناف مراددى او جواب السائل سره اول قسم استناف ذكر كوي او ضمير د نظيره (ه) دواړو ته راجع دى په طريقې دبدليت.

**تفسیربیضاوی**: ( فَانّ الاسمَ اشارَةِ ههنَا كَاعادَة المُوصوفِ بِصفاتِه المَذكُورةِ وَهو أَبلغُ منْ أَن يُستَأنفَ بِاعادةِ الاسمِ وَحدَه لِمافيِه منْ بَيانِ المُقتضى وَتَلخِيصهِ فَاِنّ تَرَتب الحكْم عَلى الوَصف اِيذان بِانّه المُوجِب لهُ)

**ترجمه**: بیشکه اسم اشاره دلته په شان د اعادې دموصوف سره دصفاتو مذکوره وو ده او دا (اسم اشاره) ابلغ ده له دینه چې استناف په اعادې داسم سره شوې وي ځکه چې په دې اسم اشاره کې بیان د مقتضي او د اختصار دی بیشکه چې په ترتب حکم کې په وصف باندې ددې خبرې اعلان وي چې دا وصف دې حکم لره موجب دی.

**تشریح**: دلته د اسم اشارې فواید بیانوي هغه داسې چې دا مذکور خلک په صفات مذکوره وسره خو بېشماره دي د ټولو نومونه خو نشي اخستل کیدای نو د اختصار لپاره په اولئک اسم اشارې سره ذکر کړه او بله دا چې په جمله مستأنفه کې اعاده د اسم اشارې داسې ده لکه اعاده د موصوف سره له صفاتو او داسې جمله مستأنفه ابلغه وي له هغې نه په کومه کې چې اعاده د اسم د مستأنفه عنه شوې وي ځکه په اسم اشارې کې د حکم د مقتضی وضاحت کیږي او دا ځکه چې حکم په وصف باندې مرتب کول د دې خبرې اعلان کوي چې دا وصف د دې حکم موجب او مقتضي دي.

## (استعاره تمثیلیه)

**تفسیربیضاوي**: (وَمعْنى الاسْتِعلَاء فِى (عَلَى هُدًى) تَمثِيلُ تَمكُّنِهم مِن الهُدى وَاستِقْرارِهم عَليه بِحَالٍ من اِعْتلى الشّئَ وَ رَكِبَه وَقدْصَرَّحُوا به فِى قَولهمْ اِمْتطى الجَهل وَالغَوى وَاقْتَعد غَارِبَ الهَوى وَ ذَلک اِنّما يَحْصلُ بِاستِفْراغِ الفِكرِ وَ اِدامَة النَّظرِ فِيما نَصبَ منَ الحِجَج وَالمُواظَبة عَلى مُحاسبَة النَّفس فِى العمل)

**ترجمه**: اومعنی د استعلاء په علی هدی کې تمثیل دی د قدرت موندلو د متقیانو په هدایت باندې او بر قرار پاتې کیدلو د حال دهغه چاسره (تمثیل دی) چې په کوم شي د پاسه او په هغه شي سوروي او په دې تمثیل دوئ تصریح کړي ده په دې قول دعربو کې چې فلانی سړی جهل او گمراهی خپله سوارلی گرځولي ده او دا محاوره چې فلانی د خواهشاتو په گردن ناست دی دا

تکمن په هدایت ئې ځکه دی چې دا دفکر په فارغولو سره (قوت نظری) حاصلیږي او دوام د نظر په هغو دلائلو کې چې کوم ذرولی شوي دي په قدرت و حدانیت او عظمت شان د ربّ جلّ جلاله کې او دا تمکن د هدایت همیشه په عمل کې د محاسبې د نفس سره (قوت عملی) حاصلیږي.

**تشریح: دریم بحث:** مصنف رحمه الله دلته دریم بحث د علی د استعمال متعلق کوي دا سعمال مطلب دا دی چې ایا دا علی د حقیقي معنا په اعتبار سره مستعمله ده او که د مجازي معنا په اعتبار سره ده.

لو مړی دا خبره زده کړه چې اهل المعاني استعاره په اعتبار د لفظ مستعار سره په دوه قسمه کوي او اصلیه دویم تبعیه که لفظ مستعار اسم جنس وي دا استعاره اصلیه ده او که لفظ مستعار فعل یا حرف وي دا استعاره تبعیه ده خو دلته درې استعارې زده کړئ یوه استعاره په اسم جنس کې چې اصلیه ده بله استعاره په فعل او په حرف کې چې تبعیه ده دهاو بله استعاره ئې تمثیلیه ده.

**(۱) استعاره اصلیه:**

دیته وائي چې لفظ مستعار اسم جنس وي اسم جنس نه مراد هغه لفظ دی کوم چې د معنی (مطابقي او تضمني) په اعتبار مستقل بالمفهومیت په دې سره حرف او فعل خارج شول ځکه حرف مستقل بالمفهومیت نه او فعل په معنی تضمني کې اګر که مستقل وي خو مطابقي کې مستقل بالمفهومیت نه وي لکه لفظ د اسد په واسطې د شجاعت د زید سره.

**(۲) استعاره تبعیه:**

دیته وایي چې لفظ مستعار فعل او یا حرف وي، داستعارې بالتبعیة مثال په حرف کې یو حدث مشبه ده او مشبه به متعلق د حرف ده یا دا حرف را واخله په مشبه کې استعمال که نو دا استعاره بالتبعیه ده لکه فرعون ساحرانو ته وائي (لَأُصَلِّبَنَّكُمْ فی جزوع النخل) زه به تاسو رازوړند کړم په شاخونو دکجورو کې د شاخونه خو ددوئ (ساحرانو) لپاره ظرف نه وو بلکه دا یا د شاخونو پاسه وو یا ورنه لاندې و او دلته ئې د ظرف صیغه مستعمله کړه، دلته اوس استعلاء چې یو حدث دی دا مشبه او متعلق د حرف (فی) چې استقرار او ظرفیت دی دائې مشبه به دا معنائې متعلق د (فی) کړه د هغې خپله معنی ئې

نکړه ځکه د (فی) معنی غیر مستقله ده او دا مستقلي معنی ګاڼې دي اوس دا (فی) دي راوخیست اوپه استعلاء کې دمستعمل که نو دا استعاره بالتبعیه شوه.

داستعارې بالتبعیه په افعالو کې مثال چې یو حدث را واخلې او هغه د یو مصدر سره مشابه کې بیا د دې مصدر مشتقي را واخلې او په دې مشبه کې ئې مستعمل کې لکه ( اولئک الذین اشتروا والضلالة بالهدی ) دلته اختیار یو حدث دی دامشبه کړه د بیع اوشراء سره (مصدرسره)او د دې مصدر(بیعې اوشرا) مشتقي بیا را واخله چې اشتروا دی دا په اختیار کې مستعمل که نو دا استعاره بالتبعیه په افعالو کې شوه.

## (۳)استعاره تمثیلیه:

دیته وائي: ( تشبیه هیئة منتزعة من امور متعددة بمثلها) چې له ځینې متعدو امورونه یو هیئت منتزع کې اوله ځینې نورو متعددو امورو څخه بل هیئت منتزع کې بیا دا یو هیئت له بل سره مشابه کې لکه سید قریشی بابا رحمه الله به ویل چې په بڼ خیله کې یو اخند وه نو د خوړنه پورې هم خیرات وو او دې غاړه هم خیرات وو نو دا اخند به خوړکې ته او راته کله به خیال کولو چې پورې غاړه خیرات وخوره نو هغې خواته به راوان شو بیابه ئې خیال وکړو چې راځه اول دې غاړه خیرات اوخوره بیرته به راراون شو نو دلته یو خوړدی بل دغه سړی شو اوبل د ده تلل اوراتلل شو نو داامور متعددي اوله دې هیئت منتزعه هغه تحیرد دې سړی دی نو دا هیئت مشبه به او یو طالب دی بل مدرسه ده او بل د ده تلل راتلل دي ) دا یو هیئت منتزع دی نو دغه هیئت (د طالب) له هغه هیئت(د اخند) سره مشابه که دا استعاره تمثیلیه شوه.

دلته په اولئک علی هدًی باندې یو اعتراض راځي هغه داسې.

**سوال:** علی خو د استعلاء لپاره راځي او په مرکوب ور داخلیږي اومرکوب خو جسم وي او دلته په ایت کې خو مرکوب هدایت دی او هدایت خو جسم نه دی نو معنی داده علی هدًی دوئ سواره دي په هدایت، اوسورلی خو په جسم کیږي ؟

**جواب**: دلته دا استعاره تبعیه ده هغه داسې تمکن في الهدایت مشبه او متعلق د حرف (علی) چې استقرا اورکوب دی دامشبه به بیا دا علی رواخله او په تمکن فی الهدایت کې ئې مستعمل که نوا دا استعاره بالتبعیه ده دلته قاضي صاحب بیا ورته دتمثیل لفظ هم استعمال کړی خو دتمثیل نه به استعاره تمثیلیه نه وي مراد بلکه تصویر به وي یعنې د معقول لپاره په محسوس کې صورت پیش کوي او که له دینه استعاره تمثیله مراد کړی شي بیا به د دې صورت دا وي چې یو متقین(مهتدي) دي بل هدایت دي او بل تمکین بالهدایت دي دا هیئة منتزعه له امور متعدة و نه مشبه ، او بل طرفته راکب دی او بل مرکوب دی او بل د راکب استعلاء ده په مرکوب دا بل هیئة منتزعه دی دا مشبه به او دېته استعاره تمثیلیه وایي.

## د علامه تفتازاني او سید السند رحمهما الله مناظره

په استعاره تمثیل او تبعیه کې د علامه تفتازاني او سید سند رحمهما الله یوه مشهوره مناظره شوي ده هسې خو د دوی دواړو تر مینځ زیات بحثونه شوي دي چې مستقل کتابونه پرې لیکل شوي دي خو تر ټولو مشهوره یې دا مناظره ده .

پېښه داسې وه چې علامه تفتازاني رحمه الله د شاه شجاع بن مظفر په دربار کې ډېر اثر او روسوخ درلود له هغه نه روسته شاه تیمور لنګ کوم چې د مغلو له کورنۍ څخه و په دربار کې صدر الصدور مقرر شو ، تیمور د علامه صیب ډېر زیات معتقد و او زیات احترام به یې کولو کله چې علامه د مطول شره تلخیص المفتاح ولیکله نو تیمور فخراً تر یوې میاشتې د هرات د د قلعه په روازې کې اېښي وه ، دغه د حنفي مذهب لوی محقق علامه میر سید السند رحمه الله هم دربار ته تګ راتګ کولو ؛ خو د میر سید السند تعلق له تیمور سره د علامه تفتازاني په واسطې پیدا شو .

یوه ورځ تیمور سید السند ته وویل چې ته په څه کې مهارت لرې چې همغه کار ته دې واستوم میر صیب ورته وویل زه خو نیښنان ویشتونکی یم تیمور ورته وویل بیا خو به دې له فوځ ... سرحداتو ته ولیږم، میر صیب ورته له جیب نه کاغذونه راوباسل ورته یې وویل زه علمي نیښنان

ویشتونکی یم یعنې مناظر یم، تیمور ورته وویل که دغسې وي بیا له علامه سره مباحثه وکړه نو د دواړو په دې کې مناظره وکړه چې تمثیل د ترکیب مستلزم دی او که نه دی ؟

علامه ورته وویل تمثیل د ترکیب مستلزم نه دی او دا کله د استعارې په طریقې هم کیږي لکه دا قول د الله تعالی (اولئک علی هدًی من ربهم)

سید السند ورته وویل په دژ خبره څه دلیل دی ؟

علامه تفتازاني رحمه الله ورته وویل د علامه زمحشري کلام ته وګوره (معنی الاستعلاء فی الایة مثل تمکنهم من الهدی واستقرارهم علیه و تمسکهم به شبهت حالهم بحال من اعتلی الشيء ورکب) یعنې په ایت کې د استعلاء معنا دا ده چې په هدایت باندې د مومنانو ثابت کېدل او متمکن کېدل تمثیل دی چې په دېکې د هغوی حالت د هغه شخص له حالت سره تشبیه کړل شوی دی چې په کوم شي باندې سوریږي ، علامه طیبي رحمه الله د مذکور قول (مثل تمکنهم ) مراد ظاهر کولو کې لیکي چې (یعنې هو استعارة تمثیلیة واقعة علی سبیل التبعیة یدل علیه شبهت الحالهم) یعنې د علامه زمحشري د قول مطلب دادی چې په دې ایت کې استعاره تمثیلیه ده په طریقې د تبعیې سره، د لعلّ د استعارې په سلسله کې علامه سکاکي هم د دغې مدعی تائید کړی دیته ورته نور دلایل هم شته خو هم دا کافي دي.

میر صیب ورته وویل هو ! په دې اشکال دی هغه دا چې استعاره تمثیلیه صرف په مرکباتو کې وي او تبعیه صرف په مفرداتو کې وي نو دواړه څنګه ځیلو کې سره جمع کیږي دا خو د اور او اوبو جمعه والی دی؟

علامه صیب ورته جواب کوي چې دا خو کوم لوی اشکال نه دی ځکه د استعارې تمثیلې مدار په ترکیب باندې نه وي صرف د شبهې وجه یې له متعدد و منتزع ده .

میر صیب پرې اعتراض کوي د شبهې وجه له طرفینو منتزع کیږي او د دې د شبهې وجه کې تعدد وي نو په طرفینو کې تعدد ضروري شو همدا ترکیب دی کنه!

علامه ورته وايي: له متعددو امورو انتزاع په ذات د طرينو کې ترکيب نه لازموي ځکه دا خو له هغه څخه ماخوذ دی نه له ذات د طرفينو څخه.

د دواړو ترمينځ د سوال او جواب سلسله اوږده شو نو د فيصلې کولو (ثالث) لپاره يې حکم نعمان معتزلي مقرر کړی و نو نعمان معتزلي د مير سيد السند په حق کې فيصله وکړه او دا يې د څو وجو نه وکړه اول دا چې مير صيب فصيح و په نسبت سره علامه صيب ته دويم دا چې نعمان معتزلي له مخکې نه له علامه صيب سره وران و هغه د عقيدې په بنياد.

کومه چې مشهوره ده په مابين د علماء او طلباؤو کې مناظره داسې وه چې علامه تفتازاني له دې پېښې ورسته علامه صيب سخت خفه شو چې يو خو سيد السند دده په واسطې له تيمور سره تعلق پيدا کړو او بل داچې له دينه مخکې ټولو خلکو مير صيب د علامه صيب په شاګردانو کې شمارلو او مير صيب به خپله هم دا اقرار کولو چې زه د ده له کتابونو استفاده کوم نو د دغه خفګان له امله مريض شو او په (٢٢محرم په کال ٧٩٢هـ) کې په سمرقند کې وفات شو [1]

له دې نه وروسته علامه الوسي رحمه الله صاحب د تفسير روح المعاني يوه رساله وليکله په نامه د (الاجوبة العراقية عن الاسئلة الايرانية) دا رساله د علامه تفتازاني رحمه الله دفاع او د مير سيد السند رحمه الله سوالونو ته جواب دی. د دې رسالې خلاصه داده استعاره تبعيه په مفرداتو کې راتللی شي لکه دلته چې هيئت مفرد دی او منشأ امور متعدد دی او مشبه او مشبه به دواړه مفردين دي او کله مشبه او مشبه به دواړه مرکبين وي نو داسې استعاره تمثيليه له استعارې تبعيه سره جمعه کيدلی شي.

دغه راز علامه صبان يو کتاب ليکلی د الرسالة البيانية په نامه په دې کتاب کې هم د دې مناظرې تفصيلي تذکره شته په يو بل کتاب چې په دې مناظره ليکل شوی په نامه د مسالک الخلاص فی مهالک الخواص او په کتاب الانصاف فی مشاجرة الاسلاف کې هم د يادې مناظرې تذکره شته.

---

(١) ظفر المحصلين :١/٤٤٢،٤٤١

## د هدًی د تنکیر وجه

**تفسیربیضاوي**: ( ونَکّر هدًی لِلتعْظِیم فَکأَنّه أُرِیدَ بِهِ ضَرب لَایُبالَغ کُنْهُهُ ولَایُقادَر قَدرهُ وَنَظِیره قَول الهُذَلِیّ [1]. فَلا و أَبِی الطَّیر المُربّة بالضُّحی... علی خَالد لَقد وقَعَت علی لحْمٍ . . وأَکَّد تَعظیمَه بانّ الله تعالی مَانِحُه وَالمُوفق له)

**ترجمه**: هدًی ئې د تعظیم لپاره نکره ذکر کړ ګویا چې له هدایت سره د هدایت هغه نوعه مراد ده چې د هغې نهایت ته رسیدل نشي کیدلی او د هغې مقدار او اندازه کیدلی نشي او مثال ددې د هذلي شاعردا قول دی (ترجمه) په پلارانو (اصول) د مرغانو دې زما قسم وي چې د څاښت په وخت کې راښکته کیدونکی وو په خالد باندې په تحقیق سره په یوه غوښه عظیمه واقع کیدل.

**تشریح: دریم بحث**: دا دریم بحث دی چې هدًی یې ولې نکره ذکرکړ نو دی وایي چې د هدًی د نکارت مقصد د هدایت عظمت او لویی لپاره .

تنکیر کله لپاره دتحقیروي او کله لپاره د تعظیم وي چې د تعظیم لپاره وي هغه داسې چې ته مخاطب ته دا په ذهن کې ورکوي چې د دې په تعریف او په دې احاطه کول د عظمت او مرتبې له امله ممکنه ځکه تعریف خو احاطه علمي غواړي او دلته د عظمت الشان له وجې احاطه نشي کیدلی نو د تعریف په ځای اسم مبهم او نکره ذکر کړي ترڅو په تعظیم دال شي .

**سوال**: په هدًی کې دا تنکیر د تعظیم لپاره شو نو من ربهم ته بیا څه ضرورت دی دا خو نه دی مګر تحصیل د حاصل دی ځکه دلته من رتهم په تعظیم د هدایت دلالت کوي چې دا د الله تعالی له طرفه دی نو د من ربهم ذکر کولو ته ضرورت نه نشته دا ځکه چې دلالت په دوه قسمه دی یو ارائت الطریق او بل دلالت موصله الی المطلوب په دې دواړو کې عظیم دلالت موصله الی المطلوب

(۱):- د هذلی خپل نوم ابوالخراش خویلد بن مرة الهذلی وو نوموړی له فرسان العرب څخه شمیرل کیده او دیر فصیح شاعروو د اسلام دعوت نه ئي لبیک وایه بیادعمر فاروق رضی الله په زمانه کي وفات شو هذلی دغه شعر به د خالد بن زهیر الهذلی مرثیه کي ویلي نور بیتونه ئي داسي دي : لعمر ابي الطیر المربة غدوة . . علی خالد لقد وقعت علی الحم . . فلاوابی تأکل کل الطیر مثله . . غشیة امسي لایبین من المسلم . . وانک لو ابصرت مصرع خالد . . . بجنب الشازبین ابرق فالحزم . . لایقنت البکر غیر رذیة . . . ولاالناب لاضمت یدک علی غنم (نواهد الابکار وحاشیةا لشهاب :

دی ځکه دا سوا د الله تعالی نه بل څوک نشي کولی او ارائت الطريق د ومره عظيم نه دی ځکه هغه انسان هم کولی شي نو دلته هدايت نه دلالت موصله الی المطلوب مراد دی او دا پخپله په عظمت دال دی نو من ربهم ذکر کولو ته څه ضرورت وو ؟

**جواب**: دا من ربّهم لپاره دتاکيد دی.

فلا وابی الطير سره مصنف په مثال کې يو شعر پيش کوي چې په هغې کې تنکير په تعظيم دال دی هغه داسې چې په دې شعر کې لفظ د «لحم» نکيره ذکر شوی دی لپاره د تعظيم د غوښې په «فلا وابی الطير» کې درې ترکيبه دي

(۱) يو دا چې (فاء) او (لا) او (ابی) زائد کړی نو والطير پاتې شو معنی دا قسم دی په مرغانو.

(۲) يا داسې ترکيب وکړه چې لا د مخکې کلام لپاره نفي کړه او ابي په اصل کې ابين دی نومعنی داشوه فلا داسې نه ده وابي الطير په اصولو دمرغانو مي دي قسم وي په ابي کې «نون» په اضافت سره ساقط شو.

(۳) ابي په خپل حال پرېږده نو معنی به داشي قسم دی په ملازم د مرغانو.

**تفسيربيضاوي**: ( وَ قَد أدغِمَت النُّونُ فی الرّاء بِغُنّة وَبِغَير غُنَّة )

**ترجمه**: او مدغم کړی شو نون په راء کې سره له غنې او بل قرأت کې بغير د غنې.

**تشريح**: اوس دلته قرائتونه ذکرکوي خلاصه دا ده چې د زياتو قاريانو په دې اتفاق دی چې من ربهم کې نون په راء کې مدغم کول واجب دی البته قالون او يعقوب د ادغام د وجوب قايل نه ی بيا په دې کې اختلاف دی چې له ادغام سره غنه ضروري ده او که نه جمهور د غنې انکار کوي و نور يې اقرار کوي، نو د تجويد په اعتبار پکې درې قرائته دي:

(۱) په اظهار د نون سره په مِن ربّهم کې.

(۲) ادغابغير غنّة،

(۳) ادغام مع الغنة[1].

---

(۱):- عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائي : أولئک عل هدًی ) ای عل ارشاد وقال ابن قتيبة عل نور استقامة (زادالمسير: ۱ / ۲۹)

**تفسیربیضاوي:** ( وَأُولئک هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ) کَرّر فیه اسمَ الاِشارَة تَنبِیهًا عَلی اِنَّ اِتِّصَافَهم بِتلک الصِّفات یَقتَضِی کُلّ وَاحدةٍ مِن الأَثرَتین و اِن کُلا مِنهُما کَاف فِی تَمیز هم بها عَن غَیرِ هم)

**ترجمه:** په اُولئک هُمُ المُفلِحونَ کي الله جلّ جلاله اشاره مکرر کړې ده لپاره د تنبه په دې خبره باندې چې په دغو اوصافو مذکوره وو باندې متصف کیدل د هر یو د دغه دوه اثرو ( یَعنې د مابه الامتیاز (١) مستعلی علی الهدایة (٢) فلاح اخروي) تقاضا کوي او بله فائده د تکرار داده چې هریو د دغو دواړو نه د متقیانو په تمیز کې کافي دي په سبب د دغو صفاتو د غیرنه.

**تشریح:** په دې ایت کې مصنف پنځه بحثونه کوي اول د اولئک تکرار او په مینځ یې حرف عطف راوړل دویم د «هم» د لفظ تحقیق دریم د مفلح د لفظ تحقیق څلورم د تنبیه تشریح پنځم د علم کلام د یوې مسئلې متعلق.

**اول بحث:**

**سوال:** څه حکمت او ضرورت دی چې اولئک ئې مکرر ذکرکه او حال دا چې د دواړو مصداق یو دی چې هغه متقین دي او موصوف دي په هغه تیرو صفاتو بغیر له اولئک څخه به یې هم المفلحون پرې ور عطف کړی وای؟

**جواب:** په تکرار د اولئک کې دوه حکمته دي

(١) حکمت: اشاره ده دې خبرې ته چې دا دواړ (اسم اشارې) معلولین مستقلین دي یعنې استقلال د معلولینو ته ئې اشاره وکړه او استقلال ته ئې په دې کې اشاره وکړه چې مونږ ویلي وو چې په اسم اشاره کې ذات او صفاتو دواړو ته اشاره راځي او په دې کې فائده داوي چې کله ذات او صفاتو ته اشاره راشي نو هغه صفتات به علت وي لپاره د ترتب د حکم په موصوف؛ نو چې متقینو ته سره د دې صفاتو (چې کامل فلاح او مستقر علی الهدایت کیدل دي) اشاره راغله نو دا صفات مستقل علت شوه لپاره د علی هدی او دا صفات مستقل علت شو لپاره د هم المفلحون نو په یو اولئک کې یو ځلي علت ذکر شو او بل اولئک کې بل ځلې علت ذکرشو ،تکرار د علت او استقلال

دعلت تقاضا دتکرار دمعلول او استقلال دمعلول کوي، او که اکتفاء ئې په یو اولئک کړې وای یعنې په طریقې دعطف یې ذکر کړی وای نو بیا به معنی داوه چې داصفات د مجموعې لپاره علت دي او د یو یو لپاره مستقل علت نه دي یعنې مجموعه پرې ثابتیږي او یو یو پرې نه ثابتیږي.

(۲) **حکمت**: په دې کې دې نکتې ته اشاره ده چې دا هرمعلول مستقل ما به الامتیاز دی لپاره دمتقینو یعنې متقي دغیرمتقي په علی هدًی هم راجدا کولی شي او په هم المفلحون ئې هم راجدا کولی شي.

**سوال**: په هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ سره امتیاز صحیح دی ځکه چې کله مسند او مسندالیه دواړه معرفې وي نو هلته به مسند او خبر تر مسندد الیه پورې منحصر وی او دلته هم «فلاح» مقصوردی تر اولئک پورې یعنې فلاح تر متقینو پورې مقصوره ده اوغیر متقینو ته متجاوزه نه ده لکن استقرار علی الهدایت وصف امتیاز کیدل په اولئک علی هدًی من ربهم ترکیب کې نه دی صحیح. ځکه اولئک علی هدًی من ربهم ترکیب اسې نه دی یعنې دلته هدایت تر اولئک (متقینو) پورې مقصورنه دی نو هدایت په متقینو اوغیرمتقینو دواړه کې راغی نو په دې سره به څنګه امتیاز راشي؟

**جواب**: په هم المفلحون کې قصر په تعریف دمسندینو دی خو په علی هدًی کې قصر په اعتبار د تخصیص د علت دی چې صفات مذکوره دي، علت خاص دی تر متقینو پورې نو علی هدًی به هم خاص وي تر متقینو پورې قانون دادی چې علت چاپورې خاص وي معلول هم هغه پورې خاص وي.

**تفسیربیضاوي**: (وَوَسَّط العاطِف لِاختِلاف مفهُوم الجُملتَین هَهُنابِخلَاف قَولِه (أُولئک کَالْاَنعام بَلْ هُمْ اَضَلّ وَأُولئک هُمُ الْغَافِلُوْنَ [۱] فَانَّ التسجِيل بِالغَفلَة لِتشْبِيه بِالبَهائم شَیٔ وَّاحدٌ فَکانَت لجُمْلة الثَّانِية مُقررة للأُولی فَلاتنَاسب العطف)

---

(۱):- سورة الاعراف: آية (۱۷۹)

**ترجمه**: او حرف عاطف ئې واسطه کړی دی(په کابین د دواړو اسم اشارو کې) له وجې د اختلاف د مفهوم د جملتینو په خلاف د دې قول د الله جلّ جلاله چې (أُولئک هُمُ الغَافِلُوْنَ) ځکه د دویٔ په غفلت باندې حکم کول او بهائمو سره تشبه ورکول پکې یو شي دی نو دا دوهمه جمله به داولې جملې مقرره او مؤکده وي نو دلته عطف مناسب نه دی.

**تشریح**: دا د اول بحث جز دی چې حرف عطف یې ولې په مابین داشارو کې راوړ او دلته هم طلب د حکمت کیږي.

**سوال**: څه حکمت دی چې په دې آیت کې هم تکرار د اولئک راغلی چې یو ( اولئک کالانعام بل هم اضل ) او بل (أُولئک هُمُ الغَافِلُوْنَ) دی او حال دا چې دیکې واو حرف عاطف نه دی راوړلی شوي لکه څنګه چې هلته کوم محکوم علیه د اولې جملې همغه د وهمې جملې هم دی د غسې دلته هم اتحاد دی په محکوم علیه کې نو هلته به دې هم واو عاطفه نه راوړ لکه دلته چې نشته ؟

**جواب**: دلته په اولئک کالانعام کې د دواړو جملتینو په مابین کې کمال اتصال دی په مسند الیه ګانو کې اتحاد دی او د مسندینو مضمون یو دی د یو اولئک مضمون کالانعام دی او د بل غافلون دی غافل او انعام یو شي وي او هلته د اولئک علی هدًی او د اولئک هم المفلحون د مسند الیه ګانو په مینځ کې خو اتحاد دی چې متقین موصوفین په صفاتو مذکوره سره دي خو د مسندینو په مینځ په اعتبار د وجود او مفهوم سره فرق دی فرق په اعتبار د وجود دا دی چې اول مسند علی هدی په دنیا کې موجود دی د دوهم مسند هم المفلحون دا به په اخرت کې موجودیږي او بل دمفهوم په اعتبار سره هم په کې فرق دی د هدایت مفهوم ځانته دی چې الدلالة علی ما یوصل الی المطلوب یا دلالة موصلة الی المطلوب او د فلاح مفهوم ځانته دی چې الفوذ بالمطلوب دی نو من وجهٍ اتصال ده اومِن وجهٍ انقطاع ده نو دې قسم جملو کې عطف جائز دب نو ځکه په مینځ ې حرف عاطف راوړ.

او بل په دې ایت کې د کفارو تشبیه له ځناورو سره ورکړل شوې ده او وجه د شبه یې غفلت دی ګویا چې تشبیه ورکولو سره د غفلت معنا پیدا کول مقصود ده او په أُولئک هُمُ الغَافِلُوْنَ کې

خو صراحتا د غفلت اثبات شوی دی چې کله تشبيه بالبهائم او غفلت يو شی وګرځېږ نو دويمه جمله ذکر کول به محض تاکيد وي.

**تفسيربيضاوي**: (وَ هُم فَصلٌ يَفصِل الخَبر عن الصِّفّة يُؤكِّد النِّسبةَ ويُفيدُ اختِصاص المُسنَد بِالمسند اليه أَومُبتداء وَالمُفلحون خَبرُهُ والجُملة خَبر أُولئِک)

**ترجمه**: او هُم ضمير فصل دی جداکوي صفت له خبرنه او د نسبت تاکيد کوي اوتخصيص دمسند په مسنداليه پورې فائده کوي اويا دلته هم مبتداء (ثاني) ده اومفلحون ئې خبرده (يامبتداء ثانی سره د خبرنه) دا جمله خبر داولئک دی.

**تشريح: دويم بحث**: دلته دويم بحث د هُم متعلق ذکر کوي په دې باندې د ټولو نحاتو اتفاق دی چې لفظ د هم فاصل دی په مابين د صفت او خبر کې يعنې خبر له صفت څخه جدا کوي خو په دې کې اختلاف دی چې دا اسم دی او که حرف دی بعضې بصريان ورته حرف وائې اونور نحات ورته اسم وائې (۱) ځوک چې ورته اسم وائې دې کې دوه مذهبه دي (۱) ځوک ورته اسم ملغی ای لامحل لها من الاعراب وائې (۲) اوځوک ورته اعراب محلي راوړي يعنې مبتداء ده محل د اعراب يې رفع ده.

خو راجح دا دی چې دا اسم دی چې اسم شي په دې کې بيادوه ترکيبه دي (۱) که اعراب محلي ورته پيداکوي نو هم مبتداء ثاني اومفلحون سره د خبر دا خبر د مبتداء اولې.

(۲) اوکه چيرته اعراب محلي نه ورته راوړي نو اولئک مبتداء اومفلحون خبر دا (هُم) پکې هسې رابط دی اودې ته ضمير فصل وائې، ځکه دا فصل راولي په مابين د خبر او صفت کې او په مابين د مبتداء اوموصوف کې نو که (هُم) پکې نه وي راغلي نو متوهم به داوهم کولو چې دامفلحون د اولئک صفت دی او دا صفت نه صحيح کيږي ځکه فصل په اجنبي سره راځي په مابين د موصوف او صفت کې اوکه د مجموعې لپاره ئې صفت کوې نو والضمير لايوصف ولايوصف به.

هغه ځوک چې ضمير فصل ته حرف وايي د هغوی دليل هم دادی يعنې چې د ضمير فصل د راوړلو مقصد دا دی چې مخاطب په دې خبره پوهه وي چې له ضمير فصل نه ورسته کلمه خبر دی او

صفت نه دی ځکه که صفت یې او منې نو یا به مفلحون او هم ضمیر فصل هم ورسره صفت منې او یا به یې نه منې که منې یې ضمیر دی صفت کړو او دا غیر صحیح ده او نه یې منې فصل په اجنبي راځي.

او څوک چې ضمیر فصل ته اسم وایي هغو وایي چې دا ځکه اسم دی چې اکثر علماء ورته اسم وایي.

نو که ضمیر فصل اسم شي او محل د اعراب هم ور لره نه وي نو په دې تقدیر سره بیا درې فایدې لرې اوله دا چې د خپل مابعد خبریت ښکاره کول او د صفت احتمال ختمول دویمه فایده تاکید النسبة کوک نسبت چې د د خبر مبتدا طرفته کېږي هغه مظبوطوي دریمه فایده تخصیص المسند بالمسند الیه.

**سوال:** اختصاص خو په تعریف د مسندینو سره راځی په دې (ضمیر فصل) سره خو نه راځي ځکه عموما ضمیر فصل هغه وخت راوړلی شي چې مسندین معرفه وي ؟

**جواب:** د دې مطلب دا نه دی چې ضمیر اختصاص او انحصار پیدا کوي بلکې مقصد دادی چې کوم اختصاص د خبر د تعریف په وجه پیدا شوی ضمیر فصل د هغې تاکید کوي.

**تفسیربیضاوي:** ( والمُفلِح بالحَاء والجِیم الفَائز بِالمطْلوبِ کانّه الّذی إنفَتحَت لهُ وُجوهُ الظُّفرِ وهَذا التَّرکیبُ ومَا یُشارِکه فِی الفَاء والعَین نَحو فَلَق وفَلَذ وَفَلَی یَدُلُّ علی الشَق والفَتح وتَعریف المُفْلحِین لِلدلَالة عَلی أَنَّ المُتَّقین هُم النَّاس الَّذین بَلغَک أَنّهم المُفلحُون فی الآخِرة أَو الاشَارةِ الی مَایَعرفهُ کُل أَحدٍ مِن حقِیقة المُفلحِین وخُوصیَاتهم)

**ترجمه:** او مفلح په حاء سره او په جیم سره (مفلج) هرهغه چاته وائې چې په خپل مطلوب کې کامیاب وي ګویا مفلح هغه څوک دی چې د هغه لپاره طریقې د کامیابی ټولې خلاصې وي دا ترکیب او هرهغه لفظ چې د ده سره په فاء اوعین کې شریک (مشابه) وي لکه فَلَق فَلَذ و فَلی دا په شق او په فتح دلالت کوي دا تعریف د مفلحین په دې خبر دلالت کوي چې متقین هم هغه خلک دي چې تاته ئې خبره رسیدلی ده چې هم دوئ په آخرت کې کامیاب دي اویاپه دې الف لام کې دیته اشاره ده چې ټول خلک حقیقت او خصوصیات د مفلحینو پیژني.

**تشریح: دریم بحث**: دلته مصنف د مفلح لغوي تحقیق کوي هغه دا سې د مفلح او مفلج په حاء سره وي او که جیم سره وي د دواړو معنی ده فائز بالمطلوب اصل معنی خو د مفلح داده چې شونډه ئې شکیدلي وي خو چې سړی اصل مطلوب ته ورسیږي نو ټول مشقتونه او تکلیفونه ئې شکیږي او هرهغه ترکیبونه چې په فاء او عین کلمه کې له مفلح سره شریک وي لک فَلَقَ فَلَذَ او فَلَی ټول په شق او فتح دلالت کوي.

**وتعرف المفلحون**: مفلحون معرفه بالام ئې ذکر کړو ځکه دلته دا خبره زده کړه چې شیخ عبد القادر جرجاني رحمه الله وایي که یو سړي طرفته د انطلاق تسبت کوي نو دا دوه صورتونه لري .زید منطلق هم ویلی شي بغیر له الف لام نه اوزید المنطلق هم ویلی شي په دواړو کې د زید صفت انطلاق دی په دې کې دواړه مثالونه متفق دي خو اختلاف په نوعیت کې دی اول مثال به هغه سړی مخاطب وي بلکل له صفت د انطلاق نه بې خبره وي او د دویم مثال مخاطب هغه سړی وي چې په دې خو پوهیږي چې صدور د انطلاق خو شوی خو په دې نه وي خبر چې له چا څخه شوی.

نو دلته الله جلّ جلاله المفلحون معرفه بالام ذکرکړو ځکه که نکره (بغیر الف لام) ئې ذکر کړی وائې نومونږ به دلته نه په فلاح خبر وای اونه به ئې په صدور نسبت خبر وائې چې څوک مفلحین دي نو چې معرفه ئې ذکرکړو نومعلومه شوه چې په فلاح خبریو ځکه په آخرت کې دوه ډلې دي یوه د فلاح والا ده اوبله د غیرفلاح والا ده خو په انتساب نه یو خبر چې دا ده فلاح والا ډله چاته منسوبه ده نو الله جلّ جلاله په دې انتساب پوهه کړو چې اولئک ته منسوبه ده ای موصوفین بصفات مذکوره خو دا په هغه صورت کې چې الف لام عهدي خارجي شي او که الف لام جنسي شي بیا به اشاره وي هغه څه ته چې هرسړی ئې پیژني له حقیقت دمفلحینو نه اوله خصوصیاتو دمصلحینو نه یعني جنس معلومه او حقیقت معلومه طرفته به اشاره شي .

## (اختصاص د هدايت او فلاح تر متقينو)

**تفسیربیضاوي**: ( تَنبِيه! تأَمّل كَيف نَبَّه سبحانه تعالى عَلى إختِصاص المُتَّقين بِنَيل مَا لَايَنالهُ كُل أَحدٍ مِّن وُجوهٍ شَتّى وبِناءُ الكَلَام عَلى اسمِ الاشارَةِ لتَعلِيل مَع الايجَاز وتَكرِيرِه وتَعريف الخبرِ وَتَوسّط الفعل لإظْهار قَدرِهم وَالتَّرغيب فى إقتِفاء أَثرهم وقَد تَشبت به الوَعِيديّة فى خُلودِ الفُسّاق مِن اهل القِبلَة فِى العَذاب وَرَدّ بِانّ المُراد بالمُفلحين الكَامِلِين فى الفَلاح ويَلزمُه عَدم كمَالِ الفَلاح لمَن لَيس عَلى صِفَتهم لَا عَدم الفَلاح لهُ رأسًا).

**ترجمه**: خبردار مخاطبه!: ته فکر وکړه څنګه الله جلّ جلاله تنبه ورکړې ده په خاص کولو د متقینو په رسیدلو د نعمت هغې حصې ته (چې على هدًى او المفلحون) چې هغې حصې ته هیڅوک نشي رسیدلي په مختلفو طریقو سره (هغه مختلفې طریقې دادي) چې بناء د کلام ئې په اسم اشارې سره کړي ده سره د اختصاص نه لپاره د تعلیل اوتکرار د اسم اشارې اوخبر (المفلحون) ئې معرفه بالام ذکرکړی او راوړل دضمیر د فصل په منځ کې لپاره داظهار دقدر د متقینو او د دوئ په نقش قدم باندې د روانیدلو د شوق ورکولو لپاره او وعیدیه [1] فرقې په دې دلیل نیولی چې فاسقان د اهل قبلې به همیشه په عذاب کې وي د دوئ د استدلال په دې طریقې رد کړی شوي دی چې په مفلحینو سره کامل فی الفلاح مراد دي او په انتفاء د یو وصف سره د کمال فلاح عدم لازمیږي د هغه چا لپاره چې په دې ټولو صفاتو سره متصف وي عدم فلاح بالکلیة ورلره نه لازمیږي.

**تشریح**: **څلورم بحث**: په دې آیت مبارک کې د تاکید او حصر مختلف کلمات استعمال شوي دي! په دې خبره خبر داری دی چې کوم نعمتونه په دنیا او اخرت کې تر متقینو پورې خاص شوي دي لکه هدایت په دنیا کې ترمتقینو پورې خاص کړی شوی او فلاح په آخرت کې ترمتقینو پورې خاص کړی شوه هغې ته بل هیڅوک نشي رسیدلی او د دې اختصاص لپاره درې څلور ذرایع دي

(۱) **ذریعه**: بناء د کلام په اسم اشارې باندې وشوه على هدًى ئې مرتب کړو په اولئكـ او هُمُ

---

(۱):- وعیدیه نه مراد معتزله اوخوارج مراد دي او دوئ ته حشویه هم وائي او وعیدیه ورته ځکه وايي چې دوی په وعیداتو کې له افراط نه کار اخلي مرتکب د کبیرې ته کار او مخلد فی النار وایي

المفلحون ئې مرتب کړو په اولئک نو اولئک علت ترمتقینو پورې خاص دی نو معلول به هم ترمتقینو پورې خاص وي ځکه مونږ مخکې ویلي وو چې په اولئک اسم اشاره کې ذات مع الوصف ته اشاره ده نو دا وصف علت لپاره دحکم نو صفات مذکوره علت او هدایت دنیوي او فلاح اخروي معلول علت او معلول دواړه تر متقینو خاص شول.

(۲)**ذریعه**: چې اولئک ئې مکرر ذکرکړو تکرار دعلت په تکرار دمعلول دلالت کوي نو هر معلول مستقل مستقل ترمتقینو پورې خاص شو.

(۳)**ذریعه**: په منځ کې ئې هُمْ ضمیر فصل راوړي اوخبرئې معرفه راوړي فائدې د اختصاص دوه دي (۱) لاظهار قدرهم (۲) والترغیب فی اقتفاء اثرهم

(۴)**ذریعه**: خبرېې معرفه بالام ذکر کړی او داسې خبر انحصار په مبتداء باندې وي.

**پنځم بحث**: وقَد تَشبت به الوَعِیدیّة : په دې پنځم بحث ذکر کوي هغه داسې چې په دې ایت کې اختصاص او انحصار د متقین په هدایت باندې دي نو معلومه شوه چې غیرمتقین په هدایت باندې نه دې اومتقین په آخرت کې مفحلین دي معلومه شوه غیرمتقین مفلحین نه دي ځکه تخصیص الشيء علی الشيء مستلزم وي نفي د ماعدا لره په دې دلیل استدلال کړی معتزله او خوارجو چې فاسقان د اهل قبله به همیشه په جهنم کې وي ځکه له فلاح نه جنت مراد دی او دا خاص دی تر متقیانو پورې. قاضي صیب د دوي دا دلیل رد کړی دی هغه داسې چې دلته له مفلحینونه کاملین مراد دي او کامله کامیابي دا ده چې دخول اولي ئې جنت ته وشي ا رلازم له دې سره داده چې کامله فلاح فاسقانو لره نشته نو دخول اولي ورلره نشته او دا نه ده لازمه چې بلکل فلاح ورلره نشته.

(انّ الّذین کَفَرُوا سَوَآء عَلَیْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَایُؤْمِنُوْنَ)(۱) .

**تفسیربیضاوي**: (اِنَّ الّذِیْنَ کَفَرُوْا) لَمّا ذَکرَ خاصَّة عِبَاده وَخُلاصَة أَولِیائِه بِصفاتِهم أَلّتی أَهلتم الهُدی والفَلاح عَقِبهم بِاضْدَادهِم العُتَاةُ المَرَدَةَ الّذِین لَایَنْفَع فِیهم الهُدی ولَایُغنِي عَنهُم الآیات وَالنُّذُر)

**ترجمه**: هرکله چې الله جلّ جلاله مخکې خاص عباد او خالص دوستان خپل ذکرکړل له هغې صفاتو سره په کومو صفاتو ئې چې دوئ اهل د هدایت گرځولی وو نو د ...ئ نه روسته ئې د دوئ

---

(۱):- سورة البقرة : آیة (٦)

ضد خلک ذکر کړل چې سرکش او حد نه تیریدونکي دي هغه خلک چې هغوئ ته هدایت نفع، نه رسوله او آیاتونو اوویره ونکو رسولانو فائده دوئ لره نه ورکوله.

**تشریح**: په دې ایت کې مصنف پنځه بحثونه کوي (۱) بیان د مناسبت (۲) د اِنّ د عامل کیدلو حیثیت (۳) د الذین د مراد متعلق (۴) د کفر حقیقت (۵) د معتزله و استدلال.

**اول بحث**: بیان د مناسبت دادی چې مخکې الله تعالی د خپلو خاصو بندګانو تذکره وکړه کوم چې په کامل هدایت او کامله فلاح موصوف و له هغې روسته یې د هغوی مقابل خلک ذکر کړل د کومو په باره کې چې وایي داسې سرکشه او د خیر نه لرې دي چې نه ورته هدایت فایده ورکوي نه د الله جل جلاله وعیدات نو دلته مناسبت بذکر الاضداد دی او دا په دې خاطر ذکر کوي چې د مومنانو حال روښانه ځکه فرمایي وبضدها تتبین الاشیاء

**سوال**: په دې عبارت کې قاضي صیب خاصةعباده ولې په خلاصة اولیائه باندې مخکې کړه؟

**جواب**: مخکې جمله په اعتبار د طرفینو یعنې مضاف او مضاف الیه باندې اشرفه وه یو طرفته مخصوص والی ده او بل طرفته عباد والی ده په روستنی جمله کې یو طرفته مخلص والی ده اوبل طرفته اولیائه والی ده نو مخصوص والی په نسبت سره مخلص والي ته اشرف دی ځکه د مخصوص والي نسبت الله جلّ جلاله ته کیږي او د مخلص والي نسبت عبادو ته کیږي اوبل طرف عبادوالی اشرف دی په نسبت اولیائه والي ته ځکه عبادوالی د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په صفاتو کې راځي لکه (سُبْحٰنَ الَّذِیٓ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ) او ولایت اګرکه د نبی علیه السّلام صفت کې هم دی نو الله جلّ جلاله ئې دابراهیم (عَلَيْهِ السَّلَامُ) په صفاتو کې ذکرکوي ابراهیم خلیل الله، خلیل ولي ته وائې لو د ابراهیم علیه السلام مرتبه هم له نبي علیه السلام نه ښکته ده او بل په عبدیت کې ښکته والی دی او انسان چې څومره ځانته ښکته وائې هغومره اوچته مرتبه لري او په الله جل جلاله کې اوچت والی دی نو په عبد کې لوی والی نقصان دی او په الله جلّ جلاله کې ښکته والی نقصان دی نو ځکه یې خاصة العباد په خلاصة الالیاء مقدم کړ.

**عتاة**: عتاة جمع د عاتي ده او عاتي اسم فاعل د عتو دی او عتو د باب نصر ینصر څخه په معنا د تغیان سره دی.

**مردة**: مرده جمع د مارد ده او مارد په معنا د مالا یعلق بخیر اصلاً یعني هغه کس چې له خیر سره یې بیخ تعلق نه وي.

## (بحث د عطف)

**تفسیربیضاوی:** (وَلم يَعطِف قِصَّتهم على قِصَّه المُؤمنينَ كمَاعَطف في قولِه تعالى (اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ وَاِنَّ الْفُجَارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ [1]) لتَبَاينهما في الغَرض فانّ الأُولى سِيقَتْ لِذكرالكتَاب وَبَيانِ شأنه وَالأخرى مَسُوقة لِشرح تَمرّدهم وَانْهَماكهِم في الظَّلال)

**ترجمه:** او عطف ئې نکړه قصه د دوئ په قصه دمؤمنانو لکه څنګه چې عطف شوی په دې قول د الله تعالى كې (ترجمه) بیشکه نیکان به په نعمتونو کې او فاجران به جهنم کې وي له وجې د تباین د دوئ په غرض کې ځکه دا اولنی جملې سیاق (چلول) لپاره ذکر دکتاب اولپاره دبیان دشان دکتاب شوی دی او دروستنی جملې سوق لپاره دوضاحت دسرکشی او تمرد اوپه ګمراهی کې د انهماک (دخول) دکافرانو لپاره شوی.

**سوال:** دا آیت ئې په مخکې آیت ولې ورعطف نکړو اوحال داچې په دواړوکې صفات د رجالو ذکر کیږي چې مخکې دمؤمنانو صفات وو اوروسته د کافرانو صفات دي نو دواړو په منځ کې تضاد دی اوپه مختصرالمعاني کې تاسو ویلي په باب فصل او وصل کې چې ددوه جملو په منځ کې تضاد راشي او تضاد جامع وهمي وي چې یو ضد دې ذهن ته راشي نو بل ضد خامخا ذهن ته راځې لکه بوش دې چې ذهن ته راشي نو ملامحمد عمر رحمه الله خامخا ذهن ته راځې په دې ځای کې خلک عطف کوي لکه الله جلّ جلاله فرمائي: (اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ) په دې جملو کې تضاد دی اودا تضاد جامع وهمي دی اوګوره عطف پکې وشو.

**جواب:** دلته عطف ځکه ونشو چې د دې جملې له ما قبل سره کمال انقطاع ده او په کمال انقطاع کې فصل یعنې عدم عطف متعین دی او کمال انقطاع په دې دول ده چې د ماقبل قصې غرض کتاب او د هغې د اوصافو تذکره ده او د دې روستنی قصې غرض د کفارو او د هغوی د اوصافو تذکره ده نو د تباین في الاغراض په وجه کمال انقطاع پیدا شوه[2]

---

(1):- سورةالانفطار: آية (۱۳)

(۲) كمال قال السكاكي : ويترک العطف للانقطاع وان كان بينهما جامع لا يلتفت اليه لبعد المقام عنه ومن هذا القبيل قطع ان الذين كفروا لكون ماقبله حديثا عن القرأن وان ماشانه كيت وليت وهذا حديث عن الكفار و تصحبهم في كفر (توضيح الحاوي)

او بل دا آيت په ان الابرار لفي نعيم باندې مه قياس کوه ځکه دا قياس مع الفارق دی.

عطف القصة على القصه دې ته وايي چې د متعددو جملو عطف په متعددو جملو باندې وشی خو هغه وخت چې ټولې جملې په خپلو کې په غرض کې سره متحدې او متفقې وي.

**تقابل**: د تقابل په اقسامو کې تقابل د تضاد او تقابل د عدم والملکه هم شامل دی.

**تقابل تضاد**: دې ته وايي: کيدل د دوه وجودي متقابلو شيانو په داسې شان سره چې تعقل احدهما مستلزم اخر لره نه وي لکه سواد او بياض (چې يو ذکر شي بل دې خامخا ذهن ته راشي)[1]

**تقابل عدم والملکه**: دېته وايي: کيدل د دوو شيانو په داسې شان سره چې وجود داحدهم مستلزم وي عدم داخر لره لکه عمي او بصر.[2]

اوس په دې کې اختلاف دی چې د کفر او ايمان په مابين کې تقابل تضاد دی او تقابل عدم والملکه دی بعض د تقابل تضاد قايل دي او بعض د تقابل عدم والملکه، په دې د ټولو اتفاق دی چې ايمان عبارت دی له تصديق قلبي بما جاء به النبي (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) لکن د کفر په تعريف کې اختلاف دی بعض يې داسې تعريف کوي عدم بما جاء به النبي (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) نو د دوی په نزد د کفر او ايمان په مابين کې تقابل د عدم والملکه دی او بعض يې داسې تعريف کوي جهود القلب بما جاء به النبي (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د دوی په نزد بيا تقابل د تضاد دی.

---

(۱) دستور العلماء - جامع العلوم في اصطلاحات الفنون (۱/ ۲۳۰)

تقابل التضاد: كَون الشَّيْئَيْنِ الوجوديين مُتَقَابلين بِحَيْثُ لَا يكون تعقل كل مِنْهُمَا بِالْقِيَاسِ إِلَى الآخر سَوَاء كَانَ بَينهمَا غَايَة الْبعد وَالْخلاف كالسواد وَالْبَيَاض أَولا كالحمرة والسواد وَيُقَال لَهما الضدان المشهوريان. وَقد يشْتَرط فِي الضدين أَن يكون بَينهمَا غَايَة الْبعد وَالْخلاف ويسميان بالضدين الحقيقيين كالسواد وَالْبَيَاض.

تقابل التضايف: كَون الشَّيْئَيْنِ الوجوديين مُتَقَابلين بِحَيْثُ يكون تعقل كل مِنْهُمَا بِالنِّسْبَةِ إِلَى الآخر كالأبوة والبنوة المتقابلتين بِاعْتِبَار وجودهما فِي الْخَارِج فِي مَحل وَاحِد فِي زمَان وَاحِد من جِهَة وَاحِدَة على مَذْهَب من قَالَ بِوُجُود الإضافات فِي الْخَارِج وَأما على مَذْهَب من قَالَ بعدمهما مُطلقًا التقابل بَينهمَا بِاعْتِبَار اتصاف الْمحل بهما فِي الْخَارِج.

تقابل الْإِيجَاب وَالسَّلب: كَون النسبتين متقابلتين بِحَيْثُ يكون إِحْدَاهمَا إيجابية وَالْأُخْرَى سلبية مثل زيد إِنْسَان وَزيد لَيْسَ بِإِنْسَان.

(۲) دستور العلماء - جامع العلوم في اصطلاحات الفنون (۱/ ۲۳۰)

تقابل الْعَدَم والملكة: كَون الشَّيْئَيْنِ بِحَيْثُ يكون أَحدهمَا عدم الآخر عَن مَوْضُوع قَابل للوجودي كالعمى وَالْبَصَر فَإِن الْعَمى عدم الْبَصَر عَمَّا من شَأْنه أَن يكون بَصيرًا.

## ( بحث دانّ )

**تفسیربیضاوي**: ( و اِنّ) منَ الحُروف الّتی تَشابهَه الفِعل فی عَدد الحُروفِ وَالبِناء عَلی الفتح وَالزُوم الأَسماء وَاعطاءِ معانِیه وَالمُتعدّی خَاصة فِی دُخولهَا عَلی اِسمَین ولذلک أَعملتْ عَملهُ الفَرعِی وهُو نصب الجُزءالأَوّل ورَفعُ الثَانی ایذانًا بأَنّه فَرع فی العَمل دَخِیل فِیه)

**ترجمه**: او اِنّ د هغې حروفو څخه دی چې په عدد دحروفو کې ، په فتحې سره مبنی کیدلو کې، اسمآء وو سره د لزوم له وجې او دفعل معاني اسم ته ورکولو کي له فعل سره مشابه ده اوله فعل متعدي سره مشابه ده خاص کر په دخول د دې حروفو په دوه اسمونو له دې وجې عمل فرعي ورکړی شو اوهغه داول جزء ته نصب او دوهم جزء رفع ده په دې کې د دې خبري خبرداری دی چې دا حروف په عمل کې فرع دي خو د فعل سره په عمل کې دخل لري.

**تشریح: دویم بحث**: دادویم بحث ذکرکوي چې بحث داِنّ دی ،په دې د ټولو نحاتو اتفاق دی چې حروف مشبه بالفعل په دوه اسمونو داخلیږي اول ته نصب او دوهم ته رفع ورکوي او په دې کې هم اتفاق دی چې اول جز ته نصب د همدې حروف په وجه حاصل دي خو اختلاف په دې کې دی چې دویم جز ته رفعه دې حروفو ورکړې او که نه ؟

انّ اسم ته نصب ورکوي او خبرته رفع ورکوي دا عکس دفعل ماضي متعدي (فعل) دی ځکه ماضي متعدي (فعل) اول اسم ته رفع ورکوي او دوهم اسم ته نصب ورکوي وجه داده چې اِنّ دفعل سره مشابه ده په عدد دحروفو کې ماضي کله ثلاثي وي کله رباعي وي او کله خکاسي وي دغه سې حروف مشبه بالفعل هم کله ثلاثي وي لکه انّ کله رباعي وي لکه لعلّ اولکه خماسي وي لکه لکنّ دغه سې بنا علی الفتحه کې هم له ماضي سره مشابه دی ماضي هم مبنی په فتحې سره وي او داحروف هم مبني دي په فتحې سره وي دغه سې په دخول علی الاسمین کې هم دفعل ماضي متعدي سره مشابه دی نو د دې مشابهت له وجې عمل دفعل ماضي ورکړی شو خو دومره ده عمل

د فعل ماضي اصلي دی او حروفو مشبه بالفعل ته مو عمل فرعي ورکړو چې اسم اول ته نصب او اسم ثاني ته رفع ځکه مشبه په مرتبه کې کم وي له مشبه به نه چې فرق راشي د فرع له اصل سره.

**تفسيربيضاوي**: ( وَقَال الكُوفِيون أَلخَبر قَبل دُخولهَا كَان مرفوعًا بالخبرِيَّة وهِي بَعد بَاقِيةٌ مُقْتضِية للرفْع قِضِيَةً للاستِصحابِ فَلايَرفعهُ الحَرف وَأجيبَ بأَنّ اقتِضاء الخَبَريَّة الرَّفع مَشرُوطٌ بالتجرد لتَخَلُّفه عنْها فى الخَبركَان وَقد زَال بِدخولهَا فتَعَيّن أَعمالُ الحُروف)

**ترجمه**: کوفيان وائي چې خبر مخکې د دخول د انّ نه په سبب د خبريت مرفوع وو او دا روسته پورې په رفع باقي دی او د رفعي تقاضا کونکی دی د استصحاب (هو ابقاء الشئ على ماكان) الحال دتقاضا له وجې نه نو دا خبر دغه حرف انّ نه دی مرفوع کړی دوئ ته داجواب ورکولئ شي چې تقاضا دخبريت درفع په تجريد باندې مشروطه ده(چې دا خبر به خالي وي له عواملو لفظيه و ځخه) او بل د وجې تخلف او مخالفت د دغې رفع د دغه خبريت نه په خبر د کان کې او دا رفع په د خول دكانَ ختمه شوي(که رفع ذاتي وای په خبرنو په خبر دکان به باقي پاتې وه ) ده نو عمل د حرف متعين شو.

**تشريح**: دلته په عمل د انّ کې هغه اختلافي بحث کوي، په عمل دانّ کې اختلاف دی يو دبصرينو مذهب دی اوبل دکوفينو دی.

(۱) **بصرين**:وائي چې په اِنّ زيدٌ قائمٌ کې زيد ته نصب او قائم ته رفع اِنّ (حروف مشبه بالفعل)ورکړې ده.

بصرين دليل دا وايي چې دا حروف له فعل ماضي سره مشابهت لري مشابهت عامه او خاصه واړه عامه مشابهت خو دادی چې فعل ثلاثي، رباعي،او خماسي راځي دغسې حروف مشبه بالفعل هم راځي ماضي مبني بر فتحه وي دا حروف هم مبني بر فتحه وي او مشابهت خاصه دادی چې فعل ماضي متعدي په دوه اسمونو باندې داخليږي يو فاعل وي بل مفعول دغسې دا حروف هم په دوه اسمونو داخليږي چې اسم او خبر ورته ويلی شي ، نو د فعل متعدي دوه عمله و يو اصلي او بل فرعي اصلي دا دی چې او سم مرفوع او دويم منصوب فرعي دادی چې اول اسم منصوب او

دویم مرفوع نو فعل اصل و ځکه مشبه به و نو عمل مو هم اصلي ورکړو او دا حروف فرعه و ځکه مشبه و نو عمل مو هم فرعه ورکړ.

(۲) **کوفین**: وائي چې په اِنّ زيدًقائمٌ کې زيد ته نصب انّ ورکړی، خو رفعه په قائمٌ کې ذاتي ده انّ نه ده ورکړي.

کوفین دلیل دا وايي چې دا خبر مخکې له دخول د دې حروفو نه مرفوع بنا برخبریت و کله چې داحروف ورباندې داخل شول بیا یې هم خبریت باقي دی او تقاضا د رفعې کوي او دا ځکه چې اصل په اشياءو کې استصحاب الحال (شی په خپل حالت پاتي کیدل دي) نو دا خبر مرفوع په عامل معنوي دی نه په دې حروفو.

لحو مصنّف دبصرینو مذهب ته ترجیح ورکوي او دکوفینو دلیل رد کوي هغه داسې چې تقاضا دخبریت درفع هغه مشروطه ده په تجرید او خلوي دعوملو لفظیه وو نه لکه مونږ وایو مبتداء اوخبر مرفوع دي په عامل معنوي سره چې هغه خلوه ده له عواملو لفظیه وو نه اوبل که په دې خبر کې رفع ذاتي وائې نو خبر د کان به بیا ترینه نه مخالف کیده او هغه منصوب وي نو معلومه شوه چې دا په دې عامل لفظي سره مرفوع دی.

## (بحث فائده د انّ)

**تفسیربیضاوي**: (وَفَائدتها تَاكيدُ النِسْبة وتَحقِيقهَا ولِذلک يَتَلَقَّى بهَا القَسم ويُصَدَّربها الأجوِبَة وتَذكر فى مَعرضِ الشَّک مثل قوله تعالى (وَيَسْئَلُوْنَکَ عَنْ ذِي القَرْنَيْنِ قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا انَّ مكَّنَّا فى الارضِ [۱]) وَقَالَ مُوْسَى يَفِرْعَوْنَ اِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعلَمِيْنَ [۲])

**ترجمه**: او فائده د اِنّ تاکید د نسبت دی اوتحقیق د نسبت دی له دې وجې نه په اِنّ سره جواب قسّم یوځای کیږي اوعام جوابونه هم په انّ سره مصدرکیدلی شي اوکله په مقام د شک کې هم

(۱):- سورة الكهف : آية (۸۳)

(۲):- سورة الاعراف: آية(۱۰٤)

ذکر کيږي لکه دا قول د الله تعالى (ترجمه) اوله تانه پوښتنه کوي دايهوديان په باره د ذولقرنين[1] کې ته ورته ووايه چې زرده چې زه څه اولولم تاسو ته دده بيان نه يقينًا مونږده ته په زمکه کې طاقت ورکړي وو اوهم دغه سې دا قول دالله جلّ جلاله (ترجمه) او ويلي وو موسى (عَلَيۡهِ‌ٱلسَّلَامُ) اي فرعون بيشکه زه درب العالمين له لوري رسول يم.

**تشريح**: دلته د د انّ فايدې بيانوي.

يوله دغو فوائدونه تاکيد النسبة لکن تاکيد مراد تاکيد اصطلاحي نه دى بلکې تاکيد په توابعو کې دى يعنې تاکيد لغوي چې تحقيق النسبة دى

**تاکيد وائې**: التاکيد يکون بتکرير اللفظ الاول بيا تاکيد په دوه قسمه دى (١) لفظي (٢) معنوي تاکيد. لفظي په تکرير دلفظِ اول سره راځي لکه زيد زيد اوتاکيد معنوي په الفاظو معدودو محصوره وو سره راځې هغه الفاظ دادي نفس، عين، کلا، وکلتا، اجمعو، اکتع، ابتع، ابصع، اوس انّ سره هم تاکيد راځې خو تاکيد لفظي وى نه تاکيد معنوي.

او بله فائده دا ده چې انّ په هغه ځاى کې مستعمليږي چې ستا د مخاطب شکي وي نوته ئې ورته په کلام کې د تاکيد لپاره راوړې يا ستا مخاطب منکر دى نوته ورته په کلام کې اِنّ راوړې نو کلمه د اِنّ لپاره د ازالې دشک اوتردد ده اوهم لپاره دازالې دانکاردى. له دې وجې نه په جوابونو د سوالاتو کې راوړلى شي ددې لپاره د مثال ذکر کړى (وَيَسْئَلُوْنَکَ عَنْ ذِی الْقَرْنَيْن) او په مقام د شک کې راوړلى شي مثال لکه(وَقَالَ مُوْسَی يَفِرْعَوْن اِنِّی رَسُوْلٌ مّن رّبّ الْعلَمِيْنَ)

**تفسيربيضاوي**: ( قال المُبَرّد قولک عبدالله قَائم أَخبارٌ عن قِيامه وَانّ عبدالله قائم جواب سائِل عنْ قيامِه وانّ عبدالله لقائم جواب منکر لقيامه)

---

(١):- ذوالقرنين : خپل نوم ئې اسکندر اعظم دى د اسکندر په نوم دوه بادشاهان تيرشوي (١) اسکندر رومي (٢) اسکندر يوناني په قرآن کې د يوناني ذکردى ذوالقرنين ورته ځکه وائې چې ده مشرق اومغرب ليدلى وو يا دده په تاج کې دوه ښکرونه وو او دا له هغې جملې څخه دى چې په توله دنيا ئې بادشاهي کړې ده په توله دنيا څلورو کسانو بادشاهي کړې دوه مسلمانان (١) سليمان عليه السلام (٢) ذولقرنين او دوه کافرانو (١) نمرود (٢) بخت نصر.

**ترجمه**: مبرد ویلي دي چې دا قول ستا چې عبدالله قائم دی د؛ د عبدالله د قیام نه خبرورکول دی او انّ عبدالله قائم په جواب د سوال دسائل کې دی له قیام نه او انّ عبدالله لقائم په جواب د منکر د قیام دعبدالله کې دی.

**تشریح**: دلته د امام مبرد په قول د دې لپاره نقلوي چې په دې خبره استدلال وکړي چې انّ لپاره د تاکید النسبة مستعملیږي .مبرد رحمه الله وائي چې نفس اخبار عبدالله قائم خالی الذهن مخاطب ته ویل کیږي او اِنّ عبدالله قائم دا په سوال دمخاطب کې ویل کیږي چې آیا عبدالله ناست دی که ولاړ دی نوته دده تردد په دې سره زائل کې او اِنّ عبدالله لقائم دا لپاره د مخاطب منکر ویلي شي لکه یوکس ووائي چې عبدالله بازارته تللی اوتاپه مسجدکې لیدلی وي نوته به دده انکار په دې زائله کوي چې انّ او لام تاکید به دواړه ورته راوړې ، نوچې څومره شکوک زیاتیږي دومره به تواکید زیاتیږي.

ابوالعباس کیندي[۱] یوفلسفي وو ده یوه ورځ مبرد ته وویل چې زه په کلام د عربوکې حشوه پیدا کوم هغه دا چې کله وائې زیدقائم او کله زید لقائم او کله انّ زید قائم اوکله انّ زید لقائم اوکله والله انّ زید لقائم نو دټولو یو مطلب دی خو په څوجملو ئې اداکوي نو والله او اِنّ او لام درېواړه لغوه شوه. امام مبرد صاحب د مفصل ورته وویل چې په کلام د عربوکې حشوه نشته د دې هرې جملې خپل خپل ځای دی لکه زید قائم خالی الذهن مخاطب ته ویل کیږی او انّ زیدقائم شکي مخاطب ته ویل کیږي استحبابًا اومنکرته وجوبًا بیا چې څومره انکار زیاتیږي دومره تواکید زیاتیږي.

**تفسیربیضاوي**: ( وَتَعریفُ المَوصول امّا لِلعهدِ والمُراد به ناس بأعيانِهم كأبي لهب وابي جهل والوليد بن مغيرة وأخباراليهُود أَولْلجِنس متنَاولًا من صَمَّم على الكفْر وغَيرهم فَخُصَّ منْهم غَير المُصِرّين بمَا أَسنداليهِ )

(۱):- ابو العباس احمد بن اسحاق الجرمقي نوموړی د فلسفي کاتب دی کوم چې فلسفه په یوناني ځخه دمأمون الرشید په امر عربي ژبې ته نقل کړه.

**ترجمه**: په (الذين كفروا) کې الف لام تعريفي يا لپاره د عهد دی اومراد په دې سره خاص خلک دي لکه ابولهب ابو جهل او وليدبن مغيره او اخبار د يهودو اويا الف لام لپاره دجنس دی متناول اوشامل دی هغه چاته چې په کفر ئې دوام کړی دی او هغه چالره هم متناول دی چې دوام ئې نه دی کړی اوخاص کړی شو له دوئ نه غیرمصرّين په هغه الفاظو کوم چې دې موصول (الذين) ته مسند شوي.

**تشریح: دریم بحث**: دلته دریم بحث د الذين موصول متعلق کوي.

موصول په افاده او د تعریف او استعمالاتو اربعه وکې د معرف بالام په شان دی، لام تعریف کله د جنس لپاره وي کله داستغراق اوکله دعهدذهني اوکله عهدخارجي نو دغسې موصول هم وي، اوس دلته کوم قسم مراد دی دا وائې چې جنس نه دې مراد ځکه جنس کې اشاره وي حقیقت ته او دلته داروسته حکمونه د حقیقت د کفرسره تعلق نه لري او عهدذهني هم نه دی مراد ځکه په عهدذهني کې فرد مبهم مراد وي اوتقبيح د فرد مبهم عبث وي نو يا لپاره دعهد خارجي دی چې معهود کفار ترینه مراد دي لکه ابولهب ابوجهل وليدبن مغيره اوعلماء ديهودو.

اويا لپاره د جنس دی دجنس نه مراد استغراق دی يعنې په ضمن دټولو افرادو کې به مرادوي چې چا دوام په کفر کړی اوکه چا دوام پرې نه وي کړی ټول به ترینه مرادوي.

**سوال**: ته وائې چې دواړو ته ورشامليږي چې دوام على الكفر ئې کړی وي اوکه نه ئې وي کړی له دوئ نه خو ډیرو بیا روسته ایمان راوړی وو لکه حضرت عمر(رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) وغيره له هغوی سره څه کوې ؟

**جواب**: وخصّ منهم غيرمُصرّين يو ازې مُصرّين پکې پاتي شو.

**سوال**: خصّ چې په خپل حقیقت پاتي شي نومُصر مستثناء کړی شو غير مصر پکې پاتي شو ځکه څوک چې خاص کړی شي نور به ترينه مستثناء کوي اوحال دا چې دلته مُصر پاتي دي؟

**جواب**: ناکت جواب کړی دی چې خصر متضمن دی معنی د اخرج لره يعنې او يستلى شو ترينه غير مُصِر قرينه ورته بما اسناد اليه يعنې (بِمَا) په هغه خبرچې (سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ) مسند شوی دی موصول (الّذين) ته[1].

**تفسيربيضاوي**: ( وَالكُفر لُغةً سترُ النعمَة وأَصله الكَفْر بالفتح وهُو السَّتر وَمنه قِيل لِلزُّراع ولِلْيْل كافرٌ ولِكُمام الثَّمرة كَافُور وفى الشَّرع انْكارُ مَاعَلم بالضَّرورةِ مَجيُ الرَّسول الله صلّى الله عليه وسلّم به وانّمَا عُدَّ منه لُبس الغيَّار وشَدُّ الزّنار ونحوهما كفرًا لأَنّها تدُلّ على التّكذيبِ فانّ من صَدَّق الرسول صلّى الله عليه وسلّم يَجْترئ عليْها ظاهرًا لَا انّها كفر فى أَنفسها)

**ترجمه**: اوکفر په لغت کې د نعمت پټولو ته وائي او اصل دکفر دکَفَر نه مأخوذ دی په فتح دکاف سره او دا استرته وائي او له دې وجې نه زميندار او شپې ته کافر ويل کيږي او له دې وجې نه غلاف دميوې ته کافور ويلي شي او په شريعت کې له هر هغه شي نه انکار چې رسول الله صلّى الله عليه وسلّم راتک ورباندې کړی وي معلوم بالبداهة (بالقطع واليقين) وي او دغيار اخستل او يا زنار تړل او په شان د دې علامات دکفر شمار کړی شوي دي ځکه :ا هم په تکذيب د حق دليل دی ځکه ځوک چې د رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) تصديق کوي نو ښکاره په علاماتو د کفر جرأت نه کوي دا کفر حقيقت فى نفسها نه دی.

(۱):- عبد الرحمن بن جوزي رحمه الله فرمائي: د دې آيات په نزول کې څلور اقوال دي (۱) ابو العالية فرمائي له دينه د احزاب قائدين او مشران مراد دي (۲) امام ضحاک فرمائي له دينه ابوجهل او د ده کورنۍ پنځه کسان مراد دي(۳) ابن السائب فرمائي له دينه ديهودو يوټولى مراد دي له هغوی نه يو حي بن اخطب دی امام مقاتل فرمائي له دينه مراد دعربو مشرکين دي کومو چې ايمان نه دی راوړی لکه ابوجهل ابوطالب ابولهب وغيره (زادالمسير: ۱ / ۲۹) دغه راز حافظ ابن کثير له علي بن ابي طلحه هغه ابن عباس اوهغه له رسول الله صلّى الله عليه وسلّم څخه روايت کوي فرمائي چې رسول الله صلّى الله عليه وسلّم په دې کې ډير حريص وو چې ټول خلک ايمان راوړي اوټل په همدې کوشش کې وو نو الله جلّ جلاله خبروورکړ ايمان به هغه څوک راوړي چې الله ځکې په ازل مؤمن ليکلى وي اوهغه څوک ايمان نشي راوړی چې په ازل کې الله شقي ليکلى وي (تفسير ابن کثير: ۱ / ٤٥)

## د کفر تعریف

**تشریح: څلورم بحث**: دا بحث د کفر متعلق دی کفر په دوه قسمه دی: یو حقیقت لغوي، او بل حقیقت شرعي، حقیقت لغوي نعمت پټولو ته وایي د حقیقت شرعي یو تعریف امام غزالي رحمه الله کړی فرمایي : د کفر حقیقت شرعي تعریف تکذیب الرسول فی ما جاء به النبی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) او د ایمان تعریف په تصدیق باندې کوي ای تصدیق الرسول فی ما جاء به النبی علیه السّلام لکن دا تعریف مورد د اعتراض دی ځکه دلته منزله او واسطه بین الایمان والکفر ثابتیږي او د اهل السنة خلاف ده هغه داسې .

ایمان تصدیق شو او کفر تکذیب شو او شک نه تصدیق دی او نه تکذیب دی یعنې نه کفر دی او نه ایمان دی نو په دې تعریف کې واسطه راغله په مابین د کفر او ایمان کې نو له دې وجې قاضي رحمه الله د کفر تعریف په تکذیب ونکړو بلکه په انکار سره ئې وکړو که په تکذیب سره ئې د کفر تعریف کړی وائي نو د کفر او ایمان په مابین کې تقابل د تضاد راتلو او انکار او جحود جهل ته ورځي.

قاضي صیب یې داسې تعریف کوي: انکار ما علم بالضرورة مجئ الرسول صلی الله علیه وسلم یعنې له هغو شیانو بې خبري او انکار کول موم چې نبي علیه السلام راوړي وي نو په دې تعریف کې منزله نه ثابتیږي .

خو شیخ عبد الحکیم سیالکوټي رحمه الله وایي چې د قاضي صیب په تعریف کې هم منزله ثابتیږي هغه داسې چې یو سړی دی هغه ته د الله او رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) معرفت حاصل دی خو تصدیق یې نه دی کړی لکه د یهودو عالمان نو دوی هم مومنان نه دي ځکه تصدیق یې نه دی کړی او کافران هم نه دی ځکه انکار یې هم نه دی کړی نو دا منزله شوه بین الکفر والایمان د عبد الحکیم سیالکوټي صیب په نزد د امام غزالي رحمه الله تعریف اختیارول پکار دي.

او پاتې شول شکي او غیر تصدیق کونکي هغوي په کفر کې داخل دی ځکه د دوی په اقرار لساني قدرت شته بیا یې هم نه کوي.

او کفر په لغت کښ پټولو ته وائي او داضد د شکر دی ، کفر په اصل کښ په فتحې د کاف سره و چې دا بیا مطلق ستر ته وايي بضم الکاف فرعه د بفتح الکاف ده دا ځکه چې ضم الکاف کفر يو خاص قسم ستر دی نو بفتح الکاف کفر عام دی او بضم الکاف خاص دی او دا قاعده ده چې خاص مقید فرع وي د عام مطلق اوله همدې وجې نه زمیندار او شپې ته هم کافروائي ځکه زمیندار تخم پټوي او شپه خلک پټوي نو کافر ته هم ځکه کافروائي چې دا هم حق پټوي.

**سوال**: يوسړی دی هغه انکارنه کوي بلکه تصديق کوي خو زنار ئې زوړند کړی يعنې ديهودو شعارئې اچولی دا خو باید مسلمان شي ځکه تصدیق یط موجود دی او حال دا چې دا کافردی ؟

**جواب**: که ده انکارنه دی کړی خو دا زنار وغیره شارع علامې دا نکار ګرځولي دي.

غيار: علامه د اهل الذمّة ده.

**تفسيربيضاوي**: ( وَاحتَجَّت المُعتزلة بما جاء فی القرآن بِلَفظ المُضِيءِ علی حُدُوثه لاستِدعَائه سَابقةً المخبرعَنه وأُجيب بِانّه مُقتضَی التعَلُّق وَحُودثه لايستلزم حدوثه كما فی العلم)

**ترجمه**: او استدلال کړی دی معتزله وو په هغو جملو چې په قرآن کښ په لفظ د ماضي راغلي دي له وجې دتقاضا د لفظ ماضي نه سابق مخبرعنه لره د دې جواب داسې ورکړل شوي ده چې دا تقاضا (سبقيت) دمخبرعنه مقتضی دتعلق ده اوحدوث د متعلق حدوث دکلام لره مستلزم نه ده لکه په علم کښ.

**تشريح**: **پنځم بحث**: دلته اوس دعلم کلام مسئله ذکرکوي کومه چې د معتزله و د استدلال متعلق دی خو لومړی دا خبره واوره چې قديم او حادث هر يو په دوه قسمونو مشتمل دی قديم بالذات او قديم بالزمان حادث بالذات او حادث بالزمان . قديم بالذات هغه ته وايي چې مسبوق بالغير بحسب الذات نه وي يعني غير له د نه ذاتا مقدم نه وي قديم بالزمان هغه ته وايي: چې مسبوق بالغير بحسب الزمان نه وي يعنې غير ترينه زمانا مقدم نه وي ذات واجب قديم بالذات

وي او صفات واجب بالزمان قدیم بالزمان وي، او حادث بالذات هغه دی چې مسبوق بالغیر بحسب الذات وي او حادث بالزمان هغه دی چې مسبوق بالغیر بحسب الزمان وي .

معتزله وائي قرآن حادث دی ځکه په قرآن کې جمله خبریه ذکر شوه (إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا) او دا جمله خبریه حکایت دی او حکایت محکي عنه غواړي او محکي عنه د ابو جهل افعال دي او تصمیم دي په کفر او افعال د ابو جهل او تصمیم ئې په کفر حادث دی نو حکایت خو بعد المحکي عنه وي نو دا به په طریقه اولی سره حادث وي یعنې حدوث د محکي عنه مستلزم دی حدوث د حکایت لره.

له دې نه مونږ جواب کوو چې دا سبقیت د مخبر عنه دا د جملو خبریو تقاضا نه ده بلکه دا د دوئ د تعلق تقاضا ده یو جملې خبر ئې دي او بل د دوئ تعلق دی خپله جمله خبریه قدیمه ده خو تعلق ئې حادث دی یو د الله جلّ جلاله کلام ازلي دی او بل ئې تعلق دی کلام ازلي قدیم دی خو تعلق ئې حادث دی ځکه مخبر عنه حادث دی او حدوث د تعلق مستلزم نه ده حدوث د کلام لره لکه علم، علم د الله تعالی متعلق غواړي او متعلق ئې حادث دی او علم د الله جلّ جلاله صفت دی او قدیم دی.

او امام ابو الحسن اشعري رحمه الله وایي چې تر کومه پورې دا کلام تر ذات باري تعالی پورې قایم و هغه وخت زماني نه وي ځکه دا ټولې زمانې الله تعالی ته برابرې دي او دا ماضي او استقبال یوازې د مخاطب د پوهې لپاره راوړل شوي دي.

## (د استواء تركيب او سوال او جواب)

**تفسيربيضاوي**: (سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنْذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ) خَبر اِنّ وَ سواءٌ اسمٌ بمعنى الاستواء نُعِتَ به كما نعت بالمَصادر كما قال الله تعالى (تَعَالَوْ اِلَى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ [1] رَفعَ بأَنّه خبر اِنّ وَمابَعدهُ مُرتفعٌ به على الفَاعليَّة كأنّه قيل انّ الّذينَ كفَروا مستوٍ عليْهم اِنذارَك وَعدمه أوبأنّه خَبر لِمَابعده بمعنى اِنذارك وعدمه سَيَّان عَليهم)

**ترجمه**: (سوآء عليهم) د اِنّ خبردى او سواء اسم د اِنّ په معنى د استواء سره نعت لغوي دي او په دې سره بل شي نعت (موصوف) كيدلى شي لكه په نورو مصادر سره نعت كيدلى شي لكه الله تعالى فرمايلي دي (ترجمه) راشئ داسې كلمې ته چې زمونږ اوستاسې په مابين كې برابره (دلته) كلمه موصوف او سوآء ئې صفت دى سوآء سره مرفوع دى په دې وجه چې دا د اِنّ خبردى اومابعد د سوآء (أَأَنْذَرْتهم أَمْ لَمْ تُنْذِرهم) دا په سوآء سره مرفوع دى بناء برفاعليت گوياچې الله جلّ جلاله داسې فرمايلي دي : اِنّ الّذين كَفَروا مستوٍ عليهم انذارك وعدم انذارك او يا سواء د ما بعد خبردى په دې معنى سره چې انّ الّذين كفروا انذارك وعدم انذارك سيان عليهم.

**تشريح**: دلته مصنف رحمه الله دوه بحثه ذكر كوي اول د جملې تركيب دويم د انذار تحقيق

**اول بحث**: په دې كې دوه تركيبه قاضي بيضاوي رحمه الله كوي.

(۱)**تركيب**: سوآء مصدر نه دى خو اسم د مصدر دى چې استواء ده هغه استواء په معنى د مستوٍ اومستوٍ صيغه د اسم فاعل ده أَأَنْذرتهم أَمْ لَمْ تُنذرهم په تأويل د مصدرچې انذارك اوعدم انذارك دى دا ئې فاعل اسم فاعل سره د خپل فاعل نه د اخبر لپاره د انّ الّذين كفروا خو دا تركيب په مذهب د هغه چا دى چې څوک د عمل د اسم فاعل لپاره اعتماد شرط نه گڼي په دې تركيب كې يو نقصان دا دى (چې اسم فاعل بغير له اعتماده شو) او بل نقصان پكې دا دى چې دلته تركيب خپله په سوآء كې ونشو بلكه سواء دي ورته فاعل كړو او بله جمله فعليه دي مسند اليه كړه.

---

[1]:- سورة آل عمران : آية (٦٤)

(۲) **ترکیب**: سوآء خبر مقدم دی ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ ئې مبتداء مؤخره ده مبتداء سره له خبر نه دا جمله اسمیه خبر په بیا ټول جمله خبر د اِنّ.

په دې دواړو ترکیبو باندې درې مشترک اعتراضونه وادر دي.

(۱)**سوال**: ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَم لَمْ تُنْذِرْهُمْ دا خو جمله فعلیه ده دا دې څنګه مسند الیه کړې اول خو جمله مسند الیه نشي کیدی بیا خو فعلیه بلکل په طریقه اولی نشي کیدي ؟

**جواب**: فعل په په دوه معناګانو سره دی یو په معنی مطابقي سره دی او بل په معنی تضمني سره دی په اعتبار د معنی مطابقي غیرمستقل دی په دې اعتبارسره مسند الیه نشي واقع کیدی او نه هم مبتداء واقع کیدی شي لکه په دې ترکیب کې او نه فاعل واقع کیدی شي لکه په اول ترکیب کې ځکه مسند الیه مستقل وي. اوهرچې دلته ورته مونږ مسند الیه (مبتداء یا فاعل) وایو نو دا په معنی تضمني سره اومعنی تضمني د فعل مستقله ده کله کله پکې یوازې معنی تضمني مقصود وي اونسبت پکې مقصود نه وي لکه همدلته.

(۲)**سوال**: ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ کې همزه د استفهام دی او همزه تقاضا د صدارت د کلام کوي او دلته په دواړو ترکیبونو کې د دې صدارت فوت شو دی په اول ترکیب کې لفظًا اورتبتًا دواړه فوت شو ، ځکه فاعل په لفظ اورتبه دواړوکې روسته وي او په دوهم ترکیب کې لفظًا فوت شو اګر که رتبتًا نه دې فوت شوی ځکه لفظًا دلته مبتداء مؤخره دخو په رتبه کې دا مقدمه وي.

(۳)**سوال**: دا همزه او اَمْ لپاره د استفهام د تعین د احدالامرین راځې سره د علم نه د مخاطب په احد الامرین لکه په کوټه کې څوک غږیږي زه ووایم زیدٌ فی الغرفة ام عمرٌ دلته زما علم په وجود د یو کس شته خو طلب د تعین کوم چې څوک دی نو په دې کې احدالامرین راغله او سوآء په متعدد ور داخلیږي اوپه احدالامرین کې خو تعدد نشته؟

**سوال**: ته وائې چې سوآء په معنی د استواء ده او دا خو مصدرده تا دا خبر واقع که او خبرخو حمل وي او مصدر نه حملیږي ؟

**جواب:** نُعِتَ به: دلته سوآء په معنا د استوا مصدر سره اخستل شوى څنګه چې مصدر لره نعت لغوي او نحوي جوړولى شي دغسې سوآء لره هم نعت لغوي او نحوي جوړولى شي د نعت نحوي مثال (تعالوا الى كلمة سواء بيننا وبينک) دلته سوآء د كلمې تابع او صفت دى او همدا نعت نحوي دى ،دنعت لغوي مثال (سواءٌ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ) دلته سواء خبر واقع د د انّ لپاره او خبر قايم تر مبتداء وي او هرې معنى قايم بالغير ته په لغت كې نعت وايي .

انذارک وعدمه باندې اعتراض واردیږي هغه دا

**سوال:** په مبتداء كې تعدد راغى او په خبر كې افراد دى ؟

**جواب:** سيان عليهم: په مصدر كې تثنيه او جمع يو برابر وي دا په معنى كې تثنيه ده.

**تفسيربيضاوي:** (والفعل انّما يَمتنع الأخبَار عنه اذَا أرِيدبِهِ تَمام وضع له أمّا لو أطلقَ وأُريدبه اللّفظ اومُطلق الحَدث المَدلول عَليه ضِمنًا على الاتّساع فَهوكَالِاسمِ فِي الاضَافةِ والاسْنادِ اليه كقوله تعالى (وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا) وقوله (يَوْمَ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ [1])وقَولهم تَسْمَع بالمِعيدى خير مّن اَنْ تراهُ)

**ترجمه:** او د فعل نه خبر واقع كول منع وي چې كله په دې سره تړوله معنى موضوع له مرادكړى شي (معنى مطابقي) او كه چيرته اطلاق د فعل وشي او له دينه لفظ مراد شي يامطلق حدثي معنى د فعل مراد شي چې مدلول عليه ضمنًاوي بناپه فراخي په اصطلاحاتو كې نو بيا فعل په اضافت او اسناد كې په شان د اسم دى لكه داقول دالله تعالى (وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ) او (يَوْمَ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ) دلته يوم مضاف او ينفع مضاف اليه واقع شوى ده او داقول د عربو چې د معيدي اشعار اوريدل ستالپاره د معيدي د ليدلو نه بهتردى.

---

(١):- سورالمائدة : آية (١١٩)

**تشریح**: دا دفع د اعتراض ده کوم چې وارد وو په أَأَنْذَرْتَهُمْ او لَمْ تنذرهم باندې چې جمله فعلیه دې مسندالیه واقع کړي دا غیر صحیح ده ؟ دا ورته جواب کوي چې جمله فعلیه په اعتبار د معنی مطابقي مسند الیه نشي واقع کیدلی خو په اعتبار د معنی تضمني واقع کیدای شي کما مرّ.

او د دې لپاره څو مثالونه ذکر کوي چې فعل په معنی تضمني سره مسند الیه واقع شوی وي اول مثال لکه الله تعالی فرمایي: وَاذا قیل لهم امِنوا دلته د امنوا فعل خالي د لفظ د امنوا مراد دی نو ځکه نائب فاعل واقع شوی د قیل فعل مجهول لپاره دویم مثال لکه الله تعالی فرمایي: یوم ینفع الصادقین صدقهم . دلته هم ینفع فعل څخه مطلقاً معنی حدثي مراد ده نو ځکه مضاف الیه واقع شوی ده دریم مثال د معیدي شعردی پوره شعر داسې دی.

تسمع بالمعیدی خیر من ان تراه . . . ستعرف قدره ان فتح فاه

**ترجمه**: د معیدي اشعار ستا لپاره د معیدي د کتلونه بهتر دي زرده چې قدربه ئې وپیژني کله چې معیدي خوله خلاصه کړه.

دلته هم تسمع فعل نه معنا تضمني مراد ده ځکه مسند الیه اقع شوی دی ای سماعکم بالمعیدي.

**معیدي**: هغه چاته وائې چې ظاهرًا ئې اوازه د خوش اخلاقي تللي وي خوچې ورشي ډیر بد اخلاقه وي بعض علماء ئې دا معنی لغوي مراد وي او بعض علماء وائې چې دایو سړی وو چې نعمان بن منذر لومړی دده په اړه دا شعروویلو ځکه یاخو د ده اوازه د خوش اخلاقی تللي وه اوپه حقیقت کې ډیر بد اخلاقه وو یا د ده نه چا د لطائفو اوحکمتونو ډک شعرونه نقل کړي وو پوره شعر داسې ده.

**تفسیربیضاوي**: ( وانّما عَدل هَهنا عنِ المَصدرِ الی الفِعل لما فِیه منْ ایْهام التَّجدُّد وحسن دُخول الهَمزة وَاَمْ عَلیه لتَقریرمَعنی الاستِواء وتَاکِیده فَانّهما جُرِّدتا عن مَعنَی الاِستفهامِ لمّجرد الاستواء کما جُرِدَت النِداء عن الطَّلب لمُجرد التَّخصِیص فی قولهم اللّهمّ اغفرلنا ایتها العِصابة )

**ترجمه**: او عدول ئې كړى دلته د ذكر د مصدر نه فعل ته د هغو فائدو له وجې چې كومې په فعل كې دي چې د تجدد د وهم پيدا شي او حسن د دخول د همزې او د اَمْ په دې فعل باندې د دې لپاره چې معنى داستوا ثابته او موكده كړي د نو يقينًا دا حرف د استواء د معنى لپاره مجرد كړى شويدي لكه چې حروف نداء د طلب نه مجرد كړى شوي دي دا حروف لپاره د تخصيص مجرد كړى شوي دي لكه په دې قول دعربو كې چې اي الله جلّ جلاله ته زمونږ بخښنه وكړي او خاصكر دا زمونږ دلي ته.

**تشريح**: په دې سره دفع د اعتراض ده هغه دا

**سوال**: د أَأَنْذَرْتَهُمْ نه دي معنى مطابقي مراد نه كړه بلكه تضمني معنا دې ترينه مراد كړه يعنې مصدر دى ترينه مراد كړو خو بيا به دې مصدر ذكركړى وو كنه سَوَآء عَلَيْهِمْ انذارك وعدم انذارك؟

**جواب**: له مصدر نه يې عدول د فعل صيغې ته په دې وجه وكړ چې ايهام تجدد فايده وكړي او دا فايده له فعل نه حاصليږي نو ځكه يې د فعل صيغه استعمال كړه

بيا تجدد په دوه معناګانو سره راځي اوله معنا مطل حدوث يعنې يو ځل كيدل بيا ختميدل او دا معنا په هر فعل كي شته ځكه دا له اقتران د زمان څخه حاصليږي.

دويمه معنا حدوث فى المستقبل او ديته استمرار د تجدد وايي او دا معنا يوازې په مضارع كې وي او دلته له تجدد نه اوله معنا مراد ده بعض وايي چې دويمه معنا مراد ده.

**سوال**: دلته أأنذرتهم او لم تُنذرهم دواړه صيغې د فعل مضارع دي او په فعل مضارع كې خو عين تجدد دى ايهام د تجدد خو پكې نشته نو د ايهام كلمه دي ولې پكې راوړه؟

(۱)**جواب**: حاشيې ورته جواب كړي چې دې كې رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته تسلي ده كه ته بيابيا هم انذار وكړې دوئ ايمان نه راوړي.

(۲)**جواب**: يا دا چې موږ وويل چې تجدد په مضارع كې راځي او دلته خو مو انسلاخ د زماني نه كړي خالي او مطلق حدث مو ترينه مراد كړى چې انذارك اوعدم انذارك دى

نو مضارعيت پکښې نشته نو چې مضارعيت پکښې نشته نو تجدد هم پکښې نشته نو ايهام د تجدد پکښې راغلی دی يعنې تجدد د مضارع په معنی مطابقي کښې وي او دلته معنی تضمني ده.

وحسن دخول الهمزة: سره دفعه دوهم اعتراض کوي

**سوال**: چې همزه خو تقاضا د صدارت کوي او دلته صدارت فوت شوی کما مرّ.

**جواب**: ستا اعتراض به هلته وارد و چې دا موږ په خپله معنا سره استعمال کړي وای بلکې دلته پکښې تجريد شوی دی له احد الامرين څخه لکه څنګه چې حرف ندا کښې تجريد شوی او په خپله معنا کښې نه ده استعمال شوي مثال: اللّٰهُمَّ اغفرلنا ايتها العصابة. دلته هم تجريد د حرف ندا راغلی له طلب د اقبال د منادي څخه صرف د حرف تخصيص په معنا استعمال شوې ده قرينه پرې داده چې عصابه دې مقوله نه منادی نه ده ځکه د قايل مقصود دا نه دی چې عصابه ځان طرفته متوجه کړي بلکې مقصود دادی چې د عصابې لپاره له الله تعالی نه خاص طور سره مغفرت وغواړي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَالانذارُ التَّخويفُ أُريد بِه التَّخويف[1] مِن عذَاب الله وانّما اِقْتصرَ عليه دونَ البَشارةَ لأَنّه أَوقعُ فى القَلبِ وأَشدَ تأثيرًا فى النُّفس منْ حيثُ اِن دَفع الضَّراهم مِن جَلب النَّفع فاذَا لمْ يَنفع فيهِم كانَتِ البشارةُ بعدم النفْع أَولى)

**ترجمه**: انذار مطلق يرولو ته وائي دلته مراد يرول د عذاب د الله تعالی څخه دي او اقتصار په انذار شوی دي نه په بشارت ځکه چې انذار په زړه کښې زيات اثر کوي او اشد دی په تابعه د نفسونو کښې د دې حيثيت نه چې جلب د منفعت نه دفع دضرر اهم ده نو هرکله چې انذار په دوئ کښې فائده ورنکړه نو بشارت په عدميت دنفع کښې ډير اولی ده.

**تشريح: دويم بحث**: دلته دويم بحث شروع کوي کوم چې د لفظ د انذار متعلق دی. انذار مصدر دی د باب افعال څخه په لغت کښې يرولو ته وايي او په اصطلاح د مفسرينو کښې د ګناه د ارتکاب په وجه د الله د عذاب نه ويرول.

---

(۱):- قال الامام ابن الجوزي رحمه الله الانذار اعلام مع التخويف، وتناذر بنوفلان هذا لامر اذا خوفه بعضهم بعضًا (زادالمسير: ۱ / ۲۹)

په دې عبارت يو اعتراض دى هغه دا

**سوال**: لکه څنګه چې انذار او عدم انذار په عدم نفع کې برابر کړى شو دغسې تبشير او عدم تبشير هم برابرول پکار و دا سې ويل پکارو سواء عليهم أأنذرتهم ام لم تنذرهم وبشرهم ام لم تبشرهم او تا دلته تخصيص په ذکر د انذار کړى دى او بشارت دې نه دى ذکر کړى او حال دا چې په عام ځايونو کې بشارت او انذار يو ځاى ذکر کيږي ؟

(۱) **جواب**: انذار ابلغ دى ځکه انذار کې تخلي ده او ابشار کې تحلى ده او تخلي اهمّه هم وي او اوقع هم وي.

(۲) **جواب**: ابشار په دوه قسمه دي (۱) بشارت کامله دى (۲) نفس بشارت دى او انذار هم په دوه قسمه دى (۱) انذار کامله دى (۲) نفس انذار دى. نو بشارت کامله په کامل ايمان سره دى او نفس بشارت په مطلق ايمان دى او انذار کامله په کفرياندې دى او نفس انذار په معصيت دى نو دلته انذار کامله مراد دي چې دا کافرانو ته وي که بشارت ئې ذکر کړي واى نو د تقابل له وجې به له بشارت نه بشارت کامله مراد وائې او بشارت کامله مؤمنانو ته کيږي کفارو ته خو نه کيږي ځکه د کفارو نفس ايمان نه وي او کفار اول په نفس ايمان مکلف دي په کامل ايمان بيا روسته مکلف کيږيَ.

## (په أأنذرتهم کې اوه قرأته)

**تفسيربيضاوي**: (وقرئ (أأنْذَرْتَهُمْ) بِتحْقيق الهمزتَين وتَخفيف الثَّانية بَينَ بين وقَلبُها الفًا وهو لَحْن لأنّ المُتحرِّكة لَاتقلب ولأنّه يُؤَدِّى الى جَمِيع السَّاكنين عَلى غيرحَدهِ وبِتوسِيط الف بينهما مُحَقَّقتين وبِتوسيطهَا الثَّانية بين بين وبحذفِ الاستِفهاميَّة وبحذفها والقاء حَركتها على السَّاكنِ قبلها)

**ترجمه**: او لوستلى شوى دى (أَءَنْذَرْتَهُم) په تحقيق (ثابت ساتلو) د همزتينو سره او په تخفيف د دوهمې همزې سره لوستل، د دوهمې همزې په الف سره بدلول خطا دې ځکه همزه متحرکه نه بدليږي او ځکه دا مفضي دى التقاء الساکنين على غيرحده ته هم او په مابين د همزتينو محققتينو کې الف راوړل او يا په مابين کې الف راوړل او دوهمه همزه په بين بين قريب سره اداکول (اول

همزي سره الف او دوهمي سره بين بين) او بل قرائت په همزې د استفهام (اوله همزه) سره او يا په حذف د حرف استفهام او غورځول د حركت په مخكې ساكن باندې.

**تشريح**: دلته اوس د همزتينو د قرأت متعلق بحث كوي او په دې كې اوه قرائته ذكر كوي.

(۱)**قرائت**: بتحقيق الهمزتين چې دواړه همزې د أَءَنْذَرْتَهُمْ په خپل حال پرېخودل شي دا قرأت د كوفيانو او د ذكوان د روايت په اعتبار سره ابن عامر ته منسوب دی.

(۲)**قرائت**: وتخفيف الثانية بين بين چې دا دوهمه همزه په بين بين كې ادا كړې (چې دوهمه همزه كې تسهيل وكړې دا قرأت ابن كثير ته منسوب دی).

تسهيل: وائې چې حرف اداكړی شي په مابين د مخرج خپل او مخرج د هغه حرف كې چې د دې د حركت سره موافق وي لكه دلته دوهمه همزه باندې فتحه د الف سره مناسب ده او هغه الف د دوه فتحونه جوړ دی نو دا همزه په مخرج د همزې او مخرج د الف كې اداكړې.

(۳)**قرائت**: وقلبها الفًا: چې دوهمه همزه په الف بدله كړې دا لحن دی يعنې غلط دی لحن وائې خروج عن كلام العرب ته ځكه دوهمه همزه متحركه ده متحركه همزه په الف نه بدليږي البته ساكنه همزه په الف بدليدی شي كله جوازًا او كله وجوبًا او بل مفصې كيږي التقاء د ساكنينو راغله على غير حده لره دا قرأت نافع طرفته منسوب دی.

(۴)**قرائت**: وبتوسط الف بينهما محققين: چې دواړه همزې په خپل حال پرېخودل شي خو په منځ كې ئې الف هم راوړل شي لكه أاأنذرتهُمْ دا قرأت بعض ابن عامر ته منسوب كړی.

(۵)**قرائت**: وبتوسيطها والثانية بين بين: دا چې په منځ د همزتينو كې الف راوړل شي خو په دوهمه همزه كې تسهيل وكړل شي دا قرأت د ابو عمرو او د قالون او نافع قرأت هم دی.

(۶)**قرائت**: وبحذف الاستفهامية يعنې په حذف د أولی همزې سره دا قرأت ابن جني ابن محصن ته منسوب كړی.

(۷)**قرائت**: وبحذفها والقاء حركتها على ساكن ماقبلها: اوله همزه حذفه كړه او حركت ئې ماقبل ساكن (ميم) ته وركړه عَلَيْهِمَ اَنْذَرْتَهُمْ.

## بین بین

بین بین په دوه قسمه دی: (۱) بین بین قریب (۲) بین بین بعید.

**بین بین قریب**: چې یو حرف اداکړی شي په مابین دمخرج خپل او د مخرج د هغه حرف کې چې د دې حرکت سره موافق (له جنسه) وي او دلته قریب مراد دی.

**بین بین بعید**: چې یو حرف دخپل مخرج او په منځ دمخرج دهغه حرف کې چې حرکت ئې له ماقبل سره موافق وي اداکړی شي لکه الف د دوو فتحو واو د دوو ضمو اویاء د دوو کسرو نه جوړه ده.

## (التقاء الساکنین)

التقاء الساکنین په دوه قسمه ده (۱) علی حده (۲) علی غیر حده.

(۱) **علی حده**: اول حرف ساکن مده او دوهم حرف ساکن مدغم وي لکه دآبّة او احمارّ.

(۲) **علی غیرحده**: اول حرف ساکن مده او دوهم حرف ساکن غیرمدغم وي او دا ناجائزده یعنې دعلی حده عکس دی.

## (په لایؤمنون کې څلور ترکیبه)

**تفسیربیضاوي**: ( لَایُؤْمِنُوْنَ) جُملةٌ مُفسّرةٌ لِاجمالِ مَاقَبلها فِیمَا فیه الاسْتوآء فَلامحل لها أَوحالٌ مؤكّدة أوبدل عَنه اوخبرُ اِنّ وَالجُملة قَبلها اعتِراض بمَا هُو عِلّة الحكم)

**ترجمه**: دا (لَایُؤْمنون) جمله مفسره ده لپاره د ماقبل اجمال په هغه شي کې چې په کوم کې برابروالی ده نودې جملې لره لره محل داعراب نشته اویا دا حال مؤکده ده اویا دمخکې جملې نه بدل ده اویا خبر د اِنّ دی او مخکې جمله معترضه شوه چې هغه علت دحکم دی.

**تشریح**: مصنف دلته دوه بحثونه کوي اول بحث ترکیبي دی او دویم بحث استدلالي دي.

**اول بحث**: په دې کې څو ترکیبه کوي.

(۱) **ترکیب**: دا چې دا جمله مفسره ده لپاره د اجمال د ماقبل دا اجمال په اعتبار د مافیه الاستواء سره مخکې یې وویل: سوآء علَيهِم ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ یعنې ستا انذار اوعدم انذار یو برابردي په څه کې یو برابردي نو جمله کې ابهام نو په لایؤمنون سره یې د هغې تفسیر

وکړو چې مافيه الاستواء عدم ايمان دی يعني په انذار او عدم انذار کې برابر دي، مخکې د عدم ايمان ذکرنه وو شوی اوس دلته مافيه الاستواء چې عدم ايمان دی بيان وشو نو په دې اعتبار سره بيا د دې جملې لپاره اعراب محلي نه وي.

(۲) **ترکيب**: يا دا حال مؤکده دی لپاره د مضمون د جملې اسمي په دې کې د دې نکتې ته اشاره ده چې مخکې دوه ترکيبه تير شوه يو داوه چې سواء دال دی په استواء، استواء په معنی د مستوي صيغه د اسم فاعل انذارک وعدم انذارک ئې فاعل د اتولہ جمله نه ده بلکه شبه جمله ده يعني په حکم دمفرد کې ده او دوهم ترکيب داوو چې سواء خبر مقدم او أأنذرتهم او لم تنذرهم مبتداء مؤخره نو په دې ترکيب باندې دا جمله ده نو دا به حال مؤکده دجملې اسمي څخه وي اوتاکيد به داسې وي چې مخکې د استواء ذکر شوی وه خومافيه الاستواء ئې نه وو ذکرکړی نو په دې کې د مافيه الاستواء بيان او ذکر وشو.

(۳)**ترکيب**: يا دا لايؤمنون بدل دی خو په بدل کې بدل الکل نه دی ځکه په بدل الکل کې د بدل اومبدل منه مصداق يووي اوبدل البعض هم نه دی ځکه بدل البعض جزء د مبدل منه څخه وي بلکه دا بدل الاشتمال دی بدل اشتمال ديته وائې چې بدل متعلق د مبدل منه وي خو تعلق د کل او دجزء نه وي نو دلته اوس د دې تعلق د ماقبل سره دادی چې مخکې دمافيه الاستواء ذکرنه وشوی اوس ئې ذکر وشو.

(۴)**ترکيب**: يادا لَايُؤمنون خبر د اِنّ دی اوپه منځ کې دا جمله سواء عَليهم الخ معترضه ده چې علت دی لپاره د حکم د لايؤمنون يعني برهان لمّي دی لکه ختم الله برهان ايني دی.

خو دا ترکيب هغه وخت صحيح دی کله چې سواء عليهم کې د مبتداء او خبر ترکيب وکړل شي خو له سواء صيغه د اسم فاعل په تاويل سره واخستل شي بيا دا ترکيب نه صحيح کيږي.

**تفسيربيضاوی**: ( وَالآيَةُ مِمّا احْتَج به مِن جَوَّز تَكليف مالَايُطاق فانّه سبحانه أَخبرعَنهم بأَنّهم لَايؤمنون وَأَمرهم بِالايمانِ فَلو أَمنوا اِنقلب خَبره كذبًا وشَمَل ايْمانهم الايمان بانّهم لَايؤمِنون فَيجتَمع الضّدان)

**ترجمه**: او آیت له هغې جملې څخه دی چې په دغه آیت باندې هغه چا استدلال کړی دی چې هغوئ جواز وکړي تکلیف بما لایطاق ته داسې چې یقینًا الله تعالی د دوئ نه خبر د لایؤمنون ذکرکړی دی او بیائې ورته حکم د ایمان راوړلو هم کړی دی نو که چېرته دوئ مؤمنان شوي وائې نو خبر د الله جلّ جلاله په کذب ګرځیدلی وائی او د دوئ ایمان شامل دی ایمان لره په دې چې لایؤمنون دی (چې دوئ به ایمان راوړي په لایؤمنون) نو جمع شوه ضدان.

**تشریح**: **دویم بحث**: دلته دویم بحث د استدلال متعلق ذکر کوي.

ممتنع په دوه قسمه دی یو ممتنع لذاته او بل ممتنع لغیره.

**ممتنع لذاته**: هغې ته وایي چې د هغې په ذات کې داسې معنا وموندل شي چې د هغې له وجې پرې د امتناع حکم ولګول شي لکه اجتماع د نقیضینو او ارتفاع د نقیضینو.

**ممتنع لغیره**: هغه دی چې في نفسه ممکن وي خو لکن د یو عارض له وجې پرې د امتناع حکم ولګول شي لکه کتابت فی نفسه ممکن دی خو د عدم اله په وجه ممتنع دی او دا خبره چې په ممتنع باندې بنده مکلف دی او که نه؟

(۱) **تکلیف په ممتنع لذاته**: دې کې اختلاف دی جمهور او معتزله وائې چې په ممتنع لذاته باندې الله جلّ جلاله عبد نه مکلف کوي لکه الله جلّ جلاله تا نه مکلف کوي په اجتماع د نقیضینو او ارتفاع د نقیضینو او په شریک الباري باندې. د اشعریه و یوه ډلې په نزد باندې د ممتنع لذاته تکلیف جائز دی خو واقع نه دی.

(۲) **تکلیف په ممتنع لغیره**: په دې سره تکلیف جائز هم دی او واقع هم دی اتفاقًا.

ممتنع لغیره دا وي لکه الله جلّ جلاله خبرورکړی وو چې دا کارونه کیږي فی نفسه دا کار ممکن وي یا د الله جلّ جلاله علم ورپورې متعلق شوی وي چې دا کار نه کیږي اوس که هغه کار وشي نو د الله جلّ جلاله په خبر کې کذب راځي نو د دې له وجې دا ممتنع شوی وي.

(۳) د غسې هغه شيان چې الله تعالى د هغې باره کې د عدم خبر ورکړی وي د هغې د تکليف هم ټول حضرات قايل دي، کوم خلک چې د ممتنع لذاته د تکليف قايل دي هغوي له ايت نه په دوه طريقو سره استدلال کوي.

**اوله طريقه د استدلال**: چې اِنّ الّذين كَفَرُوا مونږ وويل چې دا موصول يا لپاره د عهد دی معهود کافران ترينه مراد دي لکه ابوجهل ابولهب وغيره نو الله جلّ جلاله خبر ورکړ چې دا معهود کافران ايمان نه راوړي ځکه الله تعالى خبر ورکړی چې دوی به ايمان نه راوړي لکن د دې باوجود هم دوی مکلف په ايمان شول، نو د دوئ ايمان راوړل ممتنع شو ، ځکه ايمان راوړي بيا خو کذب په ثابتيږي په خبر د الله تعالى کې او کذب په جانب د الله تعالى کې محال دی او مستلزم محال لره محال وي نو ايمان د ابوجهل محال نو صابته شوه چې ايمان بالممتنع واقع دی.

**دويمه طريقه د استدلال**: د ابو جهل وغيره ايمان ممتنع لذاته دی هغه داسې دوئ مکلف دي په ايمان چې په قرآن به ايمان راوړي نو چې په قرآن ئې ايمان راوړو په قرآن کې خو دغه آيت هم دي چې لايؤمنون په دي به هم ايمان راوړي ايمان په لايؤمنون مستلزم ده عدم ايمان لره نو ايمان په عدم ايمان دا عدم ايمان وي نو دوئ مکلف شوه په عدم ايمان او بل طرفته دوئ مکلف دي په ايمان نو ايمان او عدم ايمان اجتماع د نقيضينو ده نو معلومه شوه چې دوی په اجتماع النقيضين مکلف دی او اجتماع القيضين ممتنع لذاته دی دا ثابته شوه چې تکليف بالممتنع صرف جايز نه بلکې واقع دی.

**تفسيربيضاوي**: ( وَالحَقُّ ان تكْليف بالمُمتنِع لذاته وَانْ جاز عَقلًا من حَيث ان الأَحكام لَايستدعى غَرضًا سَيّما الامتِثال لَكنه غَير واقِع لِلاستقراء والأَخبار بِوقوع الشَّئ اوعدَمه لَاينفى القُدرة عَليه كاخباره تعالى عمّا يَفعله هو أو العبد باختياره)

**ترجمه**: او حق خبره داده چې اګرکه تکليف په ممتنع لذاته عقلًا جائز دی له دې حيثيت نه چې دا احکام د کوم غرض تقاضا نه کوي او خاص کر د عمل کولو خو تقاضا نه کوي لکن تفتيش سره دا تکليف واقع شوي نه دې او اخبار په وقوع يا عدم وقوع د يو شي قدرت په دغه شي نه منع کوي

لکه د الله تعالی په خپل اختیار اخبار ورکول د هغه څه نه چې الله تعالی ئې فعل کونکی وي اویائې بنده فعل کونکی وي.

**تشریح**: دلته قاضي صیب محاکمه کوي وائي چې حق دا ده چې تکلیف په ممتنع لذاته اګرکه عقلًا جائز دی له دې حیثیته چې د الله جلّ جلاله احکام اغراض نه غواړي بیا خاص کر امتثال یعني چې الله جلّ جلاله یو سړی مکلف کړي ،نو د الله تعالی افعال معلل بالاغراض نه دي یو په اغراضو کې-امتثال دی نو د الله جلّ جلاله غرض دا نه وي چې دا کاردي دا سړی وکړي بلکه د دې لپاره ئې مکلف کوي چې نور فوائد پرې مرتب کړي نو جائز دی عقلاً خو واقع نه دی شرعاً او بل دا چې نو تکلیف بمالایطاق نشته پاتې خو لادا چې تکلیف به ممتنع لذاته باندې وشي.

والاخبار بوقوع: سره دفعه د اعتراض کوي کوم چې مخکې تیرشوی.

**سوال**: تا وویل چې د دوئ ایمان یا ممتنع لذاته دی په یو تقدیر او په بل تقدیر ممتنع لغیره دی نو دا خو تکلیف نشو ؟

**جواب**: دا ورته جواب کوي چې د الله خبر تابع د حکم دالله جلّ جلاله دی او د الله جلّ جلاله حکم د الله جلّ جلاله د ارادې تابع دی او د الله جلّ جلاله اراده د الله جلّ جلاله د علم تابع دی او د الله جلّ جلاله علم د دې معلوم تابع دی هلته معلوم داسې وي چې دوئ ایمان نه راوړي یعنې مطلب دوئ ایمان نه راوړي په دې د الله جلّ جلاله علم راشي دعلم مطابق د الله جلّ جلاله اراده راشي د رادې مطابق الله جلّ جلاله حکم وکړي دکم مطابق چې مونږته خبرراکړي نو خبر تابع دحکم شو حکم تابع د ارادې شو او اراده تابع د علم شوه او علم تابع د معلوم شو او علم خو مجبر په معلوم نه وي یعني د علم له وجې نه معلوم نه وي راغلې بلکه د معلوم له وجې علم راغلی وي بهر تقدیر دوئ په عدم ایمان کې مجبوره نه دي بلکه په خپل اختیار ایمان نه راوړي دا جواب له ممتنع لغیره نه شو او جواب له ممتنع لذاته (لکه ایمان دابوجهل) نه هغه بیا روح المعاني کړی دی چې دوئ مکلف په تفصیلي قرآن نه دي بلکه دوئ مکلف په اجمالي قرآن دي روسته له اجمالي ایمان څخه بیا مکلف دي په تفصیلي ایمان نو په اجمالي قرآن کې بیا اجتماع دضدینو نه راځي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَ فائدة الانذارِ بعد العلمِ بأَنّه لَا ينجَح اِلزام الحجة وَحِيازةِ رسُول الله صلّى الله عليه وسلّم فَضل الاِبلَاغ وَلذلک قال (سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ) ولَم يقلْ سواءٌ عليک كمَا قالَ لعبدةِ الأَصنام (سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ اَمْ اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ [1]) وفی الآية اِخبارٌ بالغَيب على مَاهُو به ان أُريد بالموصول اشخاص باعيانهم فَهی من المُعجزات)

**ترجمه**: او فائده د انذار بعد له علم نه په دې خبره چې دا انذار دوئ ته نفع نه وزكوي الزام (حجت) دليل قائمول دي او راجمع كول د محمّد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دي فضيلت د تبليغ ته له دې وجې نه الله جلّ جلاله فرمائي (سَوَآءٌ علَيْهِمْ) اونه ئې دې ويلي سواء عليک لكه څنګه چې ئې ويلي په باره دبت پرستانو كې (ترجمه) اې دبتانو عبادت كونكو ستاسو په حق كې برابره ده كه بتانو ته اوازونه كوئ اوكه ساكت يئ په آيت كريمه كې اخبار بالغيب دی په هغه طريقه چې دوئ ايمان لرلو كه چيرته له موصول نه معين اشخاص مراد شي بيا به داله معجزاتو څخه وي.

**تشريح**: دلته دفع د اعتراض ده هغه دا چې.

**سوال**: په آيت كريمه كې راغله چې ابوجهل ايمان نه راوړي نو د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د تبليغ بيا څه فائده شوه ؟

**جواب**: د تبليغ فايده يې الزام الحجة چې د قيامت په ورځ د دوئ دليل ختم شي چې مونږ ته چا دعوت نه دی راكړی.

اوسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ په هغه ځای كې ويلي كيږي چې دوئ ته ګټه نه وي او سواء عليک په هغه ځای كې ويلي كيږي چې رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته ګټه نه وي نو دلته ئې سواء عليک ونه ويل څكه دلته رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ته ګټه شته چې اجر او نبوي دنده سرته رسول دي خو دوئ ته ګټه نشته [2]

---

(١):- سورة الاعراف : آية (١٩٣)

(٢):- امام عبدالرحمن ابن جوزي رحمه الله فرمائي چې دا آيت په لفظ دعموم سره نازل شو خو مګر حمل په خصوص دی څكه كه په ظاهر عموم باندې ورحمل شي بيا خو ډيرو كفارو په حالت د انذار كې ايمان راوړی نو واجب ده چې په خصوص ورحمل شي (زادالمسير: ١ / ٣٠)

## حل اللغات

| شمېره | لغات | معني |
|---|---|---|
| ۱ | لا ینجح | نفع نه ورکوي |
| ۲ | حیازة | جمع |
| ۳ | اصنام | بتان |
| ۴ | استقراء | پلټنه |
| ۵ | عبدة | بندګان |

خَتَمَ اللّٰهُ عَلَى قُلُوْبِهِمْ وَعَلَى سَمْعِهِمْ وَعَلَى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ

**تفسیربیضاوي**:( خَتَمَ اللّٰهُ عَلَى قُلُوْبِهِمْ وَعَلَى سَمْعِهِمْ وَعَلَى اَبْصَارِهِمْ) تعليل للحكم السابق وبيان لمايقتضيه)

**ترجمه**: الله تعالی د دوئ په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولی دې-او په سترګو د دوئ پردې دي دا آیت دحکم سابق لپاره علت دی او د هر هغه شي بیان دی چې حکم سابق ئې مقتضي (غوښتونکی) وي.

**تشریح**: قاضي صاحب دلته درې بحثونه ذکر کوي لومړی د دې ایت له ماقبل سره مناسبت دویم د ختم او غشاوة تحقیق دریم بحث د قلب، سمع او بصر تحقیق.

**لومړی بحث**: د دې ایت له ماقبل سره مناسبت دا دی چې (ختم الله ...) سبب دی او لایؤمنون مسبب دی او سبب له مسبب سره مناسبت لري دغه راز په سبب او مسبب کې کمال اتصال وي او د چا تر منځ چې کمال اتصال وي هلته حرف عطف نه راوړل کیږي نو ځکه د د (ختم او لایؤمنون ترمنځ حرف عطف پرېښودلی شو.

او صاحب د حاشیة الشهاب د حرف عطف د پرېښودلو وجه داسې بیان کړې ده چې دا آیت (ختم الله) استیناف دی په ذکر د سبب مطلق دی یعنې د کفارو باره کې الله تعالی فرمايي چې

انذار او عدم انذار د دوی په حق کې برابر دی ځکه چې دوئ ایمان نه راوړي دلته یو سوال پیدا کیږي چې د عدم ایمان سبب څه دی ؟

نو جواب دادی چې سبب د عدم ایمان چې د هغوی د ایمان راوړلو څومره ذرائع دي په هغو ټولو الله تعالی مهر لګولی دی او پردې یې پرې اچولي دي او سبب مطلق یې ځکه وویل چې سائل په سوال کې کوم سبب نه و متعین کړی.

## (په ختم الله یو سوال او د هغې جواب)

**سوال**: چې الله جلّ جلاله د دوئ په زړونو مهر لګولی بیا خو دوئ د ایمان په راوړو کې معذور شول؛ ځکه د دوئ زړونه معطل شول نو آیا په قیامت کې به د دوئ په حق کې د جهنم فیصله له دوئ سره ظلم نه وي ؟

**جواب**: له دې سوال څخه جواب عبدالله ابن عباس (رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ) کړی دی هغه دا چې دا اعتراض به هلته صحیح کیږي چې ختم القلب (مهر دزړه) جبرًا واڅې او دلته په طریقې د تسبیب سره دی دا ختم القلب بیماري ده مسبب دی د یو سبب د معهودو کفارو غرق کیدل دي په ضلالت کې او تمرد او طغیان دی په کفر کې او دا اختیاري امر دی په خپل اختیار سره چې دغه کارونه وکړل نو له هغې څخه تغیر دزړه پیدا شو او کله چې دا تغیر ختم نکړي نو دا زیاتیږي تردې چې ټول زړه باندې قبضه وکړي او ختم القلب ترینه جوړشي نو د دوئ په حق کې د جهنم فیصله له دوئ سره ظلم ندې او نه خو دوی معذور شول ځکه دغه کړنې سبب د مهر ګرځیدلي.

**تفسیربیضاوي**:( والختمُ أَلکَتْم سمّی به الاِستِیثَاق من الشّئ بِضرب الخَاتم عَلیه لأنّه کَتم لهُ والبُلوغ آخره نظرًا الی أنّه أخر فعل یفعل فی اِحرازِهِ)

**ترجمه**: او ختم پټولو ته وائې مسمی کړی شو په دې سره محکم والې د یوشي په لګولو د مهر په هغې ځکه دا د هغه شي لپاره پټول دي او د شي آخر ته رسیدلو ته هم ختم وائې په نظر سره دې ته چې دا آخرنی فعل دی چې په هغې شي ساتنه د دغه شي وشي.

**تشريح: دويم بحث**: ختم په سکون د تاء له باب ضرب يضرب څخه د ماضي صيغه ده په معنا د ضرب الخاتم على الشئ په يو شي باندې مهر لګول او له ختم سره کتم (پټول) لازم دی علامه زمحشري فرمايي چې ختم او کتم اخوان دي ځکه دواړه په اشتقاق کبير کې سره شريک دي يعني اکثرو الفاظو کې سره شريک دي لکه تاء او ميم کې او په دواړو کې فی الجمله تناسب هم دی نو د ختم خپله معنی کتم نه ده بلکه له ختم سره کتم لازم دی په کوم مکتوب چې ختم (مهر) ولګول شي د هغې مضمون هم محفوظ شي له خلاصولو او کتلو د غير نه او بلوغ په استيثاق باندې عطف دی.

**تفسيربيضاوي**:( وَالغِشاوَة فَعالَة مِن غشاةٍ اذَا غَطّاهُ بنيت لمَا يَشمِل على الشّئ كَالعصابَة والعمامة ولَاختم ولَاتغشية على الحَقِيقة وانّما المُرادُ بِهما اَن يَحدثَ فى نُفوسِهم هَيئَة تَمرنِهم على اِستحبابِ الكفْر والمَعاصِى واسْتقْباح الايمَان والطّاعات بِسبب غَيهِم وانْهماكهِم فى التّقليد واعْراضِهم عن النّظر الصّحيح)

**ترجمه**: و غشاوة فعالة وزن دی مأخوذ دی له غشاة څخه چې کله يوشی په پرده کې پټ شي او دا فعالة وزن بناکړی شوي دی په هغه شي چې هغه په بل شي مشتمل کيږي (دغه مشتمل شي ته فعالة وزن استعماليږي) لکه عصابة پټی ته وائي چې زخم پرې پټ کړی شي يا سر غوټ کړی شي يا يوه ټوټه ترينه تاوکړی شي اوپټکي ته هم عمامه وائي ځکه په سر مشتمل وي او ختم حقيقتًا مهر او پټوالی نه دی بلکې له غشاوة او ختم نه د کفارو په نفوسو کې دا سې هيئة پيدا کول مراد دی چې هغه عادت د دوی دی په ښوخولو د کفر او ګناهونو او په بد ګڼلو د ايمان او طاعاتو دا په سبب د زياتې ګمراهۍ د دوئ اويا زيات بوخت کيدل د دوئ په تقليد د ابآؤو او اجدادو د دوئ کې او په سبب د نظر صحيح نه اعراض کولو سره.

**تشريح**: له غشاوة څخه معنوي پردې مراد دي اوتمرن عادت ته وائي.

**تفسيربيضاوي**:( فَتجعَل قُلوبهُم بِحيثُ لايَنفَذ فيهَا الحقُ و اسماعهم تَعاف استِماعه فتصِيرُ كانّهَا مُستوثِقٌ منْها بالخَتمِ وَ أبصارِهم لَاتجْتلِى الآياتِ المَنصوبَة لهُ فى الأنفس والأفاقِ كمَا تجْتلِيها أَعين المُتبَصّرِين فتصير كأنّها غطى عليها وحيل بينها وبين الابصار وسماه على الاستعارة ختمًا وتغشية)

**ترجمه**: دا هیئت د دوئ زړونه په داسې حیثیت سره ګرځوي چې حق پکې نه داخلیږي او غوږونه ئې د حق اوریدلو نه نفرت کوي نو اوګرځي زړونه د دوئ لکه د حق نه چې په مهر سره بند کړی شوي وي او دا هیئت د دوئ سترګې داسې ګرځوي چې هغه نښې د قدرت نه ویني کومې چې د دوئ په نفسونو او کنارو د فضاګې قایمې شوي دي لکه څنګه چې دا نښې د قدرت سترګي د بنا خلکو ویني نو داسې شي ګویا که په دې پردې پرتې دي او ګویا حائل واقع شوی وي په منځ د سترګو او په دید د سترګو کې او دا هیئت د تمرّن الله جلّ جلاله په نوم د ختم او تغشیه سره نو مولی (نوم کیښودلی) په طریقې د استعارې سره.

**تشریح**: اوس مصنف رحمه الله فتجعل سره د دې ختم او غشاوة اثر په بدن کې بیانوي ابصارهم په قلوب عطف دی او د فتجعل لاندې داخل دي.

سماه کې ضمیر مستتر لفظ د الله جلّ جلاله ته راجع او (ه) ضمیر احداث ته راجع دی (یحدث په عبارت ماقبل کې) اوس په دې بره ځان پوهه کړه چې په ختم الله علی قلوبهم علی سمعهم کې استعاره تبعیة ده هغه داسې چې کفارو د ګمراهي په وجه چې کفر او ګناهونه یې، بنو خول او ایمان او طاعات یې بد ګڼل نو الله تعالی د دوی په زړونو ، غوږنو او سترګو کې یو داسې هیئة پیدا کړو چې دوی په کفر کې پاتې کېدلو ته تیاروي او له ایمان څخه یې نفرت پیدا کوي ، دې هیئة پیدا کولو سره ختم مصدر سره تشبیه ورکړی شوه بیا د دې تشبیه په ذریعه د ختم مشتقي لفظ د خَتَمَ لره په مشبه کې استعمال کړی شو او وجه د تشبیه یې منع الفوز ده یعنې لکه څنګه چې ختم (مهر) مضمون له تصرف د غیر نه منع کوي دغه شان دا هیئة هم د حق آواز لره د اورېدولو نه منع کوي داسې شو ګویا چې په سترګو او غوږونو یې مهر ووهلی شو.

او په علی ابصارهم غشاوة کې استعاره اصلیة ده هغه په دې طریقې سره چې هغه هیئة کوم چې دا خلک د توحید او رسالت له لویو لویو نښو لیدلو نه منع کوي تشبیه ورکړې هغې پردې سره چې د لیدونکي شعاع نوري منع کوي د یوشي د لیدلو نه وجه د شبه دلته هم منع عن الفوز ده لکه

څنګه چې پرده د انسان د سترګو شعاع منع کوي دغسې دا هیئت محدثه هم د کفارو شعاع بصري قراني ایتونو نه منع کوي.

**تفسیربیضاوي**:(أومثل قُلوبهم ومَشاعِرهم المَؤوفة بِها باشياء ضُرِب حجَاب بينَها وبين الاستنفاع بها حتمًا وتَغطية وقد عُبّر عن احداث هذه الهيئة بالطبع فی قوله تعالی( أُولٰئِک الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ [1]) وبالاغفال فی قوله تعالی (وَلَاتُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا [2]) بالاقسام فی قوله تعالی (وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قَاسِيَةً [3]))

**ترجمه**: او یا الله جلّ جلاله د دوئ دزړونو او افت رسېده اندامونو تمثیل کړی له هغو ګڼو اشیاؤو سره چې په منځ د دغو اشیاؤو او په منفعت د دغو اشیاؤو کې یوه پرده لګیدلي وي په طریقي دختم اوتغطي سره کله ددغه احداث دهیئت دعادت دسیئاتو نه په طبع سره تعبیر کیږي په دې قول دالله جلّ جلاله کې.

(ترجمه) داهغه خلک دي چې ددوئ په زړونو، په غوږنو، اوسترګو، الله جلّ جلاله مهر لګولی دې اوهمدغه شان ددغه احداث دهیئت دعادت نه اغفال سره هم تعبیرکیږي په دې قول دالله تعالی کې (ترجمه) ته دهغه چامه تابع کیږه چې دهغوئ زړونه مونږ دخپل یاد نه غافل کړی دي اوهمدغه شان ددغه احداث هیئت دعادت نه په اقساء سره هم تعبیرکیږي په دې قول دالله جلّ جلاله کې (ترجمه) اومونږ ددوئ زړونه سخت ګرځولي وو.

**تشریح**: دلته په طریقې داستعارې تمثیلې بیان کوي استعاره تمثیلیه دیته وائي چې وجه دشبه یکې متعدده وي لکه دغرمې په وخت کې چې لمرته ګورې داسې پرقیږي لکه آئینه نو ته وائې الشمس کَالمِرأة فی يدالاشل لکه آئینه په لاس دهغه چاکې چې فالج وهلی وي.

حاصل د استعارې تمثیلې دا دی چې د کفارو هغه زړونه چې دحق ادراک نشي کولی او د دوی هغه غوږونه چې د حق اوریدلو او هغه نظرونه چې د قدرت د نښانو دلیدلو لپاره جوړ شوي و لکن هیئت

---

[1]:- سورة النحل : آية (۱۰۸)
(۲):- سورة الكهف : آية (۲۸)
(۳):- سورة المائدة : آية (۱۳)

محدثه د هغوى له لپاره له دې څخه مانع شو نو د داسې شيانو سره يې تشبيه وركړه چې د څه فايدې لپاره جوړ شوي وي خو په مهر لګولو او پردې لګولو سره له هغو فايدو مانع وګرځي وجه د شبه يې عدم الانتفاع من المعد للانتفاع لمانع الانتفاع ده يعنې كوم شى چې د نفع لپاره جوړ وي د څه مانع له وجه له هغې نه نفع نه حاصليدل منتزع دي په څو كارونو سره له دې وجهې دا تشبيه تمثيل او ګرځولى شوه او هغه متعدد شيان چې منتفعه او مانع الانتفاع او عدم الانتفاع په دې دريو وجو شبه منتزع كړى شوى ده.

وقد عُبّر عن احداث هذه الهيئة بالطبع .الخ په دې سره اشاره كوي دې خبرې ته چې لكه څنګه چې په احداث د هيئت باندې د ختم او غشاوة اطلاق په طريقې د تمثيل شوى دغه شان دې هيئت په بل ايت كې پرې اطلاق د نورو الفاظو هم شوي لكه طبع اغفال او قاسيه.

**تفسيربيضاوي**:( وهِيَ من حيث أن المْكنات بِاسرهَا مُستنِدة الى الله تعالى وَاقعةٌ بقُدرتِهِ اسندت اليه ومِن حيث انّها مُسببه ممّا اقْتَرفوه بدليل قوله تعالى (بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ [1]) وقوله تعالى (ذٰلِک بِاَنَّهُمْ آمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطَبَعَ عَلَى قُلُوْبِهِمْ [2])وردتْ الآية ناعية عليهم شناعة صفتِهم و وخَامةِ عاقِبتهم)

**ترجمه**: او دا هيئت په دې حيثيته چې د ټولو ممكناتو نسبت الله جلّ جلاله ته (د جعل) كيږي او په قدرت د الله جلّ جلاله سره واقع كيږي نسبت ئې الله جلّ جلاله ته اوشو او په دې حيثيت چې دا هيئت د دوى د ګناهونو په وجه دى په دليل د دې قول دالله تعالى (ترجمه) بلكه الله تعالى د دوئ په زړونو مهر لګولى په سبب د كفر د دوئ او دا قول د الله تعالى (ترجمه) دا په دې سبب چې دې كافرانو ايمان راوړى وو بيا كافران شوه نو په زړونو د دوئ الله تعالى مهر ولګولو دا آيت دوئ لره خبرونكى دى د شناعت د صفت د دوئ او دخام كيدلو او د بدبخته كيدلو دانجام د دوئ.

**تشريح**: دلته قاضي صيب د يو اعتراض دفعه كوي هغه دا چې :

---

(۱):- سورة النساء آية (۱۵۵)

(۲):- سورة المنافقون : آية (۳)

## خلق او کسب د قبيح

**سوال:** اسناد د ختم ا تغشية تاسو الله تعالى ته حقيقتاً منلى او حال داچې اسناد الى الله مجازاً دي ځکه الله تعالى په ختم او غشاوة کې د کافرانو مذمت بيان کړى او په ولهم عذاب عظيم کې د کافرانو بد انجام دى نو که اسناد حقيقي شي الله تعالى به محدث او پيدا کونکى د ختم او تغشية شي او دا به افعال د الله تعالى شي او د سړى مذمت د هغه په فعل سره وي نه د بل چا په فعل سره نو د کافرانو مذمت به هغه وخت واى چې دا ختم او تغشية افعال د دوى واى او بل دا چې دلته خو بيا نسبت د قبحې الله تعالى ته کيږي ؟

**جواب:** يو کسب د شي دى او بل خلق د شي دى خلق د قبيح قبيح نه وي بلکې کسب د قبيح قبيح وي نو الله تعالى خالق د ټولو ممکناتو دي او اسناد د ممکناتو هم الله تعالى ته حقيقتاً کيږي په ختم او تغشية کې د مذمت اسناد کافرانو ته ځکه شوى چې دوى کسب د قبحې کړى چې کفر دى.

**تفسيربيضاوي:**( و اضطَربتِ المُعتزلة فيه فَذكرُوا وجوهًا من التأويل).

**ترجمه:** او دغه نسبت معتزله په اضطراب کې غورځيدلي دي نو اقسام دګنو تأويلاتو ئې ذکر کړي.

**تشريح:** و اضطربت المعتزلة کې دوه نسخې دي يو اضطرب دى بل اضطربت دى چې اضطربت شي نو دا فعل دى فاعل ئې مؤنث دى او چې اضطرب مذکر شي نو بيا ضمير د اضطرب اسناد ته راجع دي نو معنى به دا شي چې معتزله دې اسناد د (ختم الله) مضطرب کړي دي ځکه چې د قبح اسناد الله جلّ جلاله ته نه کيږي او دلته شوى دى نو په دې ځاى کې معتزله وو اوه (۷) تأويلات ذکر کړي دي په حقيقت کې اهل سنت مجاز نه مني نو معتزله ګني مجازي معانې په دې آيت کې اخلي چې نسبت د قبح الله تعالى ته و نشي دلته په دغه تفصيل دآيت کې داهل سنت څخه معتزله وو خلاف کړى دى.

## (د اهل سنت او معتزله وو اختلاف)

د معتزله وو مذهب دا دی چې اصلح د عبادو په الله جلّ جلاله واجب دي اوختم القلب خو اصلح نه دې نوتأویلات بعیده ئې کړي دي الله جلّ جلاله خالق د ختم دی د دوئ په زړونو باندې او بل مذهب ئې دا دی چې نسبت دقبائحو الله جلّ جلاله ته نه کیږي.

جبریه قدریه معتزله او خوارج وغیره د ډیر احتیاط له وجې بې لارې شوي دي حتی چې کفرته رسیدلي دي دوئ د خلق دقبائحونه په حق د الله تعالی کې منکردي یعنې خالق د قبائحو الله تعالی نه مني د دې مسائلو بنیاد په یو اهمه قاعده باندې بنا دی.

**قاعده**: افعال شرعیه حسن او قبیح کیدل دعلم کلام قاعده ده اول دا چې افعال شرعیه په دوه قسمه دي حسن او قبیح د حسن اوقبح خالق څوک دی مدرک ئې څوک دی حاکم ئې څوک دی ؟

په دې باب کې دوه مذهبه دي یومذهب د اشعریه وو دی بل مذهب د ماتریدیه اومعتزله وو دی.

د ماتریدیه اصطلاح: متکلمین د مذهب حنفي په ماتریدیه سره یادیږي ځکه احناف په تشریح د عقائدو کې امام ابو منصور ماتریدي رحمه الله پسې راوان دي.

ابو الحسن اشعري رحمه الله ویلي دي : چې حاکم په حسن او قبیح افعالو شرعیه کې شرع ده یعنې شریعت چې کوم فعل ته حسن وویل هغه به حسن وي اوکوم فعل ته ئې چې قبیح وویل هغه به قبیح وي له دې سره د عقل هیڅ تعلق نشته.

ماتریدیه اومعتزله وائې: چې په حسن د بعض افعال شرعیه وو او په قبح د بعض افعال شرعیه وو حاکم عقل دی بیا د معتزله او ماتریدیه په مینځ کې اختلاف دی [1].

---

(۱):- یعني کوم فعل ته چې عقل حسن وویل هغه حسن وي اوکوم فعل ته ئې چې قبح وویل هغه به قبیح وي ابن الشهید ۱۲.

## مابه الاتحاد او مابه الامتیاز په مابین د ماتریدیه او معتزله کې

**مابه الاتحاد**: دا دی چې دواړه فرقې داخبره کوي د بعض افعالو شرعیه وو په حسن او قبح باندې عقل حاکم دی.

**مابه الامتیاز**: ماتریدیه وائې چې مدرک او حاکم د حسن او قبح د افعال شرعیه و عقل دی خو بعد له ورود د شرع نه یعنې ترڅو چې شریعت وارد شوی نه وي عقل حاکم او مدرک نشې کیدلی.

معتزله وائې چې د ورود د شرع نه بغیر هم عقل په هر حال کې حاکم دی دا حاکمیت د عقل تر شرع پورې موقوف نه دی دا توقف او عدم توقف مابه الامتیاز دی دا اختلاف اصلًا په یو سوال باندې بناء دی هغه دا چې.

**سوال**: خالق د افعال حسنه وو او سیئه وو څوک دی؟

دا اختلاف بیایو ازې د ماتریدیه او معتزله په مابین کې نه دی بلکه د ټول اهل السنت والجماعة سره دی.

اهل سنت والجماعة: وائې چې خالق د حسناتو او قبائحو تولو یو ازې الله تعالی دی.

معتزله: وائې چې خالق د قبائحو عبد (بنده) په خپله دی ځکه نسبت د قبح الله تعالی ته نه کیږي او حال دا چې دا خبره کول خو شرک دی هغه دا سې چې دوئ وائې چې خلق د قبیح قبیح دی او الله جلّ جلاله قبیح عمل څخه منزه دی او تاسو په مشکوة کې وویل چې (القدریة مجوس هذه الامّة [1]) مجوسو به هم دا سې ویل چې خالق د خیر یزدان او خالق د شر اهرمن دی نو حدیث کې قدریه و ته د مجوسو نسبت شوی دی هغوئ دوه خالقان مني او معتزله بې شماره خالقین مني.

اهل السنت والجماعة: اهل سنت والجماعة وائې چې یو خلق دی او بل کسب دی خلق د قبیح قبیح نه وي بلکه کسب د قبیح قبیح وي لکه جوړول د توپک قبیح نه دي بلکه دا کمال دی خو د دې استعمال (کسب) بې ځای قبیح دی.

---

(۱) سنن أبي داود (٤/ ٢٢٢) رقم الحديث ٤٦٩١-

- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي بِمِنًى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْقَدَرِيَّةُ مَجُوسُ هَذِهِ الْأُمَّةِ: إِنْ مَرِضُوا فَلَا تَعُودُوهُمْ، وَإِنْ مَاتُوا فَلَا تَشْهَدُوهُمْ

**تفسيربيضاوي**:( الأَول انّ القوم لما اعْراضوا عن الحقِّ وتمَكن ذلک فی قلوبهم حتَّی صار كالطبِيعة لهم شبه بالوصف الخلقی والمجبول عليه)

**ترجمه**: اول تأويل دا دی چې دغه قوم (كفارو) كله اعراض له حق نه اوكړو او دا اعراض د دوئ په زړونو كې ثابت شوی تردې چې دا اعراض د دوئ د طبعيت په منزله او ګرځيد نو الله تعالی دا اعراض د وصف خلقي (ختم القلب) سره مشابه كړ چې دغه وصف سره دوئ پيدا پيدا شوی دی.

**تشريح**: معتزله چې هر تأويل ذكركوي د الله جلّ جلاله د طرف نه به پكې دتخليق ذكرنه كوي خلاصه د اول تأويل دا چې مختوم القلوب خلک په ګناهونو كې ډير منهمک شوي دي چې اعراض عن الحق ئې په زړونو كې ځای نيولی د ختم القلب او اعراض په مابين كې يوه علاقه ده ختم القلب ملزوم او تمكن الاعراض ورسره لازم دی دا علاقه دلازم او ملزوم وه پكار ده چې ويلي ئې وائي چې تمكن الاعراض فی قلوبهم ليكن هركله چې په دواړو كې نسبت د لزوم وو نو لفظ د ختم ئې استعاره د تمكن لپاره راوړی شو حقيقت كې تمكن الاعراض مشبه او ختم القلب مشبه به دی ترجمه د ختم الله به داسې نه كوې چې الله تعالی مهر د دوئ په زړونو لګولی دی بلكې ذكر د ملزوم مراد ترينه لازم دی مطلب اعراض د دوئ په زړونو كې ځای نيولی دی د تمكن نسبت به هم الله جلّ جلاله ته نه كوې لكه په اعبدوا ربّكم كې اهل سنت والجماعة وائي چې ذكر د ملزوم يعنې اعبدوا او مراد ترينه لازم دی چې وحّدوا ربكم دی.

**تفسيربيضاوي**:( الثانی انّ المرادَ به تَمثِيل حال قُلوبهم بقلوب البَهائِم الّتی خَلقها الله تعالی خالِية عن الفطين اوقلوب مقدر ختم الله عليها ونَظيرهُ سال به الوادی اذَا هلک وطَارت به العنْقاء اذا طَالت غيبَته)

**ترجمه**: دويم تأويل دا چې ختم الله كې مراد تمثيل د حال د زړونو د دوئ دی له زړونو د ځناور سره چې هغه الله تعالی د زيركتيانه خالي پيدا كړی دي اويا زړونه مقدر چې په هغې باندې مهر لګولی وي د دې مثال راسې دی (وبهيد په هغه باندې وادي) كله چې هلاک شي او په (فلاني باندې عنقاء پرواز كړيدی) چې كله د دغه فلاني غائب كيدل اوږده شي.

**تشریح**: دا د معتزله و یدیم تأویل دی هغه داسې که استعاره هم وي نو دا تمثیل دی او تمثیل حقیقي دی قلوب د دوئ مشبه شو اوقلوب د بهائمو مشبه به شو اولفظ د ختم مستعار شو نو د ختم الله معنی خلو عن الفطانة (زیرکتیا) ده نو دا لفظ دختم د قلوب الکفار لپاره استعاره شوه نو د ختم الله معنی دا شوه د دوئ زړونه له فطانة نه خالي دي لکه د بهائمو دزړونه چې خالي وي بلکه داخو د بهائمو نه هم ښکته دي نو د تخلیق ثبت الله تعالی ته ونشو.

**او قلوب مقدر**: سره ئې یوبل تأویل هم ذکرکړی دی چې ختم په خپله معنی بناء شي صرف تشبه مراد شي دا تمثیل دی او تمثیل په دوه قسمه دی (۱) تمثیل حقیقي او (۲) تمثیل تخییلي که مشبه به محقق الوقوع وي دیته حقیقي وایي او که مشبه به فرض الوقوع وه دا تخییلي ده په دې ایت کې دواړه تمثیله کیدلی شي هغه داسې چې د کفارو معهودینو اعراض عن الحق کې چې کوم حال وي د هغه حال تشبیه یې د ځناورو له حال سره ورکړه چې کوم خالي عن الفطانة دي او د ځناورو زړونه خالي عن الفطانة کیدل امر محقق دی نو دا تمثیل حقیقي شو او تمثیل تخییلي په دې طریقې سره شو چې د کفارو اعراض عن الحق له هغه زړونو سره تشبیه ورکړی شوه چې د هغې په باره کې مختوم کیدل فرض کړی شوي دی بیا په طور د استعاره تمثیلیه چې کومه جمله په مشبه به دلالت کولو هغه د مشبه لپاره استعمال کړه او ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې مشبه (دزړونو مختوم کیدل) مفروض دي نو دا تمثیل تخییلي شو.

**ونظیره سال به الوادی**: په دې عبارت سره مقصود دمصنف رحمه الله د اولني (تمثیل حقیقي) لپاره مثال بیانول دي یو سړی ناڅاپه مړشو یامرض کې مړشو نو څوک درنه پوښتنه وکړي چې هغه فلاني څنګه دی نوته ووائې چې سال به الوادی سیلاب د وادې وړی ده مطلب هلاک شو ذکر د سال به الوادی او مراد هلک دی مراد د سیلاب نه یو لوی سیلاب دي چې هرڅه ئې هلاکوي نو سړی د هلاکت نه نه بچ کیږي سیلان دوادې سره هلاکت لازم دی ذکر دسال به الاوادی (ملزوم) او مراد هلاکت کوم چې ورسره لازم دی دا علاقه لزوم ده نوپه آیت کې هم ذکر دختم مراد ورنه فطانة خالي کیدل دي یعني دلته د

هلاکیدونکي سړي تشبه ورکړی شوه له داسې سړي سره چې د وادي او سیلاب اوبو ډوب کړی وي دا تمثیل حقیقي ځکه دی چې د سیلان الوادي په وجه هلاکت غالب الوقوع دی متحقق دی.

وطارت به العنقاء دا د تمثیل تخییلي مثال دی لکه په فلاني سړي عنقاء مرغه الوتی دی.

**عنقاء**: دا یو داسې مرغه وو چې انسان به ئې په پنجوکې وړل او دې ته عنقاء ځکه وائې د مرۍ سره ئې توره او سپینه پټه وه د کلبي د روایت په اساس دا په مقام رس کې و د دغې قبیلې پیغمبر حنظله بن صفوان علیه السلام و دلته د رمخ په نوم یو غرو دا عنقا به هلته په ځنګل کې څریده چې نور مرغان به پیدا نشو بیا به د کلي خواته لاړ چې څوک به کلی نه راووتل نو دا به ورپسې والوت په پنجوکې به ئې واخست او وبه ئې خوړلو بیا به ډیر وخت پورې دغه کلي ته نه راته چې کله به وږی شو بیا به راغی یو ځل دا مرغه د کلي په خواکې ناست وو چې یوه جینۍ د کلي نه راووتلې دې مرغه دغه جینۍ په خپلو پنجوکې او چته کړه اوله ځان سره ئې وي وړه نو د کلي خلک پرې ډیرزیات خفه شول ټول خلک حضرت حنظله بن صفوان (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) ته راغلل چې ښیرا وکړه چې الله تعالی دا مرغه ورک کړي نو حضرت حنظله (عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ) ښیرا وکړې هغه مرغه الله جلّ جلاله ورک کړو اونسل ئې هم الله جلّ جلاله ورک کړ په دې مقام کې د دې مطلب دا دی چې یو سړی ډیر وخت نه غائب شي نو د ده په حق کې وویلی شي چې طارت به العنقاء دلته د سړي د زیات غایب والي تشبیه ورکړی شوه د هغه سړي د حال سره کوم کوم چې مارغانو تختولی وي او عنقاء یو مروض مرغه دی نو مشبه به مفروض الوقوع شوه نو ځکه تمثیل تخییلي دی.

**تفسیربیضاوي**:(والثالث أن ذلک فی الحقیقة فعل الشیطان او الکافر لکن لما کانَ صدوره عَنه باقداره تعالی ایاه اسنداليه اسنادالفعل الی المسبب).

**ترجمه**: دریم دا چې په حقیقت کې دا ختم القلب فعل د شیطان یا د کافر دی لیکن هرکله چې د دې صدور د کافر نه د الله تعالی په قدرت ورکولو سره وو نو نسبت د فعل شوی دی الله جلّ جلاله ته په شان د نسبت د فعل مسبب ته.

**تشریح**: دا دریم تاویل ذکر کوي هغه داسې چې معتزله اهل السنة ته وایي چې موږ به ستاسو بیان کړی شوې معنی (احداث) اومنو لکن د دې نسیب الله تعالی ته حقیقتاً نه دی بلکې

مجاز عقلي دی په دې طريقې چې د فعل ختم اسناد ، اسناد السبب الى المسبب دی هغه داسې چې احداث الهيئت حقيقت کې فعل د شيطان يا د کافر دی خو د الله تعالى د قدرت ورکولو په وجه ترينه صادر شوی دی نو قدرت دصدور فعل سبب دی ګويا الله تعالى د احداث هيئت مسبب يعنې داسبابو ورکونکی شو؛ نو مجازا د فعل ختم نسبت الله تعالى ته وشو لکه بنى الامير المدينة امير ښار جوړ کړ داحکم د امير سبب وو امير ئې مسبب دی.

**تفسيربيضاوي**:( وَالرَّابع اِعراقهم لما رسخَت فی الکُفر وَ استَحکمتْ بحَيْث لمْ يبْق طَريق الى تَحصيل ايمانِهم سِوى الالجَاء والقَسر ثمّ لم يقسره ابقَاء عَلى غَرض التَّکليف عَبَّر عن تَرکه فانّه سدّ لايمَانهم وفِيه اشعارٌ على تَمادی أَمرهم فی الغی وتنَاهی انْهماکهم فی الضّلال والبَغی)

**ترجمه**: څلورم تاويل دا هرکله چې دکفارو په رګونو کې کفر داسې سخت مظبوط شوي وو چې ددوئ لپاره دايمان دحاصلولو لاره باقي نه وه سواه د مجبورولو او زبردستۍ نه بيا الله تعالى په دوئ باندې جبر او نه کړو د غرض د تکليف د باقي ساتلو لپاره الله جلّ جلاله دترک د قسر (جبر) نه په ختم سره تعبير کړی شوی دی نو يقينًا دا ترک د قسر د دوئ لپاره دايمان نه بنديز دی په دې مذکوره مضمون کې تنبيه ده په تباعد د دوئ په ګمراهۍ کې او انتهائي وړاندې په ګمراهۍ اوسرکشۍ کې تللې وو (نوځکه ئې سوا دمجبورولو نه بله لاره نه وه).

**تشريح**: دا څلورم تاويل دی حاصل يې دا دی چې په دې ايت کې استعاره تبعيه ده هغه داسط چې کله د کفارو معهودينو په زړه کې کفر داسې سخت او مظبوط شو چې د ايمان راوړلو هيڅ لاره يې نه وه ماسوا د الله تعالى دقدرت نه چې دا خلک په ايمان راوړلو مجبور کړي لکن بيا هم الله تعالى مجبور نه کړل نو ګويا الله تعالى قسر الجاء جبر لره ترک کړو دې ترک جبر لره يط تشبيه ورکړه د مصدر ختم سره بيا په طريقې د استعارې تبعيې د مشبه به مصدر ختم نه خَتَمَ فعل ماضي مشتق کولو سره په مشبه کې يې استعمال کړو وجه د شبه داده لکه څنګه چې ختم سد باب وي د نورو لپاره يعنې د خط مضمون له نورو خلکو منع کوي دغسې د الله تعالى ترک د جبر د دوی باره کې په حق د ايمان کې سد دباب دی.

اعراق جمع دعرق دی رګ ته وائي . دې توجیه کې هم دقبح نسبت الله تعالی ته ونشو.

**تفسیربیضاوي**:( و الخَامس أن يكونَ حِكاية لمَا كَانت الكَفَرَةُ يقولون مثل (قُلُوْبُنَا فِى اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَا اِلَيْهِ وَفِى اٰذانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنَک حِجَابٌ [1]) تهكما واستهزاء بِهم وكقوله تعالى (لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا[2])

**ترجمه**: پنځمه توجیه داچې دا حکایت دهغې خبرې دی چې کافرانو به ویل (ترجمه) چې زمونږ زړونه د هغه دعوت نه چې مونږ له ئې راکوي په پردو کې دي او زمونږ په غوږونو کې درونوالی دی او په مابین زمونږ او ستاکې حجاب دی دا تهکم او استهزاء ده دوی پورې یا لکه دا قول دالله جلّ جلاله (داهم دکافرانو دقول حکایت دی) (ترجمه) نه دي کافران دکفر نه جداکیدونکي تردې چې دوئ ته یو رسول راشي.

**تشریح**: د پنځم تاویل حاصل دادی چې په ایت کې ختم په خپله معنی حقیقي یا مجازي ده کومه چې اهل السنة بیان کړې ده او اسنادالی الله هم حقیقت دی لکن د کفارو د ګمان په اعتبار چې هغوی به ویل زړونه زمونږ په پرده په غوږونو کې مو پردې دي په دې وجه مونږ د حق ادراک نشو کولی او دلایل په نظر نه راځي او داعقیده به یې په الفاظو بیانوله (قُلُوْبُنَا فِى اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَا اِلَيْهِ وَفِى اٰذانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنَک حِجَابٌ) او زموږ او محمد (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) تر منځه حجاب ده یعنې د هغه معجزات نه وینو نو د کفارو دا اقوال الله تعالی په ختم الله سره ذکر کړل.

اوس دا خبره چې دانقل بالفظ دی که بالمعنی دی؟ بالفظ خو ممکن دی ځکه کیداشي الله تعالی دخپل بنده په ژبه هغه الفاظ جاري کړي کوم الفاظ یې چې په خپل کلام کې داخل کړي وي لکن د ټولو مفسرینو په اجماع دلته نقل بالمعنی دی (ختم الله علی قلوبهم) دهغوی د (قلوبنا فی اکنة) معنا ده د (وعلی سمعهم) د هغوی د دې قول (في اذاننا وقر) معنی ده،او (وعلی ابصارهم غشاوة) د هغوی د (ومن بيننا وبينک حجاب) معنا ده او بل دا د کفارو له ظاهر البطلان

(۱):-سورة حم السجدة :آية (۵)

(۲):- سورة اللبيّنة : آية (۱)

اقوالو پورې استهزاء ده کې دي دا خو الله تعالی حکايت کړی دی او دقبائحو ددوئ دقول بيان دی نو ختم کې مجاز نشته الله تعالی ددوئ دقول استهزاء کړيده.

**قاعده**: په حتی کې قاعده داده چې د حتی مابعد به د ماقبل نه مغيروي يعنې که ماقبل له حتی نه حکم ثبوتي و مابعد به سلبي وي نو دلته له حتی نه مخکې حکم سلبي ده چې عدم انفکاک د کفارو ده له کفر نه نو پکار خو داوه چې روسته له حتی څخه حکم ثبوتي وای يعنې کافران دکفر نه جدا شوی وائې يعنې په دې ايت کې (لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حتی ...) د دوی د عدم انفکاک اية درسولانو راتگ و نو چې رسولان راغله نو دوی بايد له کفر څخه منفک شوي وای جواب دادی چې دامعنی حکايت ده او تفسير خازن او تفسير روح المعاني د دې لفظ معنی کړيده (لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا) ای منفکين احد تر دې چې دوئ ته بينة راشي چې بينه راغله بعض ترينه منفک شول له کفر نه دلته حکم په کل افرادو نه دی بلکه جمله کافران مراد دي ځکه چې څه خلکو پکې ايمان راوړی.

**تفسيربيضاوي**: (السَّادسُ انّ ذلک فی الآخرة وانّما اخْبرعنه بالماضِی لتحققهِ وتَيقُّن وقوعِه ويشهَدلهُ قوله تعالی(وَنَحْشُرهم يوم القيامة علی وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وصُمًّا[1])

**ترجمه**: شپږمه توجيه داچې دا (ختم الله) به په آخرت کې وي او په ماضي سره ئې ترينه تعبير لپاره تيقن او تحقق د وقوع کړی دی او په دې دا قول د الله تعالی گواه دی (ترجمه) او راجمع به کړو مونږ دوئ لره يعنې کافرانو لره په ورځ دقيامت په مخونو باندې (مزل به په مخونو کوي) په داسې حال کې چې ړانده او گونگيان او کاڼه به وي.

**تشريح**: د معتزله و اوم تاويل او توجيه په دې توجيه سره دا له امر اخروي نه حکايت دی.

ای سيختم الله علی قلوبهم زرده چې په آخرت کې به الله جلّ جلاله د دوئ په زړونو او غوږونو مهر ولگوي دلته هم نسبت دقبيح الله جلّ جلاله ته ونشو ځکه اخرت دار التکليف نه دی هغه دارالجزا ده او ظالم ته سزا ورکول عين عدل دی.

---

(۱):- سورة الاسرآء: آية (۹۷)

**سوال**: کله ختم په تخرت کې نو بیا دې صیغې د ماضي سره تعبیر ترینه ولې وکړو د استقبال صیغه به دې استعمال کړې وه ؟

**جواب**: ختم او تغشیة په اخرت کې متحقق او متیقن الوقوع و نو د دغه تحقق او تیقن له وجې مو د امر غیر واقع له امر واقع سره تشبیه ورکړه لفظ د ماضي د مشبه به لپاره استعمالیده نو مشبه لپاره استعمال شو.

**تفسیربیضاوی**:( السَّابع ان المُراد بالخَتم وَسْم قلوبِهم بِسمة تعرفها الملائكة فيبغَضونَهم ويتَنَفَّرون عنْهم وعلى هذا المِنهاج كلامُنا وكلامهم فيما يضاف الى الله تعالى مَن طبع واضلالٍ ونحوهما)

**ترجمه**: اوومه توجیه دا دی چې د ختم نه مراد نشان دی چې الله تعالی د دوئ زړونه ملائکو ته نشاندار کړي دي نو ملائکې بیاله دوئ سره بغض کوي اوله دوئ څخه نفرت کوي او په هر هغه صفت کې چې الله جلّ جلاله ته دهغو شیانو نسبت اوشي په همدغې سره زمونږ (اهل السنت والجماعة) او د هغوئ (معتزله وو) خبرې دي د صفت د طبع او ضلال او د دې په شان نورو صفاتو کې.

**تشریح**: د معتزله و اوم تاویل دا دی چې ختم نه مراد د کفارو په زړونو باندې لایؤمنون لیکلو سره د عدم ایمان علامه قایمول دي او علامه د شي علت دشي نه وي نو علامه د عدم ایمان به علت د عدم ایمان نه وي هر کله چې علت دعدم ایمان نه شو نو مانع هم د ایمان هم نشو نو د علامې لږولو سره منع د ایمانه هم ثابته نشوه له دې سره الله تعالی طرفته د قبح نسبت هم لازم نشو.

(وعلى هذا المِنهاج كلامُنا وكلامهم) دې عبارت سره قاضي صیب یوه قاعده بیانوي هغه دا چې هر کله الله تعالی طرفته د طبع (مهر لګولو) او یا اضلال نسبت اوشي نو هلته به د اهل السنة او معتزله و ترمینځ هم دغه بحث وي یعنې موږ الله تعالی د خالق کیدو په حیثیت سره مسند الیه حقیقي منو او معتزله یې مجازي مني او به پکې تایل کوي.

**تفسيربيضاوی**:( وَعَلَى سَمْعِهِمْ ) معطوفٌ على قلوبهمْ لقوله تعالى (وَخَتَمَ عَلَى سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ ﴿۱﴾) وللوفَاق على الوَقف عَليه ولانّهما لما اشترکًا فی الاذْراک مِن جميع الجَوانب جعَل مَايمنَعها من خاص فِعلهمَا الختمُ الذى يَمنع من جميع الجهات)

**ترجمه**: دا على سمعهم په على قلوبهم ور عطف دی له وجې د دې قول دالله تعالى نه (ترجمه) او الله تعالى په غوږونو او په زړونو باندې مهر لګولی دی او په وقف د سمعهم باندې دقرآءوو اتفاق دی او بل دا څکه چې قلب او سمع د ټولو جوانبونه په ادراک کې سره شريک دي نو د خاص طورسره دی د دې د دې تصروف نه مانع جوړيدونکی هم ختم کيدلی شي چې د ټولو طرفونو نه تصرف بندوي.

**تشريح**: **دريم بحث** : على سمعهم کې دعطف په اعتبار سره دوه احتماله دي اول دا چې دا معطوف او وعلى قلوبهم معطوف عليه په دې صورت کې به دا د ختم الله جمله فعلي متعلق شي دويم احتمال دا چې وعلى سمعهم خپله معطوف عليه شي او وعلى ابصارهم معطوف شي او د عشاوة لپاره خبر مقدم شي د عشاوة د نکارة له وجې د خبر مقدم کيدل صحيح دي لکه في الدار رجل نو په دې صورت کې به وعلى سمعهم د جملې اسميې تتمه او جزوي په اول ترکيب سره به په على سمهعم باندې وقف کولی شي په دويمې ساه اخستلو سره به على ابصارهم لوستلی کيږي او د دويم ترکيب په اعتبار به په على قلوبهم باندې وقف کولی شي او على سمعهم نه به دويمه ساه اخستلی کيږي قاضي صيب اولنې ترکيب لره ترجيح ورکړي په درې دلايلو سره.

---

(۱):- سورة الجاثية : آية (۲۳)

**لومړی دلیل قطعي:** لقوله تعالی (وَخَتَمَ عَلَی سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وجعل علی بصره غشوة) دې آیت کې سمع له قلب سره راغلې ده او بصر جدا ذکر شویده نو معلومیږي چې د علی سمعهم عطف په علی قلوبهم باندې دی.

**دویم دلیل نقلي:** د ټولو قاریانو په دې اتفاق دی چې په علی سمعهم باندې وقف او کړی شي او وقف په هغه حکم کولی شي چې له مابعد سره څه تعلق نه وي نو معلومه شوه چې علی سمعهم د مابعد لپاره معطوف علیه نه ده.

**دریم دلیل عقلي:** د قلب او سمع تصرف او ادراک د انسان له ټولو جوانبو سره تعلق لري یعنې هر طرف نه زړه او غوږونه کار کولی شي نو د دې دواړو مانع به هم داسې شي وي چې له هر جهت څخه مانع وي او دغه مانع ختم دي له ختم سره هم خط له هر جانب څخه محفوظ ګوځي او بصر یوازې له وړاندې څخه ادراک کوي نو د دې مانع به هم دغسې شي وي چې له یو طرف نه مانع وي او هغه غشاوة ده نو معلومه شوه چې سمع له قلب سره شریکه ده او د اشرکت به هغه وخت ثابت شي چې علی سمعهم په علی قلوبهم باندې ورعطف شي.

**تفسیربیضاوي:**( وَ اِدْراک الأبصارِ لَمَّا اختص بجِهة المُقابلة جُعل المانِع لها عن فعْلها الغِشاوة المُختصَّة بِتلک الجِهة وکرّر الجار لِیکون أَدَّل علی شدة الخَتم فی الموضعَین و استقلال کل منهما بالحُکم)

**ترجمه:** ادراک د ابصارو چې خاص وو د مخامخ جهت پورې مانع د فعل د ابصارو پرده اوګرځولی شوه خاص په هم دغه جهت پورې الله جلّ جلاله حرف جار (علی) مکرر ذکر کړي دی د دې لپاره چې په دواړو ځایونو کې سخت والي د مهر باندې زیات دلالت کونکی شي او په هر یو د دې دواړونه چې په حکم کې مستقل دلالت کونکی شي.

**تشریح:** دلته معترض یو اعتراض کوي هغه دا چې

**سوال:** کله علی سمعهم په علی قلوبهم باندې ورعطف شو نو بیا تکرار د حرف جر(علی) ته څه ضرورت دی داسې به یې ویلي و (علی قلوبهم وسمعهم).

**جواب**: حرف جر د دوه خبرو لپاره مکرر راوړلی شو اول د شدت ختم دویم د شدت استقلال لپاره راوړلی شو یعنې چې د هر یو په مستقله توګه مختوم کیدلو باندې دلالت وکړي هغه داسې چې ختم خپل مفعول طرفته کله بالذات لکه (ختم الشيء) او کله بالواسطه متعدي کیږي لکه (ختم علی الشيء) که بالذات دا بیا په مطلق ختم باندې دلالت کوي او که بالواسطه وي بیا په شدت ختم دلالت کوي نو دلته علی حرف جر سره متعدي دی مفعول ته لِیکون أدَّل علی شدة الخَتم فی الموضعَین.

**تفسیربیضاوی**:( وَ وَحَّد السمع للامن من اللُبس و اعتبَار الاصلِ فانّه مصْدرٌ فی اصله و المَصادر لاتجمع اوعلی تَقدیر مُضاف مثل وعَلی حواس سمعهم)

**ترجمه**: او د التباس نه د بچ کیدلو لپاره ئې سمع مفرد ذکر کړې او بل په اعتبار د اصل سره چې سمع په اصل کې مصدر دی او مصادر نه جمع کیږي اویا په تقدیر د مضاف دا جمع ذکر ده لکه په حواسو داوریدلو د دوئ.

**تشریح**: دلته یو اعتراض دی له هغې جوابونه کوي.

**سوال**: څه وجه ده چې ابصار او قلوب ئې جمع ذکرکړل او سمع ئې مفرد ذکرکړه پکار خو دا و چې ویلي یې وای وعلی اسماعهم ؟

**جواب**: من اللبس یو دا چې خوف د التباس نشته مطلب داسې نشته چې دټولو کافرانو دی په یو غوږ اوریدل کولی څکه دا محال لره مستلزم کیږي هغه داسې چې اشیاء په دوه قسمه دي یو متصل بشخص غیر منفک بحال لکه اعضاء د انسان او بل منفصل عن شخص لکه جامې وغیره د انسان نو شی په مشترکه توګه هغه محال استعمالیږي چې کله د دویم قسم له جملې څخه وي لکه د یو انسان جامې لس کسان هم استعمالوی شي د اول قسم چې (متصل بشخص غیر منفک بحال) دی په مشترک ډول استعمال محال دی.

(۲)**جواب**: دا چې د مصدر اضافت جمع ته شوی دی او مصدر چې جمع ته مضاف شي نو مراد تقسيم د احادو په احادو وي نو مطلب ئې دا شو چې هريو په خپلو غوږونو اوريدل کوي او يا دلته تقدير د عبارت دی ای علی خواس سمعهم.

(۳)**جواب**: د زړه او بصر مدرک متعدد دي د سمع مدرک يو دی نو ځکه ئې مفرد ذکر کړ.

**تفسيربيضاوي**: (و الأبصار جمع بصر وهُو ادراک العينِ و قد يُطلق مَجازًا على القُوة الباصِرة وعلى العضو وكذا السمع ولعلّ المراد بهما فى الآية العضو لانّه اشد مناسبة للختمِ والتغْطيةِ وبالقَلب ما هو مَحل العِلم و قد يطلق وَ يرادُ به العقل و المعرفة كما قال تعالى (اِنَّ فِي ذَلِک لِمَنْ کَانَ لَهُ قَلْبٌ[۱])

**ترجمه**: ابصار جمع د بصر ده د سترګو ادراک ته وائې کله ئې مجازًا په قوة باصره باندې هم اطلاق کيږي او کله ئې په اندام (عضوه) د سترګو باندې اطلاق کيږي دغه شان سمع هم ده او شايد چې په آيت کې د دې نه اندامونه مراد وي ځکه چې دا ډير مناسب دی د مهر او د پردې کولو سره او د قلب نه مراد د علم ځای دی او کله له قلب نه عقل او معرفت مراد وي لکه الله تعالى فرمائې (ترجمه) په دغه ټولو بياناتو کې د رب پند او نصيحت دی هغه چالره چې خاوند عقل او معرفت وي.

**تشريح**: ابصار جمع د بصر ده د سترګو نور ته وايي خو مجازا يې په سترګو هم اطلاق کيږي يعني يو سبب او بل مسبب دی او ديته مجاز مرسل هم وايي او بصيرت د زړه د نور نوم دی دغه شان قلب هم وه معنا ګانې لري اوله معنا محل د علم يعني د غوښې هغه ټکړه چې صنوبري شکل لري او د علم محل دی او دا د قلب اصلي معنا هم ده او قلب ورته ځکه وايي چې د قلب معنی ده اوړيدل راوړيدل نو په زړه کې هم خيالات اوړې راوړي او ځينې وايي چې قلب د سپوږمی او ستورو په منزلونو کې يو منزل دی او محل د علم ته ځکه قلب وايي چې دا هم په معنوي طِور سره روښانه وي

(۱):- سورة القاف : آية (۳۷)

او دویمه معنا یې تعقل او ادراک کول دي او معنا مجاز دی او دې معنا ته الله تعالی په دې ایت کې اشاره کړې ده (اِنَّ فِي ذٰلِکَ لِمَنْ کَانَ لَهٗ قَلْبٌ)

امام نسفي او خازن رحمهما الله بیا د دې ایت داسې ترجمه کړې حاضر الفطنة چې خپل ټوله قوه مدرکه متوجه کړی.

**عقل**: امام شافعی رحمه الله فرمائي چې عقل په زړه کې وي او نور یې په دماغو کې وي او ابتداء یې له هغه وخت څخه وي کله چې په انسان کې روح پوکولی شي او دا آیت دلیل کې پیش کوي ذکر د محل مراد ترینه حال دی.[1]

امام ابو حنیفة رحمه الله فرمائي چې عقل په دماغو کې وي په دواړو کې تطبیق دا دی چې اصل په زړه کې وي خو پلوشې ئې د ماغو ته رسیږي.

**تفسیر بیضاوي**: (او انّما جاز امَالتُها مع الصاد لأنّ الرّاء المکسورَة تغلِب المُستعلية لمَا فيها من التَّکرير)

**ترجمه**: او په علی ابصارهم کې د صاد سره اماله جائزده ځکه چې راء مکسوره په صاد مستعلیة باندې غالبه وي ځکه چې په راء کې تکریر د صورت دی.

**تشریح**: تکریر د صورت قُرآء هلته معلوموي چې ځفت د حرف وکړي یعنې دا حرف ساکن کړيّ او همزه ورباندې داخله کړي نو حرف دراء دوچند اداء کیږي لکه اَرْ په یوځل سره راء نه اداکیږي او صاد کې داسې نه ده.

او بل په دې عبارت سره دفع هغه اعتراض ده کوم چې علی ابصارهم په یو قرأت باندې وارد شوی و هغه داسې.

**سوال**: حروف مستعلیة اووه دي صاد، ضاد، طاء، ظاء، عین، غین، او قاف. دا حروف مانع دي له امالې نه برابره خبره مخکې ترینه الف وي او روسته ترینه الف وي او مانع له امالې ځکه دي

---

(۱) شرح الخریدة البهیة: صـ ۳۲ دغه شان دا مذهب د امام مالک او امام شافعي هم دی. او صاحب د کتاب د عقل تعریف داسې کوي: سر روحاني تدرک به النفس العلوم الضروریة والنظریة.

چې مستعلیة ترفع الصوت غواړي یعنې اواز پکې اوچتیږي او اماله تسفل الصوت غواړي یعنې اواز پکې ښکته ځي نو که اماله پکې وشي دا به جمع د ضدینو شي .

**جواب**: په ابصارهم کې راء له هغو حروفو څخه ده په کوم چې د تلفظ په وخت کې مکرر کیږي ځکه په راء د تلفظ په وخت کې ژبه رپږدي داسې معلومیږي له څو راګانې دې چې دې داء کړې وي نو چې راء مکرره شوه کسره یې هم مکرره شوه او دوی د امالې تقاضا کوي او صاد مانع د امالې دی نو راء او کسره زیات دي او صاد یو دي د زیاتو په مقابل کې یو په نشته حساب وي نو ځکه اماله پکې صحیح شوه .

**تفسیربیضاوي**: (وَغشاوَة رُفِعَ بالابتِداءِ عند سیبویه وبالجار والمجرور عند الاخْفش ویؤَیّده العطف علی الجملة الفعلیة)

**ترجمه**: او غشاوة په نزد د سیبویه بناء بر ابتدائیت مرفوع دی او په نزد اخفش مرفوع دی په جار او مجرور (عامل محذوف) سره او ددې جملې په مخکې جملې فعلې باندې عطف د اخفش خبره تائیده وي.

**تشریح**: قاضي صیب دلته د غشاوة ترکیب بیانوي فرمایي چې په لفظ د غشاوة کې د اعراب دوه احتماله دي یا مرفوع ده او یا منصوب ده.

که مرفوع شي بیا امام سیبویه وایي چې رفعه بنا بر ابتدائیت ده (علی ابصارهم خبر مقدم او غشاوة ئې مبتداء مؤخره ده) ځکه چې غشاوة مبتداء او نکره ده او ابتدائیت دنکرې په ادنی تخصیص سره صحیح کیږي او هغه په تقدیم د جار او مجرور سره شوی دی نو تقدیر دا شو ثابتة علی ابصارهم او امام اخفش وایي چې رفعه بنا بر فاعلیت دی د سیبویه په نزد علی ابصارهم جمله اسمیه ده او د اخفش په نزد جمله فعلیه ده نو بیا به تقدیر د عبارت داسې وي (استقرت علی ابصارهم غشاوة).

خو دلته د اخفش د قول تائید له دې څخه هم کیږي چې علی ابصارهم غشاوة په ختم الله علی قلوبهم باندې باندې عطف شوی نو معطوف علیه جمله فعلیة ده نو پکار ده چې معطوف به هم جمله فعلیه وي ځکه په عطف کې دا موجب د تحسین دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وقرِءَ بالنَّصب على تقدير وَجعل على ابصارِهم غِشاوةً اوعلى حذف الجار و ايْصال الختمِ بنفسه اليه وَالمَعنى وختم على ابصارهم بغشَاوة وقُرِءَ بالضّم والرَّفع وبالفتح والنَّصب وهما لغتانِ فيها وَغشوة بالكسر مرفُوعة وبالفتح مرفوعة ومنصوبة وعشاوَة بالعين الغير المُعجمة)

**ترجمه**: اولوستلی شوی دی په نصب سره په دې تقدير سره چې ( جعل على ابصارهم غشاوة) او یا نصب په دې تقدير سره چې حرف جر محذف کړی شي او ختم بلاواسطه غشاوة ته متعدي کړلی شي معنی دا شوه (خَتَمَ اللهُ عَلَى قُلُوْبِهِمْ وَعَلَى سَمْعِهِمْ وَعَلَى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ) او دا غشاوة په ضمه د اول اوپه رفع دآخر سره (غُشَاوَةٌ) هم لوستلی شوی په فتح د اول او په نصب دآخر سره (غَشَاوَةً) هم لوستلی شوی دا دوه لغته په غشاوة کې دي او په کسرې د اول او په رفع د ثاني (غِشَاوَةُ) او په فتح د اول او په رفع د آخر سره (غِشْوَةٌ) اوپه فتح د اول اوپه نصب دآخر سره (غَشَاوَةً) او عشاوة په عين سره غير د غين معجم (بې نقطې) (ع) رونړد والي ته وائي [1].

**تشريح**: دلته اوس مصنف د قرائت شاذه بيان ذکر کوي او دا د غشاوة دويم حالت دی هغه دا چې په غشاوة باندې له دوه وجو نصب ولی شوی دی.

**لومړی**: دا چې دا دمفعوليت په وجه منصوب کړی شي هغه داسې چې له على ابصارهم څخه وړاندې يو فعل مقدر کړې شي چې پر هغې ختم دلالت کوي لکه لفظ د جعل نو اوس به تقدير دعبارت داسې شي وجعل على ابصارهم غشاوة بیا معطوف عليه (ختم) په دې باندې دلالت کوي نو اعتمادا جعل فعل حذف کړی شو.

**دويم**: منصوب بنزع الخافض هغه داسې چې دا عبارت ( وعلى ابصاهم غشاوة) په اصل کې داسې و (وختم على ابصارهم بغشاوة) بغشاوة جار او مجرو متعلق و تر ختم پورې او ختم په واسطې د باء سره غشاوة ته متعدي و لکن باء حذف کړی شوه او ختم بلاواسطه غشاوة ته متعدي شو همدا منصوب بنزع الخافض دی.

---

(۱):- كذا فى تفسير زادالمسير: ۱ / ۳۰.

وقُرِءَ بالضّم والرّفع وبالفتح... له دې ځای څخه د غشاوة شپږ نور قرأتونه ذکر کوي چې وجه د حصر يې دا دد چې دا غشاوة په خالي نه وي يا به بالعين وي يا به بالغَين وي که اول و دا شپږم قرأت لکه عشاوة او که دويم (بالغين) و دا به يا خالي نه وي يا به سره له الف وي يا به بغير له الف څخه وي که سره له الف و دا به يا خالي نه وي يا به بضم الغين يا به بفتح الغين که بضم الغين وي دا لومړی قرأت دي لکه غُشاوة او که بفتح الغين وي دا دويم قرأت دي لکه غَشاوة او که بغير له الف څخه وي دا به يا خالي نه وي يا به بکسر الغين وي يا به بفتح الغين وي که بکسر الغين وي دا دريم قرأت دی لکه غِشوة او که بفتح الغين وي دا به يا خالي نه وي يا به اخر مرفوع وي او يا به يې اخر منصوب وي که اول صورت و دا څلورم قرأت او لکه غشوةٌ او که دويم صورت وي دا پنځم قرأت دی لکه غشوةً.

## د رفع ، ضم ، نصب ، فتح ، جراوکسرې تر منځ توپير

بالضّم والرّفع وبالفتح والنّصب... دې عبارت سره مصنف د دې الفاظو ترمنځ توپير بيا نوي هغه داسې چې يو ضم ، فتح ، کسر . دا په حرکات بنائيه دي رفع ، نصب ، جر . اعرابات معربه دي او ضمة ،فتحة ، کسرة دا مشترک دي بين المعرب والبناء . او بل دا چې د کلمې اول او وسط مبني وي نو ځکه قاضي صيب په ذکر شوي عبارت کې د غشاوة اول حرف ته حرکات بنائيه استعمالوي او اخر ته معربه استمالوي وايي: بالضّم والرّفع وبالفتح والنّصب . دا ټول قرأتونه شاذ دي.

**تفسيربيضاوي**: ( وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ) وعِيدٌ وبيانٌ لِمَا يستَحقُّونه وَالعذاب كَالنّكال بناء ومعْنى تقُول أَعذاب مِن شئ وَنكِلَ عنْه اِذَا أَمْسک ومنه المَاء العذاب لأَنّه يقْمع العَطش ويردعه ولِذلک سمى نَقاخاً وفراتًا ثم اِتّسع فَاطلقَ علَى كلّ ألِم قَادح وان لَم يكنْ نكالًا اى عقابًا يردع الجَانى عنْ المُعاوَدة فَهو أَعم منهمَا)

**ترجمه**: او د دوئ لپاره به لوی عذاب وي دا ايت وعيد او بيان دی د هغې سزا د کومې چې دا کفار مستحق دي او عذاب په وزن او معنی کې د نکال پشان دی لکه چې څوک کله د يو شي نه منع شي نو ته ووائې اعذاب عن الشئ او نکل عن الشئ او د دوئ مفهوم نه ماء العذب (خوږې اوبه) مأخوذ او مشتق دي ځکه چې دا تنده منع کوي د دې وجې نه خوږو اوبو ته نقاخ او فرات هم وائي

یا په دغه لفظ کې پراخې او کړې شوه نو په هر ثقیل درد باندې ئې اطلاق وکړی شو اګرکه دغه ثقیل درد سره منعه او نه شي معنی دا چې مجرم دوباره له جرم کولو نه منع کړي نو په دې سره عذاب د نکال او د ألم ثقیل نه عام شو.

**تشریح**: قاضي صیب دلته دوه بحثه کوي لومړی بحث په کلمه د (عذاب) کې او دویم بحث په کلمه د (عظیم) کې.

**لومړی بحث**: عذاب یا مشتق دی له مجرد او یا له مزید ځکه که له مجرد څخه مشتق شي دا به د نکال مشابه وي په وزن او معنا کې په وزن کې مشابهت خو یې څرګند دي چې دواړه د (فعالٌ) په وزن دي او په معنا کې مشابهت یې دا دی چې دواړه د منع او بندولو په معنا دي او علامه حفاجي رحمه الله په حاشیة الشهاب کې وایي چې د دې خپله معنا د خوراک، څښاک او خوب نه د بندولو ده له همدې وجې اوبو ته هم العذاب ویلی شی ځکه خوږې اوبه هم تنده بندوي او خوږو اوبو ته نقاخ او فرات ویلی شي نقخ او فرت ماتولو او زړه زړه کولو ته وایي نو خوږې اوبه هم تنده ماته او زړه زړه کوي بیا په کلمه د عذاب کې وسعت وشو او مجازا یې اطلاق په درد ثقیل وشو اګر که په درد ثقیل کې منع نه وي یعنې مجرم دوباره له جرم نه منع کوي له دې وجې نه عذاب له نکال او عقاب دواړو نه عام دی عقاب هغې سزا ته وایي چې د جرم په بدل کې وي بیا مجرم له جرم منع کړې او که نا او نکال هغې سزا ته وایي چې مجرم له جرم څخه منع کړي او عذاب کې دا یو شرط هم نشته یعنې د جرم په بدل کې وي او که نه وي مجرم منع کړي او که نه.

**تفسیربیضاوي**: (وَقِيلَ اشتِقاقهُ منَ التَّعذيبِ الّذى هوَ إزالة العَذاب كالتَّقذِيَة وَالتَّمريض)

**ترجمه**: ویلی شوي دي چې عذاب له تعذیب نه مشتق دی او تعذیب خوند ختمولو ته وائې لکه تقذیه سترګي نه بنلکي لري کولو ته وائې) اوتمریض وائې (مریض ته چې دوا ورکړې اومرض زائل شي).

**تشریح**: دا دویم احتمال بیانوي هغه داسې بعض علماؤ ویلي چې عذاب مشتق دی له مزید (تعذیب) څخه کوم چې د باب تفعیل مصدر دی او د باب تفعیل یوه ماده سلب المأخذ دی نو په

تعذیب کې هم دغه ماده ملحوظه ده نو په دې اعتبار سره به د عذاب معنا وي یو خوندورشی زایله کول لکه څنګه چې د تقذیة معنا ده له سترګو بنلکی لرې کول او د تمریض معنا ده مرض لرې کول.

**تفسیربیضاوي**: وَالعَظیم نَقِیض الحَقیرِ و الکَبیر نَقیض الصَّغیر فکمَا أنَّ الحَقیر دُون الصَّغیر فَالعظیم فَوق الکَبیر وَمعنی التَوصیف به أنّه اذَا قِیس بِسائر مَایُجانسه قصرعَنه جَمیعه وحَقر بِالاضافَة الَیه ومَعنی التَّنکِیر فی الآیَة أَنَّ علی أبصارهم نوعٌ غشاوَة لیس مِمّا یتَعارفه النَّاس وهو التَّعامی عَن الآیات ولَهم من الاَلَمِ العظام نوع عظِیم لَایعلم کنهَه الّا الله )

**ترجمه**: او عظیم نقیض د حقیر دی او کبیر نقیض د صغیر دی څنګه چې حقیر له صغیر نه کم دی دغه شان عظیم د کبیر نه کم دی او معنی د عذاب په عظیم سره موصوف کولو کې داده چې کله د دې (عذاب) له متعدد الجنس عذابونو سره موازنه وشي نو ټول عذابونه به د دې نه کمیږي او په نسبت سره دې ته حقیر ګڼل کیږي او د عذاب نکره ذکرکولو سره معنی دا دی چې د دوئ (کفارو) په سترګو یو قسم پردې وي چې خلک هغه پردې نه پیژني او هغه ځان په تکلیف سره د آیاتونو نه ړوندوالی دی او په زوره سترګې پټول دي او د دوئ لپاره به لوی لوی دردونه وي یوه داسې لویه نوعه چې د هغې حقیقت د الله جلّ جلالُه نه سوا بل چاته نه معلومیږي.

**تشریح**: **دویم بحث**: عظیم او کبیر د عظمت د بیانولو لپاره استعمالیږي او صغیر او حقیر د خساست لپاره استعمالیږي بیا په عظیم او کبیر کې عظیم ډیر اشرف دی له کبیر نه او په صغیر او حقیر کې خقیر ډیر خسیس دی له صغیر نه دا ځکه چې د حقیر نقیض عظیم دی او د ډیر خسیس نقیض ډیر اشرف وي نو عظیم ځکه اشرف دی له کبیر نه او د صغیر نقیض کبیر دی لکه څنګه چې صغیر کې ډیر خساست نه دغسې به یې نقیض کې شرافت زیات نه وي له عظیم نه او دا چې عظیم د کبیرنه په معنی کې زیات دی عظیم نه مراد لوی والی په کیفیاتو کې وي او د کبیر نه لوی والی په مقدار او افرادو کې وي.

او عذاب يې په عظيم سره ځکه موصوف کړ چې کوم عذابونه کافرانو ته په اخرت کې تيار شوي هغه په نسبت سره د نيوي عذابونه ډېر لوى دي او دنيوي عذابونه د هغې په نسبت سپک دي او بل دا چې الله تعالى په دې ايت کې غشاوة او عذاب واړه نکيره ذکر کړل دا مذهب علامه زمخشري دى هغه وايي چې په غشاوةٌ او عذابٌ داوړو کې تنوين لپاره د تنويع ده کفارو به ويل زموږ په سترګو يو ډول پردې دي چې نور خلک پرې نه پوهيږي چې هغه د الله په ايتونو سترګې پټول دي نو الله تعالى هم د دوى په مقابل کې داسې اخروي عذاب مقرر کړ چې د الله جل جلاله سوا بل هيڅوک پرې نه پوهيږي.

او امام سيبويه فرمايي: چې په دې کې تنوين لپاره د تعظيم دى نو معنا به داشي چې د کفارو په سترکو ډېرې لويې پردې وې نو الله جل جلاله يې په مقابل کې لوى لوى عذابونه هم مقرر کړل په دې صورت کې به عظيم د عذاب لپاره صفت د تاکيد له قبلې څخه وي.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَما هُمْ بِمُؤْمِنِينَ.

**تفسيربيضاوي:** ( وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ لما افتتح سبحانه وتعالى بشرح حال الكتاب وساق لبيانه، ذكر المؤمنين الذين أخلصوا دينهم لله تعالى وواطأت فيه قلوبهم ألسنتهم، وثنى بأضدادهم الذين محضوا الكفر ظاهراً وباطناً ولم يلتفتوا لفتة رأساً، ثلث بالقسم الثالث المذبذب بين القسمين، وهم الذين آمنوا بأفواههم ولم تؤمن قلوبهم تكميلاً للتقسيم، وهم أخبث الكفرة وأبغضهم إلى الله لأنهم موهوا الكفر وخلطوا به خداعاً واستهزاءً، ولذلك طول في بيان خبثهم وجهلهم واستهزأ بهم، وتهكم بأفعالهم وسجل على غيهم وطغيانهم، وضرب لهم الأمثال وأنزل فيهم إِنَّ الْمُنافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وقصتهم عن آخرها معطوفة على قصة المُصَرِّينَ.

**ترجمه:** او ځيني له خلکو څخه هغه دي چې وايي موږ ايمان راوړى په الله تعالى او په ورځ د اخرت باندې او حال دا چې دوى مومنان نه دي. هرکله چې الله تعالى د قرآن پاک د حال وضاحت شروع کړ او وروسته يې د مومنانو يادونه وکړه چې ځا خپل دين د الله تعالى لپاره خاص کړ او ژبه يې له زړه سره موافق وي نو له دغو مومنانو سره يې د دوى د اضداد (کفار) هم ذکر کړل چې په خپل کفر کې ظاهراً او

باطناً دواړو اعتبارونو سره خالص و او دوی بالکل ايمان او کتاب طرفته وروه هم نه کتل په دريم نمبر کې يې هغه ډله ذکره کوم چې د دواړو (کفارو او مومنانو) په مينځ کې دي يعنې په ژبه مومنان دي او په زړه سره کافران دي او دايې د تقسيم د مکمل کولو لپاره ذکر کړل دا دريم قسم خلک د الله تعالی په نزد ډير بدترين او مبعوض خلک دي ځکه چې دوی په کفر دايمان اوبه واړولې او بل په دوی کې له کفر سره فريب، دوکه او استهزا هم موجوده وه نو په دې وجه الله جل جلاله د دوی په حباثت کې طوالت وکړ دوی ته يې جاهل وويل او له دوی سره يې د استهزاء معامله وکړه او د دوی د افعالو په سلسله کې يې د دوی ذلت بيان کړو او هم يې د دوی د ظغيان او سرکشي په حقله قطعي فيصله وکړه او هم يې د دوي په اړه (إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) ايت نازل کړو دا ټول عبارت معطوف دی په هغه عبارت کوم بيان چې د مصرين علی الکفر لپاره و.

**تشريح**: دلته قاضي صيب د دې ايت ربط بيانوي هغه داسې چې د سورت بقرې په ابتداء کې خو د قران اوصاف حميده بيان شوي و بيا د منزل عليهم حال بيان شوی و له نزول د قرأن څخه او له ترقي د اسلام څخه وروسته دوی درې ډلې شول (۱) يوه هغه ډله وه چې د زړه له تله يې په قران ايمان راوړ او د ظاهر او باطن دواړو په اعتبار سره يې اسلام ته غاړه کيښوده (۲) هغه ډله وه چې په کفر باندې کلک ولاړ و او ظاهر او باطن يې له ګندګۍ څخه ډک و (۳) هغه ډله وه چې دوه مخي و په حقيقت کې کفار و خو په او په ظاهر يې ځانونه مسلمانان معرفي کول تر څو سر او مال يې خوندي شي قاضي صيب فرمايي الله تعالی د منافقانو د حباثت د ظاهرولو لپاره د دوی تذکره مستقله وکړه او په جديدو طريقو سره يې د دوی رزالت واضحه کړ لکه يوځای وايي (ومايشعرون) دوی شعور نه لري بل ځای وايي (اولئک الذين اشترو الضلالة بالهدی) بل ځای وايي (في طغيانهم يعمهون) بالاخره د دوی په حقله يو خطرناکه فيصله وکړه (إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) چې منافقان په جهنم کې تر ټولو لاندې پراته وي.

په دې (وقصتهم عن آخرها معطوفة علی قصة الْمُصِّرِّينَ) عبارت په عطف باندې خبره کوي فرمايي چې څومره بحث د منافقانو په اړه وشو دا ټول مجموعه عطف دی په هغه په بحث چې هغه د

مصرين على الكفر په اړه تير شو يعني يوه يوه جمله على الانفرا : پرې نه دى ورعطف شوې يعني عطف د قصې دى په قصې باندې هر كله چې دا معطوف او معطوف عليه نو بيا خو د دوى تر منځ مناسبت پكار وي نو مناسبت يې څه دى فرمايي مناسبت دادى چې د مصرين على الكفر بحث لپاره د اظهار د قباحت د دوى او دا بحث هم د دې لپاره دى چې د دوى د ظاهر او باطن قباحت ظاهره كړي.

**تفسيربيضاوي**: (والناس أصله أناس لقولهم: إنسان وأنس وأناسي فحذفت الهمزة حذفها في لوقة وعوض عنها حرف التعريف ولذلك لا يكاد يُجْمَع بينهما. وقوله:

إنَّ المنايا يَطَّلِعْنَ على الإناس الآمنِينَا شاذ. وهو اسم جمع كرجال، إذ لم يثبت فعال في أبنية الجمع. مأخوذ من أنس لأنهم يستأنسون بأمثالهم. أو آنس لأنهم ظاهرون مبصرون، ولذلك سموا بشراً كما سمي الجن جناً لاجتنابهم).

**ترجمه**: ناس په اصل كې أناسٌ دى ځكه چې عرب انسان، أنس او أناسي وايي همزه ترينه حذف شوه په شان د لفظ د (لوقة) (چې په اصل كې الوقة و) په عوض كې يې لام تعريفي پرې داخل كړو ځكه چې همزه او لام تعريفي په وخت نشي جمعه كيدلى او هر چې د شاعر قول دى (إنَّ المنايا يَطَّلِعْنَ على الإناس الآمنِينَا) دې كې د دواړو جمعه كيدل شاذ دى او لفظ د اناس اسم جمعه دى په شان رجال هر كله چې فُعال وزن له جمعو څخه ثابت نه و او دا اخستل شوى دى له انس څخه چې باب ضرب يا سمع دى انسان ورته ځكه وايي چې دا هم له خپل همجنس څخه أنس حاصلوي يا أنس له باب افعال څخه دى ځكه انسان په مخ د ځمكه ظاهر دى په سترګو ښكاري له همدې وجې ورته بشر وايي لكه څنګه چې جن ته جن د پټيدلو له وجې وايي.

**تشريح**: دلته د درې بحثونه كوي (۱) د الناس صرفي تعليل (۲) د صيغې نوعيت (۳) مأخذ منه او مشتق منه.

**لومړى بحث**: سلمه بن عاصم رحمه الله وايي ناس او اناس كې هيڅ تعليل نه دى شوى بلكې دواړه مستقلې مادې دي امام كسايي فرمايي چې ناس اجوف واوي دى دا الف يې له واو څخه بدل راغلى دى نو له نوس څخه مشتق دى ځكه تصغير يې نُوَيس دى او تصغير شى اصل ته رد

کوي، ناس الشيء هغه مهال ويلی شي چې کله په يو شي کې حرکت او ضراب راشي تنوس الغصن هغه وخت ويلی شي کله په څانګه کې باد حرکت راولي نو انسان هم په نسبت سره نورو حيواناتو ته زيات حرکت کونکی دی نو ځکه ورته ناس ويلی شي. او قاضي صيب چې کوم قول کړی دا د سيبويه او جمهورو قول دی دوی وايي چې الناس په اصل کې أناس و همزه حذفه شوه لکه څنګه چې له (لوقة) څخه همزه حذف شوه چې په اصل کې الوقة و د همزې په عوض کې ترينه لام تعريفي راوړلی شو قاضي صيب د خپل قول تائيد له درې کلماتو څخه کړی دی لومړی انسان دويم انس دريمه اناس استدلال داسې کوي چې انسان او انس د ناس مفرد من غير لفظه دي نو په مفرد کې همزه دی د دې خبرې دليل دی چې اصل کې همزه دی او اناس د جمعې صيغه دی او جمعه هم شی اصل ته رد کوي نو معلومه شوه چې په اصل کې دلته همزه شته.

(ولذلك لا يكاد يُجْمَع بينهما) دا په ماقبل تفريع دی چې په الناس کې له همزې څخه لام عوض دی او عوض او معوض عنه اجتماع او ارتفاع دواړه محاله نو ځکه الناس نشي ويلی او هر چې شعر دی هلته هغه شاذ دی پوره شعر داسې دی

ان المنايا يطلعن على الناس الا منينا : فتذرهم شي وقد كانوا جميعا وافرين.

بيشکه مرګ په خلکو باندې ناڅاپي راځي په داسې حال کې چې دا خلک ترينه غافله او مطمئن وي او جدا جدا يې کړي او د هر لوی تعداد يې جمعه کړي.

**جمع او اسم جمع:**

**دويم بحث:** فرمايي چې الناس صيغه د اسم جمعې دی د جمعې او اسم جمعې تر منځ درې فرقه کوي (١) اسم جمعه هغه اسم دی چې په مافوق الاثنين دلالت وکړي او مجموع يې اوزانو نه وي خوا مفرد من لفظه لري او که نا؟ (٢) د اسم جمعې د تصغير راوړلو لپاره د مفرد طرفته د واپس کولو ضرورت نه وي (٣) د اسم جمعې ورود خلاف القياس وي خو داد نحاتو رايه اما اهل لغت د جمعې او اسم جمعې تر منځ هيڅ فرق نه کوي.

(إذ لم يثبت فعال في أبنية الجمع) په دې عبارت سره دا ثابتوي چې دا اسم جمعه دی جمعه نه دی ځکه فُعال وزن په اوزانو د جمعه کې نشته.

**دريم بحث:** د اناس ماخوذ منه مجرد هم کيدی شي او مزيد هم که مجرد شي بيا پکې درې احتماله دي او دريواړه صحيح دي أنساً ، أنسةً أنساً اولنې دواړه مصادر له باب سمع او کرم څخه راځي او دريم له ضرب څخه د دريواړو معنا محبت حا ' ' که مأخوذ منه يې مزيد شي بيا پکې دوه احتماله دي يا به له باب افعال څخه ايناس وي په معنا د ليدلو نو ،نه ان ته انسان هم ځکه وايي چې په مخ د ځمکه ظاهر او مبصر وي او جن وايي پټ ته نو ده هم ځکه جن وايي له همدې وجې انسان ته بشر هم وايي چې څرمن يې ښکاره دی او يا به له مفاعله څخه موانسة وي.

**تفسيربيضاوي:** (واللام فيه للجنس، ومن موصوفة إذ لا عهد فكأنه قال: ومن الناس ناسٌ يقولون. أو للعهد والمعهود: هم الذين كفروا، ومن موصولة مراد بها ابن أبي وأصحابه ونظراؤه، فإنهم من حيث إنهم صمموا على النفاق دخلوا في عداد الكفار المختوم على قلوبهم، واختصاصهم بزيادات زادوها على الكفر لا يأبى دخولهم تحت هذا الجنس، فإن الأجناس إنما تتنوع بزيادات يختلف فيها أبعاضها فعلى هذا تكون الآية تقسيماً للقسم الثاني)

**ترجمه:** په الناس کې الف لام تعريفي د جنس لپاره دی او مِن موصوفه دی ځکه چې د ناس مصداق معين نه دی ګويا چې الله تعالی داسې فرمايلي و من الناس ناس يقولون يا لام عهد خارجي دی په دې تقدير سره مِنْ موصوله دی او الناس معهود خارجې به الذين کفرو وي او له من موصولې څخه به ابن ابئ او د هغه ملګري دي دغسې نور خلق وي ځکه چې د مصر على الکفر په وجه د کافرانو په تعداد کې داخل دي د کومو په زړه چې مهر لګولی شوي و او د دوی له دې شيانو سره په زيادت د اختصاص په کفر کې زيات کړي و دوی د مصرعلى الکفر په فهرست کې له داخلولو څخه نه منع کوي ځکه چې اجناس د دې زايدو فصلونو په بنا باندې چې په دې اجناسو کې دي افراد له يو بل نه جدا نوع جوړوي نو په دې صورت کې به و من الناس د قسم ثاني يو قسم وي.

**تشریح**: دلته قاضي صیب د الف لام او کلمې د من په اړه تحقیق کوي فرمايي چې د الناس الف لام په له دوه حالونو څخه خالي نه وي يا به جنسي وي يابه عهد خارجي وي که جنسي شي بیا به مِن نکره موصوفه وي او که عهد خارجي وي بیا به من موصوله وي.

**سوال**: کله چې الف لام جنسي شي من به موصوفه ولې وي او که عهد خارجي شي من به موصوله وي د دې برعکس خو هم جايز دی.

**جواب**: دا تقسیم د مناسبت د برقرار ساتلو لپاره شوی دی هغه داسې چې کله الف لام لپاره د جنس شو نو په جنس کې تعین نه وي بلکې ابهام وي نو چې کله من تبعیضي راوړل شي دلته به د من په واسطه د بعضو تفصیل وشو او هغه هم مبهم و معلومه شوه چې دلته من نکره پکاره او کله چې الام عهد خارجي شي نو دلته بیا ناس متعین دي له دې وجې يې بعض هم متعین وي او د متعین د تعبیر لپاره معرفه پکار دی نو ځکه دلته من وصوله شو.

(فإنهم من حيث إنهم صمما على النفاق دخلوا) دې عبارت سره د يو اعتراض طرفته اشاره کوي.

**سوال**: کله چې الف لام عهدي شي په دې صورت کې له ناس نه مراد الذين کفرو يعنې مصرعلى الكفر مراد دي يعنې منافقان له دوی څخه بعض وګرځېدل او بعض شئ داخل وي په شي کې حالانکه منافقان په الذين كفرو کې داخل نه دي ځکه دواړه جدا جدا صفات لري.

**جواب**: الذين كفرو څخه مصر على الكفر مراد وي خو ظاهراً او باطناً نه دي مراد کوم چې د منافقانو قسم دی مصر على الكفر په منزله د جنس دی کجاهرين او منافقين يې قسمونه دي لکه څنګه چې نوع په جنس کې داخله وي او تخصيص يې له دخول څخه په جنس کې نه منع کوي دغسې منافقان هم د مصر على الكفر په وجه الذين كفرو کې داخل دي په دې يو صورت کې به دا ايت په دوه قسمه دی په الذين يؤمنون بالغيب سره يې خپل بندګان په دوه قسمه کړل (۱) مؤمنين (۲) مصر على الكفر بيا دويم قسم په دوه قسمه دی (۱) مجاهرين (۲) منافقان معلومه شوه چې مصرين على الكفر جنس دی منافقان او مجاهرين يې قسمونه دي.

**تفسیربیضاوي**: (واختصاص الإيمان بالله وباليوم الآخر بالذكر، تخصيص لما هو المقصود الأعظم من الإيمان وادعاء بأنهم احتازوا الإيمان من جانبيه وأحاطوا بقطريه، وإيذان بأنهم منافقون فيما يظنون أنهم مخلصون فيه، فكيف بما يقصدون به النفاق، لأن القوم كانوا يهوداً وكانوا يؤمنون بالله وباليوم الآخر إيماناً كلا إيمان، لاعتقادهم التشبيه واتخاذ الولد، وإن الجنة لا يدخلها غيرهم، وأن النار لا تمسهم إلا أياماً معدودة وغيرها، ويرون المؤمنين أنهم آمنوا مثل إيمانهم. وبيان لتضاعف خبثهم وإفراطهم في كفرهم، لأن ما قالوه لو صدر عنهم لا على وجه الخداع والنفاق وعقيدتهم عقيدتهم لم يكن إيماناً، فكيف وقد قالوه تمويهاً على المسلمين وتهكماً بهم.)

**ترجمه**: ایمان بالله او ایمان بالیوم الاخرة په ځانګړي ډول ذکر کولو سره هغه څه خاص کول دي چې د مومن په افرادو کې ایمان عظیم ترین مقصود دی او د دې خبرې دعوه کول دي چې موږ د ایمان دواړه ګوشې په ځان کې جمع کړې دي او دواړه جانبه یې موږ له ځان سره محفوظ کړي دي. او د دې خبرې اعلان کول دي چې دا خلک کومه دعوه کوي کې خپل ځانونه مخلص ګڼي په دې کې هم منافقان دي نو د دې دعوې به حال وي چې د هغې مقصود نه بالکل نفاق وي دا اعلان ځکه وشو چې د یهودو داسې ویونکی جماعت نه و ، یهودیانو په الله او اخرت داسې ایمان لرلو چې په نشت حساب وه ځکه هغوی الله تعالی له مخلوق سره مشابه کوي او د الله تعالی د صاحب او والد کیدو عقیده لرله او دا عقیده یې هم وه ې جنة ته به له یهودو پرته څوک نه داخلیږي او د جهنم اور به یو څو ورځې ځکې له دې پرته یې نور هم ډېر فاسد عقاید لرل او بله وجه داوه چې د دوی د خباثت له پاسه خباثت او په کفر کې زیاتوالی بیانول دي ځکه کومې خبرې چې هغوی وکړې که چیرته فریب او دوکه نه وي او عقیده یې هم دغه وه بیا به هم په ایمان کې شماز نه وي نو. هغه وخت به څنګه ایمان کې شمار شي چې کله په دغو خبرو مسلمانانو ته دوکې ورکولو لپاره د مسلمانانو د استهزاء لپاره کړې وي.

**تشریح**: دلته دنع د یو اعتراض دی هغه دا سوال د منافقانو مقصود چې اظهار دایمان و نو بیا خو پکار دی چې هغه ټول شیان ذکر شي په کومو چې ایمان راوړل ضروري وي یوازې په دې دوه شیان اکتفاء کول(چې ایمان بالله او بالاخرت دی) پکار نه دي قاضي صیب څلور جوابونه کوي.

(۱)**جواب**: نور ایمانیات خو ځکه ذکر نشوه چې د ایمانیاتو لوی مقاصد دوه دي کله چې دوی په دې دوه شیانو ایمان نه و راوړی نو ضمناً یې په ټولو ایمان ثابت نه شو ځکه نور په دې متفرع دي نږ تخصیص د دې دوه شیانو له وجې د عظمت څخه دی.

(۲)**جواب**: (وادعاء بأنهم احتازوا الإيمان) د دې دوه شیانو ذکر په طریقې د مبالغې سره شوی هغه داسې چې ایمانیات دوه برخې لري یوه مبدء بله معاد دی الله تعالی مبدء دی او اخرت معاد دی هر کله چې په دې دواړو د ایمان دعوه ثابته شوه نو مبالغتاً د دې په تمامو جزیاتو ایمان ثابت شو.

(وإيذان بأنهم منافقون فيما يظنون أنهم مخلصون فيه) دې عبارت سره د دوه شیانو د تخصیص دوه پاتې جوابونه کوي.

(۳)**جواب**: دا چې الله تعالی په تخصیص د دې دوه شیانو سره دا اعلان کوي چې منافقان په خپلو عقاید کې منافقان دي ټول عقاید یې د ظاهر له باطن څخه خلاف دي ځکه دوی د الله تعالی باره کې د تشبیه او صاحب ولد کیدو عقیده لري او دا اخرت په اړه یې عقیده دا وه چې جنت ته به له یهودو پرته بل څوک نه داخلیږي (لن يدخل الجنة الامن كان هوداً) به یې ویل.

(۴)**جواب**: دا دوه شیان یې ځکه مختص کړل چې د دوی خباثت فوق الخباثت بنه واضحه شي او د دوی په کفر کې افراط هر څوک وګوري یهودیانو د نبي علیه السلام له رسالت څخه منکر و نو که په دعوه داخرت کې مخلص هم وبیایې هم ایمان معتبر نه و پاتې.

**تفسیربیضاوي**: (وفي تكرار الباء ادعاء الإيمان بكل واحد على الأصالة والاستحكام).

**ترجمه**: او دبا مکرر راړل په هر واحد (ایمان بالله او بالاخرت) د مضبوط ایمان راوړلو دعوه کوي.

**تشریح**: دې عبارت سره قاضي صیب د یو اعتراض دفع کوي.

**سوال** : د منافقانو په دې قول کې (امنا بالله وباليوم الاخر) د با تکرار بې فايدې دي ځکه چې کله معطوف عليه ضمير مجرور وي په معطوف کې د حرف جر اعاده ضروري وي لکه مررت به وبزيد خو کله چې معطوف عليه اسم ظاهر وي بيا اعاده د حرف جر ضروري نه وي لکه دې ايت کې معطوف عليه لفظ د الله تعالى دى او مظهر دى .

**جواب**: دلته په تکرار د با کې دوه حکمته دي (۱) د دې خبرې دعوه دى چې موږ په دې دواړو باندې تفصيلي ايمان لرو نه په طريقې د مجموع من حيث المجموع يا د احدهما په ضمن کې په بل ايمان لرو. (۲) دا دعوه کول دي چې موږ په دې دواړو شيانو ښه قوي او مضبوط ايمان لرو او په دې دول چې حرف جاره د فعل معنا خپل مدخول ته رسوي چې معنا د فعل ورسېده لکه ځېله چې فعل ورسېد نو تقدير به داسې شي (امنا بالله و امنا باليوم الاخر) چې امنا فعل په دواړو داخل شو نو دواړه مستقل مؤمن به شول نو داستقلال دعوه ثابته شوه او تکرار تاکيد پيدا کوي نو د استحکام دعوه هم ثابته شوه.

**تفسيربيضاوي**: (والقول هو التلفظ بما يفيد، ويقال بمعنى المقول، وللمعنى المتصور في النفس المعبر عنه باللفظ وللرأي والمذهب مجازاً. والمراد باليوم الآخر من وقت الحشر إلى ما لا ينتهي. أو إلى أن يدخل أهل الجنة الجنة، وأهل النار النار لأنه آخر الأوقات المحدودة.

**ترجمه**: قول هغو کلماتو ته وايي چې تلفظ پرې مفيد وي او قول کلماتو ملفوظه ته هم ويلى شي مجازا او مجازا يې اطلاق په هغه معنا هم کيږي چې منقوشه وي په زړه کې او په ژبې سره ترينه تعبير کولى شي او مذهب لپاره هم د قول استعمال مجاز دى او له يوم اخرت څخه د وخت حشر غير متناهي زمانه مراد دى او يا ترينه د اهل جنت دخول فى الجنة او اهل نار دخول فى النار پورې زمانه مراده دى ديته يوم اخرت ځکه وايي چې دا د اوقات محدوده و اخري ورځ دى .

**تشريح**: دلته قاضي صيب دوه بحثه کوي (۱) د قول متعلق (۲) د يوم اخرت تحقيق.

## دقول استعمال:

**لومړی بحث**: د قول دوه استعماله دي يو حقيقي بل مجازي په حقيقت کې قول د تلفظ مفيده نوم دی بيا برابره خبر ده که معنا يې مفرده وي او که مرکبه لکه ځينې فرمايي چې قول د کلماتو مرکبه و تلفظ نوم دی چې په نسبت اسنادي باندې مشتمل وي بيا يې مجازا په مقول او ملفوظ اطلاق په طور د تسمية المفعول باسم المصدر استعمال شو لکه خلق په معنا د مخلوق لباس په معنا د ملبوس بيا په دويمه (مجازي) معنا کې دومره ترقي وکړه چې همدا اصل وګرځيده بيا مجازاً په نورو معناګانو کې هم استمال شو کلام نفسي ته هم قول ويلی شي لکه فرمايي (ويقولون في انفسهم لولا يعذبنا الله بمانقول) دلته لولا يعذبنا کلام نفسي دي تعبير ترينه په قول وشو دويم هغه رايه چې استدلال او اجتهاد سره حاصله شي متفقه وي که مختلفه وي دريم مذهب ته هم قول وايي يعنې اجتهادي عقيده چې بل مجتهد پکې اختلاف کړی وي.

## د يوم الاخرة استعمال او وجه تسميه:

**دويم بحث**: د يوم درې استعماله دي په لغت کې مطلق وقت ته وايي او په شريعت کې له صبح صادق نه تر پريو تلو د لمر پورې وخت ته وايي او په عرف کې له طلوع الشمس نه تر غروب الشمس پورې وخت وايي دلته يوم په لغوي اعتبار سره مستعمل دی يا خو له وقت د حشر نه تر لايتناهي زمانې پورې دی او ترينه له وخت د حشر نه تر دخول جنت او دخول جهنم پورې زمانه مراد دی.

**سوال**: چې تر دخول حنة او دخول جهنم پورې زمانه ترينه مراد شوه نو بيا اخري ورځ ورته ولې وايي له دخود د جنت څخه وروسته خو هم زمانه موجوده ده.

**جواب**: اخري ورځ ورته په اعتبار د وقت محدود ويلی شي يعنې دغه ورځ د وقت محدود اخري ورځ دی که څه هم له دې څخه روسته زمانه شته خو هغه غير محدود دی ځکه تحديد موقوف دی په طلوع او غروب باندې او دغه زمانه کې طلوع او غروب نه وي

**تفسيربيضاوي**: (وَما هُمْ بِمُؤْمِنِينَ إنكار ما ادعوه ونفي ما انتحلوا إثباته، وكان أصله وما آمنوا ليطابق قولهم في التصريح بشأن الفعل دون الفاعل لكنه عكس

تأكيداً. أو مبالغة في التكذيب، لأن إخراج ذواتهم من عداد المؤمنين أبلغ من نفي الإيمان عنهم في ماضي الزمان، ولذلك أكد النفي بالباء وأطلق الإيمان على معنى أنهم ليسوا من الإيمان في شيء، ويحتمل أن يقيد بما قيدوا به لأنه جوابه.

**ترجمه**: دا د مناقفانو د دعوې د هغه شي نفي دی کوم چې دوی ځانته په دروغو ثابت کړی و. اصل عبارت و ما امنوا پکار و د دې لپاره چې د فاعل د فعل په تصريح کې د منافقانو د قول امنا مطابق شوی و لکن بیاهم د دې خلاف ځکه وکړی شو چې تکذيب کې مبالغه او انکارکې تاکيد پيدا شي ځکه د دوی راويستل له تعداد د مومنانو څخه ډېره ابلغه ده له نفي د ايمان د دوی څخه په زمانه یې ماضي کې له دې امله یې د نفي تاکيد په با سره وکړ او ايمان يې مطلق پرېښود په دې معنا چې دوی په هيڅ مومن به ايمان نه لري او دا احتمال هم لري چې دا دې مقيد شي لکه څنګه یې هغوی مقيد کوي ځکه د ايې جواب دی ځکه په سوال کې چې کوم قيد وي په جواب کې هم وي

**تشريح**: دلته درې بحثونه کوي (۱) ربط له ماقبل سره (۲) په ظاهر د ايت اعتراض (۳) د دې ايت متعلق د علم کلام مسئله.

**لومړی بحث**: ربط د دې ايت له ماقبل سره دادی چې په مخکني ايت کې د منافقانو د ايمان دعوه بيان شوې وه په دې ايت کې د هغې ترديد کوي او د هغوی د غلط انتساب نفي کوي معلومه خبره دی چې دعوه او رد عوه کې مناسبت او ربط وي.

**دويم بحث**: (وكان أصله وما آمنوا) سره د اعتراض جواب کوي دا خبره زده کړه کوم شي چې په کلام کې مقدم وي هغه د متکلم په نزد اهم وي او اصل کې د دعوه او رد دعوه کې مطابقت وي.

**سوال**: منافقانو په خپله دعوه کې (امنا) فعل مقدم کړی معلومېږي چې دا اهم دی نو په ترديد دعوې کې هم فعل مقدم کول پکار و يعنې وما امنوا ويل پکارو چې په دعوه او رد دعوه کې مطابقت راغلی وای.

**جواب**: خلاف اصل په دې وجه اختيار کړی شو چې په رد کې مبالغه پيدا شي هغه داسې چې ايت د کنايي په طور مستعمل دی او منايه ابلغه من التصريح وي او کنايه داسې ده چې حقيقت

ایمان سره متصف کیدل ملزوم او افرادو د مومنینو کې داخلیدل د دې لپاره لازم دی او لازم له ملزوم څخه عام وي نو انتفاء د عام مستلزمه وي انتفاء د عام لره لهذا انتفاء المنافقین من عدد المؤمنین عام او انتفاء الایمان من المنافقین خاص دی نو هر کله چې: منافقینو افراد د مؤمنانو په فهرست کې له داخلیدو نفي وشوه نو په طریقه اولی سره د هغوی د اتصاف بالایمان نفي وشوه.

(وأطلق الإيمان على معنى أنهم ليسوا من الإيمان في شيء) په دې عبارت سره د یو اشکال دفع کوي هغه داسې.

**سوال:** کله چې الله تعالی د منافقانو په دعوه کې د هغو مومن به الله او یوم الاخرة ذکر کړل نو پکار دی چې په رد کې یې هم دغه دواړه ذکر کړي وای.

**جواب:** دلته یې د منافقانو مومن به د دوه وجوهاتو له امله ذکر نه کړل (۱) د مومن به په حذف کولو سره ایمان منزل بمنزلة اللام او منلی شو د دې لپاره چې د منافقانو نه بلکل ایمان نفي شي او دا خبر معلومه شي چې دا منافقان د ایمان په هیڅ یوه درجه کې هم نه دي (۱) دلته مومن به مقدر دی قرینه پرې داده چې په دعوه کې ذکر دي دلته یې ذکر ته ضرورت نشته مذکور فی السوال معاد فی الجواب وي.

**تفسیربیضاوي:** (والآية تدل على أن من ادعى الإيمان وخالف قلبه لسانه بالاعتقاد لم يكن مؤمناً، لأن من تفوه بالشهادتين فارغ القلب عما يوافقه أو ينافيه لم يكن مؤمناً. والخلاف مع الكرامية في الثاني فلا ينهض حجة عليهم)

**ترجمه:** او ایت په دې باندې دلالت کوي چې څوک د ایمان دعوه دار وي او زړه یې د له ژبې اقرار سره خلاف وي نو هغه به مومن نه وي له ایت نه دا معلومیږي چې کوم کس د شهادتینو اقرار وکړي او زړه یې له اقرار مخالف هغه مومن نه دی او کرامیه و په دویمه مسئله کې خلاف کړی لهذا ایت د هغوی خلاف دلیل نه ګرځي.

## اختلاف بين القاضي والرازي رحمهما الله

**تشريح: دريم بحث**: دا ايت د كراميه و خلاف حجت جوړيدلى شي او كه نا؟ امام فخر الدين رازي رحمه الله وايي چې جوړيدلى شي او قاضي صيب فرمايي چې دا ايت د كراميه خلاف حجت نشي جوړيدلى منشأ د خلاف د امامينو ترمنځ دادى چې امام رازي د كراميه مسلك دا بيانوي چې چا په ژبې سره اقرار بالشهادتين وكړو او حال دا چې په زړه يې تكذيب او كفر و دا سړى د كراميه و په نزد مومن دى نو دا ايت يې خلاف ځكه حجت دى چې له منافقانو د ايمان نفي وشوه حالانكه د هغوى په ژبه اقرار او په زړه كې انكار و او قاضي صيب وايي چې د كراميه او اهل سنت ترمنځ دا مسئله مختلف فيها نه دى بلكه اختلاف په دې كې دى چې يو چا په ژبه اقرار وكړو خو د ده زړه بالكل خالي دى نه پكې تصديق شته نه پكې تكذيب نو كراميه هغه ته مومن وايي او اهل سنت ورته مومن نه وايي نو په دې اعتبار سره دا ايت د كراميه خلاف حجت نه دى ځكه دلته د منافقانو زړه فارغ او خالي نه دي دوى په زړونو كې مكذبين دي.

يُخادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَما يَخْدَعُونَ إِلاَّ أَنْفُسَهُمْ وَما يَشْعُرُونَ

**تفسيربيضاوي**: (يُخادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا الخدع أن توهم غيرك خلاف ما تخفيه من المكروه لتنزله عما هو فيه، وعما هو بصدده من قولهم: خدع الضب. إذ توارى في جحره، وضب خادع وخدع إذا أوهم الحارش إقباله عليه، ثم خرج من باب آخر وأصله الإخفاء ومنه المخدع للخزانة، والأخدعان لعرقين خفيين في العنق)

**ترجمه**: خدعه دادى چې ته خپله سينه كې پټ راز وساتي او د خپل مقابل په زړه كې د هغې مخالف وهم پيدا كړې د دې لپاره چې ستا مقابل د كوم مقصود كوشش كوي له هغه څخه يې دوكه كړې او خدع د عربو له دې قول څخه اخستل شوى (خدع الضب) چې كله سمسماره خپلې سوړې ته ننوزي د غسې له ضب خادع او ضب خدع څخه ماخوذ دى دا هغه مهال ويلى شي چې كله سمساره په خپله سوړه كې د ښكار طرفته د وتلو وهم په زړه كې پيدا كړي او بيا بل طرفته اوځي خدع په

اصل کې اخفاء او پټولو ته وایي او له دې ځخه مخدع مأخوذ دی په معنا د خزانې سره او اخدعان هغو دوه رګونو ته ویلی شي چې په څټ کې پټ دي.

**تشریح**: دلته قاضي صیب دوه بحثه کوي (۱) د خدع او مخادعې تحقیق (۲) د منافقانو او خداع مقصد.

## د خدع تحقیق

**لومړی بحث**: یخادعون له باب مفاعلې ځخه د مضارع معلوم د جمعې مذکر صیغه دی او مجرد یې له باب فتح ځخه مستعمل دی او خدع اصل معنا اخفا ده ځکه خو خزانې ته هم مخدع ویلی شي او د څټ هغه دوه پټو رګونو ته هم اخدعان وایي او په عرف کې دیته وایي چې په زړه کې داسې څه وساتې چې مقابل ته یې د هغې خلاف اظهار وکړې (عما هو فیه، وعما هو بصدده) د دې لپاره چې مقابل د کوم شي کوشش کونکی او حاصلونکی وي له هغې ځخه یې دوکه کړې او دا مأخوذ دی له خدع الضب، ضب خادع ضب خدع ځخه دا هغه وخت ویلی چې چې کله سمساره په خپله سوړه نه د راوتلو وخت کې د ښکاري په زړه کې دا وهم پیدا کړي چې هغه له دې طرفته ځخه راځي نو بیا له بل طرف نه وتختي نو سمساره دلته خلاف ما فی الضمیر کوي د اهل لغتو په نزد حارش لفظ صرف د سمسارې د ښکار لپاره استعمالیږي.

**تفسیربیضاوي**: (والمخادعة تكون بين اثنين. وخداعهم مع الله ليس على ظاهره لأنه لا تخفى عليه خافية، ولأنهم لم يقصدوا خديعته. بل المراد إما مخادعة رسوله على حذف المضاف، أو على أن معاملة الرسول معاملة الله من حيث إنه خليفته كما قال تعالى: مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطاعَ اللَّهَ. إِنَّ الَّذِينَ يُبايِعُونَكَ إِنَّما يُبايِعُونَ اللَّهَ.)

**ترجمه**: او مخادعه د دوه کسانو ترمنځ موجوده وي او د منافقانو خدع له الله تعالی سره په خپله ظاهري معنا سره نه دی ځکه له الله جل جلاله ځخه یو شی هم پټ او خفي نه دی او د منافقانو مقصد هم دا نه دی چې الله تعالی ته دې دوکه ورکړي بلکې دلته مخادعه د رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) مراد دی په تقدیر د مضاف سره ای یخادعون رسول الله او یا مطلب دا چې له

رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره مخادعه کول داسې و لکه الله تعالی سره ځکه رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د الله خلیفه دی لکه الله تعالی فرمایي: څوک چې د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) اطاعت وکړي په تحقیق سره ده دالله تعالی اطاعت وکړو او هغه کسانو چې له رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره بیعت وکړو هغوی له الله تعالی سره بیعت وکړو.

**تشریح دویم بحث**: یخادعون له باب د مفاعله څخه دې او د دې باب یوه خاصه دادی چې مشارکت پکې له جانبینو څخه وي نو سوال دادی چې دلته مشارکت شته که نا؟ که مشارکت وي بیا خو دلته اشکال هغه دا چې د مشارکت تقاضا دادی چې هر یو له جانبین څخه فاعل او مفعول یعنې هر یو به خادع او مخدوع وي د منافقانو په جانب کې خو دا معنا اخستل کې خو بل طرفته په جانب د الله تعالی دې معنا سره څه کوي هلته خو داسې تصور هم باطل دی.

**جواب**: تسا اشکال په هغه وخت وارد و چې ایت په خپله ظاهري معنا سره وای حالانکې دلته ایت په حذف د مضاف سره دی اصل داسې دی (یخادعون رسول الله) نو لفظ د رسول حذف شو مضاف الیه یې په ځای قایم شو. یا دا چې دلته په ایت کې مجاز فی النسبت ایقاعي دی اصلاً نسبت په دوه قسمه دی ایقاعي او اسنادي، نسبت اسنادي دیته وایي چې فعل فاعل طرفته منسوب شي او نسبت ایقاعي دیته وایي چې فعل د مفعول متعلق او په هغه باندې واقع کیدل یعنې تعلق الفعل مع المفعول ته ویلی شي بیا هر یو په دوه قسمه دی حقیقت فی النسبت اسنادي مجاز فی النسبة اسنادي حقیقت فی النسبة ایقاعي او مجاز فی النسبة ایقاعي.

(۱)حقیقت فی النسبت اسنادي د فعل د فاعل ماهوله طرفته منسوب کیدل.

(۲)مجاز فی النسبة اسنادي د فعل د فاعل غیر ماهوله طرفته منسوب کیدل.

(۳)حقیقت فی النسبة ایقاعي د فعل د مفعول ماهوله سره متعلق کیدل.

(۴) مجاز فی النسبة ایقاعي د فعل د مفعول غیر ماهوله سره متعلق کیدل.

اوس دلته په ایت کې څنګه مجاز فی النسبة ایقاعي دی هغه داسې د یخادعون مفعول حقیقي کلمه د رسول دی خو د مناسبت له وجې کلمه د جلال (الله) یې په ځای قایمه شوه مناسبت

داو چې رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ) د الله تعالی نائب او خلیفه دي نو دلته هم فعل د مفعول غیر ماهوله سره متعلق شو دفع د اشکال وشوه.

**تفسیربیضاوي**: (وإما أن صورة صنيعهم مع الله تعالى من إظهار الإيمان واستبطان الكفر، وصنع الله معهم بإجراء أحكام المسلمين عليهم، وهم عنده أخبث الكفار وأهل الدرك الأسفل من النار، استدراجا لهم وامتثال الرسول صلّى الله عليه وسلّم والمؤمنين أمر الله في إخفاء حالهم، وإجراء حكم الإسلام عليهم مجازاة لهم بمثل صنيعهم صورة صنيع المتخادعين.

**ترجمه**: یا دا چې د منافقینو کومه معامله له الله تعالی سره وه چې اظهار د ایمان او اخفا د کفر وه او کومه معامله د الله تعالی له دوی سره وه چې دوی ته مهلت ورکول و د دې لپاره چې په دوی د امسلمانانو احکام جاري شي له دې هرڅه سره دوی د الله تعالی په نزد خبیث ترین کفار او د درک اسفل مستحق و او د هغوی د ظاهري ایمان د بدلې ورکول لپاره رسول الله (صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ) او مومنانو د الله تعالی د حکم د تعمیل په بنا د هغوی حال پټول او اسلامي احکام په هغوی جاري کول دا داسې صورت دی لکه د دوه کسانو په خپل منځ د خدع په معامله کې پیدا کیږي.

**تشریح**: دا دریم جواب دی له هغه مخکې اعتراض ځخه فرمایي چې دې ایت کې استعاره تمثیلیه دی داسې چې د منافقینو معامله له الله تعالی سره چې اظهار د ایمان دی او اخفا د کفر دی او د الله تعالی معامله له دوی سره چې مهلت ورکول دي او د دوی حال پټ ساتل دي د دې تشبیه یې د دوه فریبکارانو د معاملې سره ورکړې دی چې وجه د شبهې یې متعدد امور دي یعنې اخفا او اظهار دي نو حاصل د جوابونو دا شو چې ستا اعتراض به هلته وارد وچې ایت په ظاهري معنا سره وای.

**تفسیربیضاوي**: (ويحتمل أن يراد ب يُخَادِعُونَ يخدعون لأنه بيان ليقول، أو استئناف بذكر ما هو الغرض منه، إلا أنه أخرج في زنة فاعل للمغالبة، فإن الزنة لما كانت للمغالبة والفعل متى غولب فيه، كان أبلغ منه إذا جاء بلا مقابلة معارض ومبار استصحبت ذلك، ويعضده قراءة من قرأ يَخْدَعُونَ.)

**ترجمه**: او شاید چې له یخادعونه څخه یخدعون مراد وي ځکه چې یخادعون د یقول بیان دی او دا ځکه چې یخادعون استئناف دی چې پکې د یقول د مقصد تذکره دی مګر په تقدیر سره یې له باب مفاعلې څخه راوړل به مبالغه وي ځکه اوزان د مفاعله لپاره د مغالبې وي او فعل کې چې کله د غلبې د حاصولو صورت اوکړی شي نو هغه زیات بلیغ ظاهریږي له هغه صورت نه چې هغه فعل بې له معارضې صادر شوی وي نو په دې وجه وزن مفاعله مستلزم دی مبالغې ته.

**تشریح**: تر دې ځایه مو په دې بحث وکړ چې په یخادعون کې مشارکت دی اوس دا بیانوي چې په دې کې مشارکت نشته یخادعون له مفاعله څخه په معنا یخدعون دی او په دې کې بیا د مشارکت معنا نشته نو هغه اعتراض هم دلته نه واردیږي دلته قرینه څه دی چې یخادعون په معنا د یخدعون سره دی فرمایي چې دلته درې قرائن دي (۱) یخادعون بیان دی د یقول لپاره نو من الناس من یقول مبین او دا یې بیان په بیان او مبین کې اتحاد وي لکه څنګه چې قول خاص دی تر منافقینو دغسې به خدع هم تر منافقانو خاص وي (۲) یخادعون الله استئناف بیاني دی او استئناف بیاني هغې جملې ته ویلی شي چې د سوال په جواب کې واقع شوي وي لکه منافقانو چې کله وویل (امنّا) نو سایل سوال وکړ چې دوی خو په حقیقت کې مومنان نه دی نو بیا د امنا ویلو مقصد څه دی نو جواب وشو چې غرض د دوی مومنانو ته دوکه ورکول دي نو دا جمله غرض دی او ماقبل ورنه ذی غرض دی او په غرض او ذی غرض کې اتحاد وي نو په یقول امنا او یخادعون کې هم اتحاد راغی نو لکه څنګه چې قول د امنا له منافقانو پورې خاص و دغسې خدع هم ورپورې خاص دی او دا هغه وخت کېدی شي چې یخادعون په معنا د یخدعون شي (۳) ځینې خلکو د یخادعون په ځای یخدعون لوستلی دی نو ځکه یې په معنا د یخدعون سره اخستلی شي.

**سوال**: کله چې یخادعون په منعا د یخدعون و بیا یخادعون ته ضرورت و یخدعون ویل پکار و.

**جواب**: دا له باب مفاعله څخه مبالغتاً استعمال شوی دی ځکه مفاعله د مبالغې لپاره راځي او فعل په طور معارضې ظاهرول ابلغ وي په مقابل د غیر معارض کې یعنې مقصد دلته مبالغه وه او مبالغه خاصه د مفاعلې دی.

**تفسيربيضاوي:** (وكان غرضهم في ذلك أن يدفعوا عن أنفسهم ما يطرق به من سواهم من الكفرة، وأن يفعل بهم ما يفعل بالمؤمنين من الإكرام والإعطاء، وأن يختلطوا بالمسلمين فيطلعوا على أسرارهم ويذيعوها إلى منابذيهم إلى غير ذلك من الأغراض والمقاصد.)

**ترجمه:** او د منافقانو غرض داو چې كوم مصيبتونه نو كافرانو ته رسيږي هغه له ځان څخه دفع كړي او كوم سلوك چې له كافرانو سره كيږي هغه له دوی سره وشي لكه د عزت ، اكرام او اعطا سلوك چې له مومنانو سره كيږي هغه هغه به له موږ سره هم وي او له دې سره دا هم و چې هروخت به مومنانو سره ميلاويږو او رازونو څخه به يې خبريږو او د اسلام دوښمنانو ته به يې رسوو او له دې علاوه يې نور مقاصد هم درلودل.

## د فريب مقاصد

**تشريح:** دلته د منافقانو د خدع او دوكې مقاصد بيانوي فرمايي چې منافقانو د فريب او دوكې نه دې خبرې مقصد وې (۱) دفع د ضرر يعنې دوی مومنانوته د دې لپاره دوكه وركړه چې ښكاره كفارو ته كوم ضرر متوجه وه لكه جهاد ، جزيه وغيره له هغې څخه دوی ځان خلاص كړ (۲) د منفعت حاصلول يعنې په دې دوكې سره دوی هغه شيان حاصلول غوښتل كوچې مومنانوته حاصليدل لكه اكرام، اعزاز او له مال غنيمت څخه حصه اخستل (۳) ضرر رسول يعنې دوی به له مومنانو سره ميلاويدل او رازونه به كفارو ته ور وړل له امله به يې مومنانو ته تكليف رسېده له پرته يې نور هم ډېر اغراض او مقاصد لرل.

**تفسيربيضاوي:** (وَما يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ قراءة نافع وابن كثير وأبي عمرو. والمعنى: أن دائرة الخداع راجعة إليهم وضررها يحيق بهم. أو أنهم في ذلك خدعوا أنفسهم لما غروها بذلك. وخدعتهم أنفسهم حيث حدثتهم بالأماني الفارغة وحملتهم على مخادعة من لا تخفى عليه خافية. وقرأ الباقون وَما يَخْدَعُونَ، لأن المخادعة لا تتصور إلا بين اثنين وقرئ و «يَخَدِعُونَ» من خدع و «يَخِدِعُونَ» بمعنى يختدعون و «يَخَدِعُونَ» و «يخادعون» على البناء للمفعول، ونصب أنفسهم بنزع الخافض.)

**ترجمه**: او دوی دوکه نه کوي مگر له خپل ځان سره د يخادعون قرأت د نافع، ابن کثير او ابي عمرو دی او معنا يې دادی چې د دوی د خدع وبال هم په دوی او ددې ضرر هم دوی ته رسيږي او يا به يې دا معناوي چې منافقانو خپلو نفسونو ته خپله دوکه ورکړه او د دوی نفسونو دوی ته دوکه ورکړه چې هغوی ته يې بې فايدې ارزوګانې بيان کړې او داسې ذات سره په دوکه کولو يې اماده کړل چې په هغه هيڅ شی پټ نه دی او باقي قاريانو و مايخدعون ويلی ځکه چې د مخادعت تصور له دوونه په کم کسانو کې نه کيږي او يخدّعون (مشدد) هغه له خدّع (مشدد) څخه دی يخدعون په معنا د يختدعون يخدعون او يخادعون په صيغو د مجهول سره هم لوستل شو او د مجهول قرأت په صورت کې د انفسهم نصب په دې وجه دی چې د دې نه وړاندې حرف جر محذوف دی.

## د يخادعون قرأتونه

**تشريح**: دلته مصنف دوه بحثه ذکر کوي (۱) د يخادعون د قرأت متعلق (۲) د انفسهم تحقيق

**لومړی بحث**: په يخادعون کې شپږ قرأته دي:

(۱) نافع، ابن کثير او ابی عمرو قرأت دی دوی وايي يخادعون له باب مفاعله څخه د فعل مضارع معلومه صيغه دی خو په دې قرأت اعتراض دی هغه دا چې.

**سوال**: دلته خدع تر انفسهم پورې منحصر شوه او دا حصر نه دی سهي ځکه د حصر معنا دا ده چې مخصوص له مخصوص عليه پورې مختص شي او له غير محصور څخه منفي شي نو دلته خدع له الله تعالى او رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) څخه منفي شوه او حال دا چې مخکې دا خبره ثابته شوه چې د دوی خدع له الله تعالى، رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) سره متعلق دی.

**جواب**: ستا اعتراض به هغه وخت وارد و چې دا مخادعت هغه مخادعت وای کوم چې مخکې ذکر شوی بلکې دلته ضمني مخادعت مراد دی يعنې چې کله منافقانو له الله تعالى دوکه کوله نو له سره يې خپل نفسونه هم دوکه کول او ځانونه يې په فريب کې مبتلا کړل د نفس په وړاندې يې دا پيش کړل چې الله تعالى او مومنانو سره چلبازي دی لکن په حقيقت کې يې نفسونه د عذاب مستحق وګرځول په دې اعتبار سره دا خادع او نفس مخدوع شو او نفس دوی ته داسې دوکه

ورکړه چې دوی ته یې قسم قسم ارزوګانې بیان کړې او له داسې ذات سره یې په دوکه کولو اماده کړل چې له هغه څخه هیڅ پټ نه دي د دوی ارزوګانې پوزه نشوې او الله تعالی دوکه نشو په دې اعتبار سره نفس خادع او دوی مخدوع شول او کله چې مخادعت ضمني مراد دی نو مخادعت بین الانفس المنافقین شو په دې وجه یې په نفسونو پورې حصر سهي شو.

یا داسې وایو چې دا عبارت په خپله ظاهري معنا نه دی پاتې دا په طور د منایې یا مجاز مستعمل دی.

**سوال:** یخادعون د مشارکت له وجې په دوو یا زیاتو کسانو متحقق کیږي او په انفسهم پورې د انحصار په صورت کې اثنینیت او تغایر نه ثابتیږي ځکه نفس شئ او شئ کې اتحاد وي.

**جواب:** تعایر عام دی حقیقي وي او که اعتباري دلته که حقیقي تغایر نشته اعتباري خو شته په یو اعتبار خادع دی په بل اعتبار مخدوع او د مشارکت لپاره مطلق تغایر کافي دی.

(۲) دا له باب فتح یفتح څخه د مضارع معلوم صیغه دی ځکه که له باب مفاعله څخه شي بیا د اثنینیت ضرورت راځي او دلته د حصر په وجه اثنینیت نشته په دې وجه یخدعون لوستل کیږي.

(۳) دا له باب تفعیل څخه د مضارع معلوم صیغه دی یخدعون (بالتشدید)

(۴) دا له باب افتعال څخه د مضارع معلوم صیغه دی دا په اصل کې یختدعون و فاء د باب افتعال دال سره بدله شوه او دال په دال کې مدغم شو.

(۵) دا له باب فتح یفتح څخه د مضارع مجهول صیغه دی (یُخْدَعونَ)

(۶) دا له باب مفاعله څخه د مضارع مجهول صیغه دی (یخادَعون)

په لومړیو څلورو قرأتونو کې انفسهم منصوب بنا بر مفعولیت دی او روستنیو دوه قرأتونو کې منصوب بنزع الخافض دی نزع الخافض معنا دا چې حرف جر حذف شي او فعل هغه طرفته برای راست متعدي شي اصل عبارت داسې عن انفسهم عن حذف شو او فعل بلا واسطه وتعدي شو.

**تفسیربیضاوي:** (والنفس ذات الشيء وحقيقته، ثم قيل للروح لأن نفس الحي به، وللقلب لأنه محل الروح أو متعلقه، وللدم لأن قوامها به، وللماء لفرط حاجتها إليه،

وللرأي في قولهم فلان يؤامر نفسه لأنه ينبعث عنها أو يشبه ذاتاً تأمره وتشير عليه.
والمراد بالأنفس هاهنا ذواتهم ويحتمل حملها على أرواحهم وآرائهم.)

**ترجمه**: نفس د ذات او حقیقت نوم دی بیا روح لپاره نوم وګرځېد ځکه چې د ژوندي شي نفس هم د روح په وجه وي او زړه ته هم روح وایی ځکه چې قلب د روح حیواني محل دی یا د روح انساني متعلق دی او وینې ته هم ویل کیږي ځکه چې د روح قیام د وینې په وجه دی او اوبو ته هم نفس ویل کیږي ځکه چې نفس اوبو ته زیات محتاج دی دغسې د نفس استعمال د عربو د قول (فلان یؤامر نفسه) مطابق د رایي لپاره هم راغلی دی ځکه چط درائې منبع او منشاء نفس دیاو په دې وجه چې رایه ذات او مشیر سره مشابهت لري او په ایت کریمه له نفس څخه مراد د منافقینو ذاتونه دي او د هغوی په روحونو او رایو یې هم ورحمل کولی شي .

## دنفس معناګانې

**تشریح**؛ دلته د نفس متعلق تحقیق کوي فرمایي د نفس شپږ (۶) معناګانې دي یوه حقیقي او پنځه مجازي .

(۱) د نفس معنا حقیقي ذات دی خو په دې اعتبار یې یوازې په بدن باندې اطلاق نه کیږي بلکې ذات باري تعالی باندې یې اطلاق کیږي لکه په قصه د عیسی علیه السلام کې ذکر دي (تعلم مافی نفسي ولا اعلم ما فی نفسک ) دلته له نفس څخه ذات الباري مراد دی .

(۲)روح دی بیا روح په دوه قسمه دی یو روح حیواني او بل روح انساني روح حیواني هغه لطیف بخار دی چې ټول بدن کې خوریږي او روح انساني څخه مراد نفس ناطقه دی او نفس ناطقه هغه لطیف جسم دی چې ټول بدن کې یې حلول سریاني کړی وي او مدرک وي او د نفس اطلاق په روح باندې د مجاز مرسل په طریقې سره کیږي ځکه چې د شي نفس او ذات د روح په وجه قایم وي ګڼیا چې دا سبب او مسبب دي ذکر د مسبب مراد سبب دی هم دا مجاز مرسل دی

(۳) قلب ته هم روح وایي او دا معنا یې هم مجاز دی ځکه قلب د روح حیواني محل دی او د روح انساني متعلق دی محل ځکه دی چې د قلب کس طرفته یو جوف دی په هغې کې وینه ګرځي

او تیز جرارت په وجه ترینه بخار پورته کیږي او ټول بدن کې سرایت کوي نو ګویا قلب منبع شو او منبع په منزله د محل وي او دیته محل ویل هم مجاز دی او د روح انسان متعلق ځکه دی چې نفس ناطقه په ټول بدن کې حلول کړی ګویا چې ټول بدن سره متعلق دی چې ټول بدن سره متعلق شو نو خامخا به قلب سره متعلق وي یعنې دیته متعلق ویل هم مجاز دی .

(۴) وینې ته هم نفس وایي ځکه د نفس او ذات قیام او حقیقت هم دوینې په وجه دی نو ګویا دم او وینه سبب او نفس مسبب ذکر د مسبب مراد سبب دا هم مجاز دی .

(۵) ابو ته هم نفس ویلی شی ځکه نفس اوبو ته زیات محتاج دی ګو نفس په منزله د مسبب او اوبه په منزله د سبب وګڼل شو ځکه د انساني ژوند بقاء په اوبو وي نو ذکر د مسبب او مراد سبب دا هم مجاز شو.

(۶) نفس په معنا د رایي سره دی ځکه رایه له نفس څخه پیدا کیږي ګویا نفس انشاء شوه او رایه ناشي شوه منشاء سبب او ناشي سبب ذکر د مسبب مراد سبب دا مجاز مرسل دی .

**تفسیربیضاوي**: (وَما يَشْعُرُونَ لا يحسون لذلك لتمادي غفلتهم. جعل لحوق وبال الخداع ورجوع ضرره إليهم في الظهور كالمحسوس الذي لا يخفى إلا على مؤوف الحواس. والشعور: الإحساس، ومشاعر الإنسان حواسه، وأصله الشعر ومنه الشعار.)

**ترجمه**: او منافقان له وجې د زیاتې سرکشي په غفلت کې د دې احساس هم نه لري چې د خداع وبال او ضرر په دوی طرفته واپس کیدونکی دی الله تعالی دخداع وبال او ضرر دوی طرفته په درا واپس کیدو وضاحت داسې بیان کړو لکه محسوس داسې محسوس چې صرف په فاسد الحواس سړي باندې خفي وي او شعور نوم د احساس دی او حواس ظاهریه وته مشاعر الانساني وایي او اصل د شعور شعر دی او له دې څخه شعار مأخوذ دی.

**تشریح**: دلته د مناقفانو جهالت بیانوي هغه داسې چې د ایت کې الله تعالی له منافقانو د احساس نفي اوکړه ځکه شعور احساس ته وایي او احساس ادراک بالحواس ظاهریه و ته وایي له همدې اصطلاح څخه مشاعر انساني هم اخستل شوې دی د شعور اصل شعر دی او شعر لمس ته

وايي او له دې څخه شعار مأخوذ دی او شعار هغې جامې ته وايي چې له بدن سره پيوسته وي نو معنا د عبارت دا شوه (ومايشعرون ای لايحسون او مفعول يې حذف دی چې بذلک دی او بذلک مشار اليه وبال او ضرر د خدع دی نو مقصد د عبارت دا شو چې دا منافقان له ځناورو هم بد تر دي ځکه ځناور خو احساس لري د خپلې نفعې او ضرر احساس کولی شي دوی د شدت غفلت له امله له احساس هم بې برخې شوي دي، وبال او ضرر د خدع له معقولاتو څخه دی خو دا وبال او ضرر دوی طرفته په وايسي کې دومره ظاهر دی لکه محسوس نو اکر که له معقولاتو څخه دی.

فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزادَهُمُ اللَّهُ مَرَضاً وَلَهُمْ عَذابٌ أَلِيمٌ بِما كانُوا يَكْذِبُونَ (۱۰)

**تفسيربيضاوي**: (فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزادَهُمُ اللَّهُ مَرَضاً المرض حقيقة فيما يعرض للبدن فيخرجه عن الاعتدال الخاص به ويوجب الخلل في أفعاله. ومجاز في الأعراض النفسانية التي تخل بكمالها كالجهل وسوء العقيدة والحسد والضغينة وحب المعاصي، لأنها مانعة من نيل الفضائل، أو مؤدية إلى زوال الحياة الحقيقية الأبدية.)

**ترجمه**: د دوی په زړونو کې نو الله تعالی يې مرض نور هم زيات کړ د مرض حقيقي معنا هغه حالات دي چې د انسان بدن ته پيښيږي او بدن له مخصوص اعتدال څخه اوباسي او له امله يې د بدن په افعالو کې خلل راځي او د مجازا د مرض اطلاق په امراض نسانيه وديانديږ هم کيږي هغه چې د انسان په کمال کې خلل راولي لکه جهل، بېکاره عقيده حسد ،بعض له ګناهونو سره مينه دا ټول سړی له فضايلو څخه ايساروي او رسونکي دي زوال د حقيقي ژوند ته .

## د مرض حقیقي او مجازي معنا

**تشریح**: د مرض دوه معناګانې دی (۱) حقیقي (۲) مجازي

په معنا حقیقي سره مرض د هغو حالاتو نوم دی چې بدن ته وریپښیږي او بدن له اعتدال څخه وباسي او له امله یې انسان داسې متأثر شي چې په صحت کې کوم کارونه کوي په هغې کې خلل پیدا شي یعنې دغه کارونه بیا نشي کولی.

او مرض مجازا امراض نفسانیه و هم ویلی شي کوم چې له پیښندو سره په تحصیل دکمال کې خلل پیدا کوي لکه جهل له علم څخه مانع دی خرابه عقیده له هدایت څخه مانع دی وغیره او دیته ځکه مرض وویل شو چې لکه څنګه چې مرض جسماني د انسان هر اندام معطل کوي له فایدې څخه دغسې روحاني امراض روح له کمالاتو منع کوي دغه راز چې کله جسماني مرض زیات شي جسم هلاک کړي دغسې چې کله روحاني مرض زور واخلي روح له ابدي ژوند څخه محروم کړي چې جنت دی.

**تفسیربیضاوي**: (والآية الكريمة تحتملهما فإن قلوبهم كانت متألمة تحرقاً على ما فات عنهم من الرياسة، وحسداً على ما يرون من ثبات أمر الرسول صلّى الله عليه وسلّم واستعلاء شأنه يوماً فيوماً، وزاد الله غمهم بما زاد في إعلاء أمره وإشادة ذكره، ونفوسهم كانت موصوفة بالكفر وسوء الاعتقاد ومعاداة النبي صلّى الله عليه وسلّم ونحوها، فزاد الله سبحانه وتعالى ذلك بالطبع. أو بازدياد التكاليف وتكرير الوحي وتضاعف النصر.)

**ترجمه**: ایت د دواړه معناګانو د مرض احتمال لري ځکه چې د منافقانو زړونه د خپل ریاست په بایللو زیات غوسه و او د نبي علیه السلام په مشري او ترقي سخت غمژن و لکه څنګه به چې الله تعالی د رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په شان کې اچتوالی راوستو او ورځ تربلې به یې مراتب لوړېدل دغسې به د منافقانو په زړونو کې غمونه زیاتیدل او دا ځکه چې د دوی زړونو ته د نبي علیه السلام سره په دوښمني او کفر وغیره مرضونو له امله دا مصیبت او افت رسېدل و نو الله تعالی یې دغه مرض نور هم زیات کې چې په زړه یې ورته مهر هم ولګاو او یا د زیاتو احکامو او باربار وحي او مدد راتللو له امله الله د دوی مرض زیات کړ.

**تشریح**: دا ایت د مرض حقیقي او مجازي دواړو احتمال لري د حقیقي احتمال داسې چې د منافقانو زړونه د خپل زیاست په بایللو واقعي خفه و ځکه دوی د ریاست لپاره ابن ابی منتخب کړی و خو لکه چې نبي علیه السلام تشریف راوړ خلکو ده ته د مشرۍ تاج ورپسر کړ او اسلام ورځ تربلې ترقي او پرمخ تګ کاو نو د دوی زړونه سخت خفه اوپریشان شول یعنې چې څومره ترقي به راتلله دومره به د دوی غم زیاتیده.

(ونفوسهم كانت موصوفة بالكفر) دې عبارت سره د مجازي معنا احتمال ذکر کوي فرمايي د منافقینو په زړونو کې کفر، خرابه عقیده د نبي علیه السلام دښمني او نور ډېر مرضونه موجود و له دې وجې ویلو شو چې د دوی زړونه په باطني امراضو مبتلاؤ بیا الله تعالی د دوی په مرضونو کې اضافه داسې وکړه چې د دوی په زړونو یې دتل لپاره مهر ولګولو او الله تعالی دوی مکلف جوړول او دوی انکار کولو او په نبي علیه السلام وحي راتلل او د دوی کفر ظاهریدل او د نبي علیه السلام ترقي د دوی دوښمني زیاتوله ګویا چې د منافقانو په روحاني مرضونو کې الله تعالی اضافه کوله.

**تفسیربیضاوي**: وكان إسناد الزيادة إلى الله تعالى من حيث إنه مسبب من فعله وإسنادها إلى السورة في قوله تعالى فَزَادَتْهُمْ رِجْساً لكونها سبباً ويحتمل أن يراد بالمرض ما تداخل قلوبهم من الجبن والخور حين شاهدوا شوكة المسلمين وإمداد الله تعالى لهم بالملائكة، وقذف الرعب في قلوبهم وبزيادته تضعيفه بما زاد لرسول الله صلى الله عليه وسلم نصرة على الأعداء وتبسطاً في البلاد.)

**ترجمه**: او د مرض د زیادت نسبت الله طرفته په دې حیثیت دی چې دا الله تعالی د فعل سبب دی او سورت طرفته چې (فزادهم رجساً) دی چې سورت هم یو سبب دی او یا کیدی شي چې له مرض نه بزدلي او د زړه کمزوري مراد وي چې کومه د هغوی زړونو ته لګیدلي وي چې کله د مسلمانانو د ترقي مشاهده وکړي او دا خبره یې په خپلو سترګو ولیده چې الله تعالی د هغوی په زړونو کې د ملائکو په زریعه رعب اچولو سره د مومنانو مدد وکړو او د زیادت مرض مطلب

دادی چې الله تعالی د خپل رسول یې مدد وکړو د دښمنانو په مقابل کې او په ښارونو کې یې فراخي او وسعت ورکړو.

**تشریح**: دلته علامه زمخشري د یو اعتراض دفعه کوي هغه داسې چې:

**سوال**: فزادهم الله مرضاً کې د مرض اسناد الله تعالی طرفته شوی او مرض خو یو قبیح شی دی او (فزادتهم رجساً) کې نسبت ایت طرفته شوی او ایت طرفته نسبت تعینه الله تعالی طرفته نسبت کول دي او د معتزله و له عقیدي سره مخالفت دی.

(۱)**جواب**: علامه زمخشري له دې څخه دوه جوابونه کوي فرمایي چې الله تعالی مرض زیات نه کړو بلکې د مرض اسباب یې پیدا کړل یعنې په حیثیت د مسبب یې د الله تعالی طرفته نسبت وشو.

(۲)**جواب**: (ویحتمل أن یراد بالمرض ما تداخل قلوبهم) یا له مرض نه داسې مرض مراد دی چې نه روحاني وي او نه جسماني بلکې د رجلیت په باب کې ورته مرض ویلی شي لکه بزدلي او د زړه کمزوري دا مرض دوی ته داسې ورسېد چې دوی مسلمانانو ته په ابتدا کې ډېر په کمزورۍ سترګه کتل او په دې باوري وو چې دا وړه ډله کامیابی نشي جاصلولی نو کله چې د مسلمانانو پرمختیا شروع شوه او ورځ تربلې ترقي کیدله او د الله تعالی له لوري مرستې او امدادونه شروع شول نو په دوی بزدلي غلبه وکړه او زړونه یې هم کمزوري شول او مرض زیادت یې دا و چې الله تعالی مسلمانانو د اسلام دائره فراخه کړه دې فراخي سره د دوی مرض زیادت وموند.

**تفسیربیضاوي**: (وَلَهُمْ عَذابٌ أَلِيمٌ أي: مؤلم يقال: ألم فهو أليم كوجع فهو وجيع، وصف به العذاب للمبالغة كقوله: تحيةُ بينِهِمْ ضَرْبٌ وَجِيعُ على طريقة قولهم: جد جده).

**ترجمه**: او د دوی لپاره دردناک عذاب دی الیم له په معنا دمولم دی ویلی شي الم فهو الیم لکه وجعٌ فهو وجیعٌ الیم مبالغةً د عذاب صفت دی لکه د شاعر دا قول (تحية بينهم ضرب وجيع) دلته وجیع صفت د ضرب دی مبالغتاً د الیم نسبت عذاب مجازي دی لکه په جد او جده کې د جد نسبت مجازي دی.

**تشریح**: الیم له باب سمع څخه د صفت مشبه صیغه دی د دې مصدر الماً لازمي دی په معنا د دردمند کیدلو له دې وجه نه الیم د باب افعال د اسم مفعول د مولم په معناوي.

**سوال**: د الیم معنا دی دردمند کیدل او درمند څنکه د عذاب صفت واقع کیږي عذاب خو درد نه محسوسوي.

**جواب**: د الیم نسبت عذاب ته د مبالغې له وجې مجازا شوی دی لکه د شاعر په قول کې چې د وجیع نسبت ضرب ته مجازا شوی دی معنا دا چې عذاب دومره دردناک دی چې درد له معذب څخه عذاب ته هم ررسیدلی.

او شعر پوره داسې دی:

وخيل قد ولفت بخيل = تحية بينهم ضرب وجيع

ما له ډېرو شهسوارانو سره په داسې شان مقابله وکړه چې زموږ په منځ کې د دعا او سلام د لفظي خبرو ځای دردناک ضرب وشو. د (وخيل) واو په معنا د ربّ دی

دغسې دې مثال د جد جده کې هم د کامیابي نسبت جد ته مجازا دی ځکه کوشش نه کامیابیږي بلکې کوشش‌کوونکی کامیابیږي.

**تفسیربیضاوي**: (بِما كانُوا يَكْذِبُونَ قرأها عاصم وحمزة والكسائي، والمعنى بسبب كذبهم، أو ببدله جزاء لهم وهو قولهم آمنا. وقرأ الباقون يُكَذِّبُونَ، من كذبه لأنهم كانوا يكذبون الرسول عليه الصلاة والسلام بقلوبهم، وإذا خلوا إلى شياطينهم. أو من كذَّب الذي هو للمبالغة أو للتكثير مثل بين الشيء وموتت البهائم. أو من كذب الوحشي إذا جرى شوطاً وقف لينظر ما وراءه فإن المنافق متحير متردد.)

**ترجمه**: یکذبون بالتخفیف د عاصم، حمزه او کسایي قرأت دی معنا دا چې د دهغوی د دروغو ویلو په وجه او د دروغو په بدله کې او د دروغو په امنا ویلو سره د هغوی لپاره درناک عذاب دی او باقي قرأحضراتو یکذبون تشدید سره ویلی دی او دا ماخود دی له کذّبه څخه ځکه هغوی رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په زړونو کې دروغژن ګڼلو او کله به چې خپلو شیطانانو سره یوځای شول بیا به یې په ژبې سره هم دروغژن ګڼلو او یا مأخوذ دی له کذّاب بالتشدید څخه

چې د مبالغې او کثرت لپاره راځي لکه (بيّن الشي) شی ښه واضحه شو او (موتت البهائم) زيات ځناور مړه شول او له کذب الوحشی څخه مأخوذ دی دا هغه مهال ويلی شي چې کله دا ځناور لږلږي لاړ شي او په شا ګوري منافق هم په خپله معامله متحير او متردد وي.

**تشريح**: په يكذبون کې دوه قرأته دي عاصم ، حمزه او کسايي يې بالتخفيف نقلوي او باقي قاريان يې بالتشديد نقلوي د تشديد په صورت کې ځلور احتماله دي (۱) دا له کذبه څخه ماخوذ دی په معنا دروغ ګڼل نو منافقانو به هم نبي عليه السلام دروغژن ګڼلو (۲) دا له کذّاب بالتشديد څخه ماخوذ دی چې دې کې مبالغه بالکيف دی معنا دا چې د دوی لپاره به دردناک عذاب وي د شدت تکذيب په وجه (۳) يا له کذب څخه ماخوذ دی چې دېکې مبالغه فی الکم دی نو معنا دا چې د دوی لپاره به دردناک عذاب وي د دوی د باربار درووغو ګڼلو په وجه (۴) دا ماخود دی له کذب الوحشی څخه دې صورت کې به کذب لازم شي او معنا به يې متردد کيدل نو منافقان له تردد څخه ډک و.

ابوالبقاء وايي چې (بما)کلمه د ما موصوله او مصدريه دواړه کيدلی شي خو موصوله زيارته ظاهره دی خو قاضي صيب د مصدريت قايل دی ځکه خو د يكذبون تفسير په کذبهم سره کوي بيا ابوالبقاء وايي چې کان ماضي دی او يكذبون مضارع د دواړو اجتماع ځکه سهي دی چې دلته استمرار مقصود دی.

**تفسيربيضاوي**: والكذب: هو الخبر عن الشيء على خلاف ما هو به. وهو حرام كله لأنه علل به استحقاق العذاب حيث رتب عليه. وماروي أن إبراهيم عليه الصلاة والسلام كذب ثلاث كذبات، فالمراد التعريض. ولكن لما شابه الكذب في صورته سمي به.

**ترجمه**: او کذب ويل کيږي د يوشي خلاف واقع خبر ورکولو ته او کذب سره له ټول اقسامو حرام دی ځکه چې کذب باندې الله تعالی عذاب مرتب کړی او کذب يې د عذاب د استحقاق علت ګرځولی دی او په رواياتو کې چې راځي چې ابراهيم عليه السلام درې ځله دروغ ويلي له څخه مراد تعريض دی لکن صورتا له کذب سره مشابه دی له دې وجې ورته کذب وويلی شو .

## د کذب حکم

**تشریح**: کذب وايي خلاف واقع خبر ورکولو ته قاضي صیب وايي چې د کذب ټول انواع حرام دي خو دحنافو په نزد دروغ په دریو ځایو کې جایز دي (۱) د مسلمانانو د تر مینځ د صلحې کولو په وخت کې (۲) له دوښمن سره په وخت د جهاد کې (۳)خپلې ښځې ته .امام غزالي په احیاء العلوم کې یوه قاعده بیان کړې هغه فرمايي چې کلام مقصد ته درسولو ذریعه دی نو که مقصد محمود ته د صدق او کذب په واسطه رسیدل ممکن وي نوکذب حرام دی او که مقصد ته صرف د کذب له لارې رسېدل ممکن و بیا به وګورو چې حصول د دې مقصود مباح دی که واجب که مباح و نو کذب هم مباح دی او که واجب نو بیا کذب هم واجب دی له دینه معلومیږي چې کذب بذاته حرام نه دی خو لکن د کثرت ضرر له وجې حرام دی .

**سوال**: کله چې د کذب تمام اقسام حرام و نو بیا ابراهیم علیه السلام ولې درې ځایه دروغ ویلي (۱) هغه وخت چې کله قول عیدګاه ته له ځان سره بو ولو نو ده ورته وویل (اني سقیم) حالانکه هغه مریض نه و (۲) کله یې چې بوتان مات کړل بیا یې تبر د غټ بوت په غاړه کې ورواچولو کفارو چې کله د بوتانو دا حال ولیده نو له ده یې وپوښتل چې دا کار چا وکړ هغه ورته وویل (بل فعله کبیرهم) حالانکه ټول کار ده پخپله کړی و (۳) کله چې د شام باچا له ده ښځه د بي بي په اړه پوښتنه وکړه چې دا څوک دی ده ورته وویل (هذه اختي) حالانکه هغه یې خور نه وه ښځه یې وه .

**جواب** : په دغو ټولو ځایونو کې د ابرهیم علیه السلام مراد تعریض و تعریض معنا دا چې یو کلام دوه اړخه لري ته یو ته اشاره وکړې او بل ترینه واخلې لکن ظاهراً کذب معلومیده نو ځکه په حدیث کې ورته کذب وویل شول له اني سقیم ښځه باطني مرض مراد و چې زه ستاسو بوت پرستي باندې خفه یم او (بل فعله کبیرهم) څخه مطلب په هغوی حجت قایمول و چې ستاسو خدایان د ځان دفاع نشي کولی نو معبود به څنګه شي او له (هذه اختي) نه مراد دیني خور وه .

وَإِذا قِيلَ لَهُمْ لاَ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قالُوا إِنَّما نَحْنُ مُصْلِحُونَ (۱۱)

**تفسیر بیضاوي** : (وَإِذا قِيلَ لَهُمْ لاَ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ عطف على يَكْذِبُونَ أو يَقُولُ. وما روي عن سلمان رضي الله عنه أن أهل هذه الآية لم يأتوا بعد فلعله أراد به أن

أهلها لیس الذین کانوا فقط، بل وسیکون من بعد من حاله حالهم لأن الآیة متصلة بما قبلها بالضمیر الذي فیها.)

**ترجمه**: او کله چې دوی ته وویلی شي چې د ځمکې په سر فساد مه خوروئ دا ایت په یکذبون ورعطف دی او له سلمان (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) څخه روایت دی چې د دې ایت مصداق تر اوسه پورې نه دی کیدایشي چې له دې څخه مراد یوازې هغه منافقان نه وي کوم چې د نبوت په زمانه کې و بلکې له هغوی نه پس هم چې د چا دغه حال کوم چې د منافقانو و هغوی هم د دې ایت مصداق دي او تاویل په دې وجه وکړی شو چې دا آیت د خپل ضمیر په وجه له ماقبل سره تعلق لري.

**تشریح**: دلته دوه بحثونه کوي (۱) ترکیب (۲) د یو اعتراض جواب.

**لومړی بحث**: د ترکیب په اعتبار سره دوه احتماله لري اول دا چې دا (اذا) شرط سره له جزا نه په یکذبون ورعطف دی نو بیا به د کان د خبریت په وجه به محلاً منصوب وي نو معنا به دا شي د منافقانو لپاره دردناک عذاب دی د دروغو ویلو په وجه او چې دوی ته وویل شي چې فساد مه کوئ دوی وایي نحن مصلحون. دویم یا دا عطف دی په یقول باندې په دې تقدیر به دې لره محل د اعراب نه وي ځکه یقول د من لپاره صله دی او صله اعراب محلي نه لري نو معنا به دا شي چې ځینې داسې کسان دي چې د ایمان دعوه کوي بیا چې ورته وویل شي فساد مه کوئ دوی وایي نحن مصلحون. د علامه شیخزاده په نزد لومړی ترکیب راجح دی ځکه هلته د معطوف او معطوف علیه ترمنځ فصل لازم نه راځي.

**دویم بحث**: وما روي عن سلمان رضي الله عنه دې سره یو اعتراض کوي فرمایي دا دواړه ترکیبنو باطل دي ځکه د دې تراکیبو تقاضا دادی چې دا کلام به د ماقبل کلام لاندې داخل وي نو لازم به شي چې کوم مصداق د ماقبل کلام هغه به د ده هم مصداق وي او حال دا چې سلمان رضي الله عنه فرمایي چې د دې آیت مصداق تر اوسه نه دی راغلی.

**جواب**: د سلمان (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) مقصد حصر نفي کول دي یعنې د دې ایت مصداق یوازې د نبوت د وخت منافقان نه دي بلکې که اینده هم داسې خلک وه هغه یې هم مصداق دي د دې تاویل ضرورت ځکه پېښ شو چې دې جمله کې ضمیر ماقبل (من یقول) کې من ته راجع دی نو معلومه شوه چې دا ایت له ماقبل سره متصل دی.

**تفسیربیضاوي**: (والفساد: خروج الشيء عن الاعتدال. والصلاح ضده وكلاهما يعمان كل ضار ونافع. وكان من فسادهم في الأرض هَيْجُ الحُروب والفتن بمخادعة المسلمين، وممالأة الكفار عليهم بإفشاء الأسرار إليهم، فإن ذلك يؤدي إلى فساد ما فى الأرض من الناس والدواب والحرث. ومنه إظهار المعاصي والإهانة بالدين فإن الإخلال بالشرائع والإعراض عنها مما يوجب الهرج والمرج ويخل بنظام العالم. والقائل هو الله تعالى، أو الرسول صلّى الله عليه وسلم، أو بعض المؤمنين وقرأ الكسائي وهشام (قُيْل) بإشمام الضم الأول.)

**ترجمه**: یو شی له خپل اعتدال څخه خارج کیدلو ته فساد وایي او په اعتدال سره اوسیدلو ته صلاح وایی له فساد څخه هر مضر او له صلاح څخه هر نافع شی مراد دی د منافقانو په ځمکه باندې فساد دا و چې له مسلمانانو سره دوی دوکه کوله او د مسلمانانو مقابل کې یې د کفارو مرسته کوله او هغوی ته یې د راز خبرې رسولې چې له امله یې فساد خور شو او دې شیانو ته فساد ځکه ویل کېږي چې دا ټول د هغو شیانو لپاره د فساد سبب دی کوم چې په ځمکه اوسیږي لکه خلک څاروي او پټې وغیره او د ګناه اظهار هم له همدې قبیلې څخه دی ځکه په شریعت کې پابندې او بیزارې له هغو کارونو څخه وي چې له هغې نه د فساد سبب جوړیږي او له امله یې په نظام عالم کې فساد راځی او د (لاتفسدوا) ویونکی یا الله تعالی دی یا رسول الله (صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دی او یا مومنان دي او امام کسایي او هشام قیل د ضمې په اشمام سره ویلی دی.

## صلاح او فساد

**تشریح**: یو فساد دی او ددې ضد دی چې صلاح ورته ویلی شي فساد ویلی شي دیته چې یو شی له خپل اعتدال څخه ووزي او ګناه ته هم ځکه فساد ویلی شي چې ګناه هم د شریعت له معتدل چوکاټو څخه سرغړونه ده او صلاح ویلی شي یو شي په اعتدال پاتې کیدلوته بیا دا معنا عامه شوه هر مضر شي ته فساد او هر نافع شي ته صلاح وایي، نو الله تعالی منافقانو ته فرمایي فساد مه کوي په ځمکه کې چې د مومنانو رازونه کفارو ته وړئ او هم له کفارو سره د مومنانو په مقابل کې مرسته کوي.

(وقرأ الكسائي وهشام (قُيْل) بإشمام الضم الأول) دې عبارت سره د قيل قرأت بيانوي فرمايي چې امام كسايي او امام هشام (قِيْلَ) د ضمي په اشمام سره ويلى دى يعني ضمه ياء طرفته مايله كوي (قُيْلَ)

**تفسيربيضاوي**: (قالُوا إِنَّما نَحْنُ مُصْلِحُونَ جواب ل إذا رد للناصح على سبيل المبالغة، والمعنى أنه لا يصح مخاطبتنا بذلك، فإن شأننا ليس إلا الإصلاح، وإن حالنا متمحضة عن شوائب الفساد، لأن (إنما) تفيد قصر ما دخلت عليه على ما بعده. مثل: إنما زيد منطلق، وإنما ينطلق زيد، وإنما قالوا ذلك: لأنهم تصوروا الفساد بصورة الصلاح لما في قلوبهم من المرض كما قال الله تعالى: أَفَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ فَرَآهُ حَسَناً.)

**ترجمه**: دا د (اذا قيل لهم لا تفسدوا) جواب دى او مبالغې سره د ناصح ترديد دى معنا دا چې موږ لره د لاتفسدو مخاطب جوړول صحيح نه دي ځكه زموږ شان له اصلاح څخه غير بل شى نه دى او زموږ حال له فساد څخه پاک دى دا ځكه چې كله (انما) د خپل مدخول له مابعد سره د خاص كولو لپاره راځي لكه انما زيد منطلق او انما منطلق زيد او منافقانو (انما نحن مصلحون) ځكه ويلى و چې هغو ته خپل فساد د صلاح په صورت ښكاريده د هغوى د نظر خرابي د باطنې بيمارى په وجه وه لكه څنكه چې الله تعالى فرمايي (أَفَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ فَرَآهُ حَسَناً) ايا هغه كس چې د هغه بد عمل د هغه په نظر كې ښه ښكاره شو او هغه عمل يې نيک وګڼلو د مخلص مومن برابر كيدلى شي؟

**تشريح**: دلته د انما نحن مصلحون تركيب او له ماقبل سره ربط بيانوي نو فرمايي انما نحن مصلحون جزا دى د ماقبل ايت (واذاقيل لهم) لپاره او ربط دادى چې دې سره د ناصح له مبالغې سره ترديد كوي او مبالغه له دوه شيانو څخه پيدا شوي دى (۱) جملې اسميي ذكر كولو سره چې دا په دوام استمرار دلالت كوي (۲) په شروع كې د انما راولو سره چې دا په حصر دلالت كوي انما خپل مدخول له مابعد پورې منحصر كوي دلته په ايت كې هم په انما سره حصر د افرادو دى يعني په افرادو كې شركت نفي كوي كله چې هغوى ته وويل شي چې فساد مه كوئ هغوى ته خو ځانونه

مصلح ښکاري نو دوی وایي چې زموږ ناصح موږ د صلاح او فساد په مینځ کې ګڼي نو هغوی د فساد د سرکت نفي اوکړه او ځیل ځانونه یې تر صلاح منحصر کړل او ناصح ته یې یقین ورکړ چې صلاح نه علاوه دلته د فساد شایبه هم نشته.

(وإنما قالوا ذلك: لأنهم تصوروا الفساد بصورة الصلاح) دې سره د یوې شبهې ازاله کوي هغه داسې چې فساد خو امر محسوس دی ایا منافقینو دا هم نه پیژنده چې دیته یې صلاح ویلې قاضی صیب جواب ورکوي فرمایي چې فساد صلاح ګڼل د هغوی د قلبی بیمادی په وجه و لکه د ملیریا مریض ته هرڅه هرڅه ښکارې.

أَلا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلكِنْ لا يَشْعُرُونَ (١٢)

**تفسیربیضاوي**: (أَلا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلكِنْ لاَّ يَشْعُرُونَ رد لما ادعوه أبلغَ رد للاستئناف به وتصديره بحرفي التأكيد: (ألا) المنبهة على تحقيق ما بعدها، فإن همزة الاستفهام التي للإنكار إذا دخلت على النفي أفادت تحقيقاً، ونظيره (أليس ذلك بقادر) ، ولذلك لا تكاد تقع الجملة بعدها إلا مصدرة بما يتلقى به القسم، وأختها أما التي هي من طلائع القسم: وإن المقررة للنسبة، وتعريف الخبر وتوسيط الفصل لرد ما في قولهم (إنما نحن مصلحون) من التعريض للمؤمنين، والاستدراك ب لا يَشْعُرُونَ.)

**ترجمه**: خبردار بیشکه همدغه خلک مفسدین دي خو لکن دوی شعور نه لري دا د منافقانو د دعوې بلیغ تردید دی او دا رد له ټو وجو څخه بلیغ دي (۱) د جملې د استیناف په وجه (۲) په شروع کې یې د دوه حروف تاکید راوړلو په وجه چې یو (اَلا) دی چې د خپل مابعد په تحیق باندې دلالت وي ځکه چې همزه استفهامي کله په نفي باندې داخله شي هغه تحقیق فایده کوي لکه په (الیس ذلک بقادر) کې له همدې وجې د اَلا نه روسته جملې په پیل کې حرف قسم راوړل ضروري دي د دې مثال (اما) دی چې د قسم له علاماتو څخه دی او بل دویم (ان) دی چې د نسبت د تاکید لپاره راځي (۳) د خبر د معرفې راوړلو په ذریعه (۴) په مینځ کې د ضمیر فصل راوړلو له وجې او په ضمیر فصل سره د دوی د دې تعریض تردید وشو (انما نحن مصلحون) دی او دا یط له مسلمانانو سره کړی و (۵) د حرف استدراک نه روسته د لایشعرون ذکر کولو سره.

## د بليغ ترديد وجوه

**تشريح**: په دې سره الله تعالى د منافقانو د (انما نحن مصلحمون) دعوې په بليغې طريقې سره ترديد کړی دی او دلته ابلغيت له پنځو وجوه څخه پيدا شوی دی (۱) دا کلام يې جمله مستأنفه ذکر کړی او جمله مستأنفه د سوال مقدر جواب وي ګويا چې دلته سوال وشو چې مناقان په خپله دعوه کې رېښتوني دي که دروغژن الله تعالى جواب ورکړ چې نه دروغژن او مفسدين دي (۲) د دې ايت په سر کې دوه حروف د تاکيد راوړل شوي دي يو اَلا دی چې د مابعد په تحقيق دلالت کوي ځکه دا همزه د استفهام انکاري دی او دا همزه چې په نفي داخله شي تحقيق فايده کوي لکه څنګه چې په (أليس ذلك بقادر) اثبات او تحقيق فايده کړی کله چې اَلا لپاره د تحقيق شو نو ځکه د دې په مابعد په حرف قسم داخليږي لکه اما چې د قسم په سر کثر راځي دغسې اَلا هم دی لکه شاعر وايي :

اما والذي ابکی واضحک والذي === امات واحيي والذي امره امر

لقد ترکتني احسد الوحش ان اری ===واليقين منها لا يروعهما الذهر

خبردار قسم په هغه ذات چې ژړول او خندول کوي او د چا په قدرت کې چې مرګ او ژوند دی او د چا حکم چې حقيقي حکم دی ماله زما محبوبې داسې حال کې پرېښودم چې وحشي ځناور ووينم نو حسد کوم چې هغه خپلو کې جوړه جوړه ځري او د هغوی په زړه کې د زمانې خوف نشته،

و او بل اِن دی چې د نسبت د تاکيد لپاره راځي.

(۳) خبر (المفسدون) يې معرفه ذکر کړو او په تعريف د خبر سره عموما قصر د مسند على المسند اليه فايده وي او کله برعکس هم وي دلته هم منافقانو ځانو تر صلاح پورې منحصر کړي و نو دا برعکس فساد پورې منحصر شول.

(۴) په مينځ کې ضمير فصل راوړلی شو او ضمير فصل سره د هغوی د تعريض جواب وشو هغوی اما نحن مصلحون ويلي و الله تعاليورته وويل انهم هم المفسدون.

(۵) د حرف استدراک (لکن) نه روسته لايشعرون راوړلو سره منافقان د ځناورو له درجې هم لاندې وغورځيدل ځکه شعور حواس خمسه و سره يو شی ادراک کولو ته وايی او شعور ځناورهم لري کله چې دوی فساد چې امر محسوس دی نه پيژنده نو معلومه شوه چې بې شعوره دي.

(وَإِذا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَما آمَنَ النّاسُ قالُوا أَنُؤْمِنُ كَما آمَنَ السُّفَهاءُ أَلا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهاءُ وَلٰكِنْ لا يَعْلَمُونَ (۱۳)

**تفسيربيضاوي**: (وَإِذا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا من تمام النصح والإرشاد فإن كمال الإيمان بمجموع الأمرين: الإعراض عما لا ينبغي وهو المقصود بقوله: لاَ تُفْسِدُوا، والإتيان بما ينبغي وهو المطلوب بقوله: آمَنُوا.

**ترجمه**: دا آيت د نصيحت او ارشاد تکميل دی ځکه چې د ايمان کمال په شيانو حاصليږي يو له نامناسب شي ځخه ځان بچ کول او مناسب شيان پوره کول تفسدون ځخه اول شی مراد دی او له امنوا ځخه دويم شی مراد دی.

**تشريح**: دا آيت د ماقبل نصيحت لپاره تکمله دی ځکه يو شي کې د کمال حاصلولو دوه لاري دي (۱) چې کوم شي د هغې خلاف وي له هغې نه پرهيز وکړې (۲) چې کوم شي مناسب وي هغه خپل کړې نو په ايمان کې هم کمال په همدې دوه لارو حاصليږي ناصح چې کله وويل لاتفسدوا نو دوی ته يې وشوده چې د ايمان له مضراتو ځخه ځانو وژغورئ او په امنوا سره نصيحت کوي چې مناسبات د ايمان خپل کړئ نو دا نصيحت د ماقبل نصيحت لپاره تکميل شو.

**تفسيربيضاوي**: (كَما آمَنَ النَّاسُ في حيز النصب على المصدر، وما مصدرية أو كافة مثلها في ربما، واللام في الناس للجنس والمراد به الكاملون في الإنسانية العاملون بقضية العقل، فإن اسم الجنس كما يستعمل لمسماه مطلقاً يستعمل لما يستجمع المعاني المخصوصة به والمقصودة منه، ولذلك يسلب عن غيره فيقال:

زيد ليس بإنسان، ومن هذا الباب قوله تعالى: صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ ونحوه وقد جمعهما الشاعر في قوله: إذ الناسُ ناسٌ والزمانُ زمان.)

**ترجمه**: كما امن الناس د مفعول مطلق كيدو په وجه منصوب دی محلاً دی او ما يا مصدريه او يا كافه دی لكه په ربما كې چې كافه دی او په الناس كې لام لپاره د جنسيت دی او مراد ترينه هغه خلک دي چې انسانيت كې كامل دي او د عقل په تقاضا عمل كوي .

**تشريح**: دلته دوه بحثونه كوي (۱) په ما د كما كې (۲) په الف لام د الناس كې .

**لومړی بحث**: په ما كې دوه احتماله دي (۱) مصدري (۲) كافه كه كا مصدريه شي بيا به دا كاف اسمي وي او كه ما كافه شي بيا به كاف حرفي وي . ما مصدريه ديته وايي چې خپل مابعد په معنا دمصدر سره ګرځوي او ما كافه ديته وايي چې ماقبل په مابعد كې له عمل كولو بندوي لكه په ربما كې نو كه ما مصدريه شي امن الناس به د مفعول مطلق د صفت كيدو په وجه منصوب وي تقدير به داسې شي: امنوا ايمانا مشابها لايمان الناس، او كه ما كافه شي نو بيا به د مصدر مقدر نه د خالي كيدو په وجه منصوب وي .

**دويم بحث**: په الناس كې الف لام د جنسيت احتمال هم لري او د عهد خارجي احتمال هم لري دلته د جنسيت خبره كوو فرمايي چې الف لام جنسي شي معنا به داشي ايمان راوړئ لكه څنګه چې جنس خلكو ايمان راوړی و .

**سوال**: كه الف لام جنسي شي بيا خو معنا باطله ده ځكه جنس ټولو خلكو ته شامل وي او ټول خلک خو مومنان نه دي ،

**ځواب**: دلته له جنس څخه كامل افراد مراد دي او هغه خلک مراد دي چې د عقل په تقاضا باندې عمل كوي او عقل په الله تعالى او د هغه په رسول باندې د ايمان راوړلو دعوت وركوي په دې وجه بعضې افراد مراد دي .

**تفسيربيضاوي**: (أو للعهد، والمراد به الرسول صلّى الله عليه وسلّم ومن معه. أو من آمن من أهل جلدتهم كابن سلام وأصحابه والمعنى آمنوا إيماناً مقروناً بالإخلاص متمحضاً عن شوائب النفاق مماثلاً لإيمانهم.)

**ترجمه**: یا الف لام عهد خارجي دی او له دینه رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او صحابه کرام مراد دي او د هغوی په جماعت او ټولي کې ایمان راوړونکي خلک مراد دي لکه عبد الله بن سلام او د هغه ملګري رضي الله عنهم او دایت معنا دا دی چې داسې ایمان راوړئ چې له اخلاص څخه ډک وي او له نفاق څخه پاک وي د مخلصینو دایمان په شان.

**تشریح**: په الف لام کې بل احتمال د عهد خارجي دی نو په دې صورت کې به رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او صحابه کرام مراد دي او یا عبد الله بن سلام او ملګري یې مراد دي.

**سوال**: په الف لام عهدي کې تعین ضروري وي صریحي تعین وي او ضمني وي دلته چې ته خو هیڅ تعین نشته ځکه مخکې نه د رسول الله (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) او نه د نورو صحابه کرامو ذکر شوی.

**جواب**: دا ضروري نه دی چې تعین دې په الفاظو سره شوی وي بلکې کله کله تعین ذهني هم د تعین لفظي قایم مقام ګرځي نو دلته هم د منافقانو په زړونو کې مخلص مومنان متعین وو له دې وجې یې تعین لفظي ته ضرورت پېښ نه شو.

(من أهل جلدتهم) جلد د جیم په فتحې او کسرې دواړو سره استعمالیږي په معنا د ډلې.

**تفسیر بیضاوي**: (واستدل به على قبول توبة الزنديق وأن الإقرار باللسان إيمان وإن لم يفد التقييد)

**ترجمه**: له دې ایت څخه په دې خبره استدلال شوی دی چې د زندیق توبه قبوله دی او دا مسئله هم ترینه ثابته دی چې اقرار باللسان ایمان دی ورنه دې لره مقید کول بې فایدې دي.

# د زنديق توبه

**تشريح**: دلته له ايت څخه دوه مسئلې ثابتوي (۱) د زنديق توبه قبليږي او که نا؟ (۲) اقرار باللسان ايمان دی.

**لومړی مسئله**: د جمهورو فقهاو په نزد زنديق هغه چاته ويلی شي چې د اسلام اظهار وکړي او کفر پټ کړي [۱]

امام دسوقي رحمه الله وايي په ابتدا کې به ديته منافق ويل کيده فقهاو ورته زنديق نو کېښود، د فقهاو په دې اتفاق دی چې زنديق کافر دی خو اختلاف په دې کې دی چې د زنديق توبه قبليږي او که نه؟

بعض احناف او مالکيه وايي که زندقه يې مشهوره شوې وه بيا به قتلولی شي توبه يې نه قبليږي او که زندقه کې نه وه مشهوره بيا به نشي قتلولی توبه يې قبليږي خو علامه ابن عابدين رحمه الله د قاضيخان په حواله وايي چې که زنديق توبه وستلې وي او ونيول شي نو توبه به يې قبلوی شي او په دې قول فتوا هم دی او يو قول د احنافو دا هم دی چې قتلولی به شي توبه يې نه قبليږي او شوافع او حنابله وايي چې توبه د زنديق قبليږي ځکه چې منافق هم له زنادقه و څخه دي او بيا هم د ايمان حکم ورکړل شوی او د اخلاص مطالبه ترينه شويده نو معلومه شوه چې ايمان يې توبه يې مقبوله دی [۲]

---

(۱) الزَّنْدَقَةُ لُغَةً : الضِّيقُ ، وَقِيلَ : الزِّنْدِيقُ مِنْهُ ؛ لأَنَّهُ ضَيَّقَ عَلَى نَفْسِهِ ، وَفِي التَّهْذِيبِ : الزِّنْدِيقُ مَعْرُوفٌ ، وَزَنْدَقَتُهُ أَنَّهُ لا يُؤْمِنُ بِالآخِرَةِ وَوَحْدَانِيَّةِ الْخَالِقِ ، وَقَدْ تَزَنْدَقَ ، وَالاسْمُ : الزَّنْدَقَةُ ، قَالَ ثَعْلَبٌ : لَيْسَ فِي كَلامِ الْعَرَبِ زِنْدِيقٌ ، وَإِنَّمَا تَقُولُ الْعَرَبُ : زَنْدَقٌ وَزَنْدَقِيٌّ إِذَا كَانَ شَدِيدَ الْبُخْلِ ، فَإِذَا أَرَادَتِ الْعَرَبُ مَعْنَى مَا تَقُولُ الْعَامَّةُ قَالُوا : مُلْحِدٌ وَدَهْرِيٌّ ( بِفَتْحِ الدَّالِ ) ، فَإِذَا أَرَادُوا مَعْنَى السِّنِّ قَالُوا : دُهْرِيٌّ ( بِضَمِّ الدَّالِ ) لسان العرب ، والمصباح المنير ، وكشاف القناع ٦ / ١٧٧ . . وَالزَّنْدَقَةُ عِنْدَ جُمْهُورِ الْفُقَهَاءِ إِظْهَارُ الإِسْلامِ وَإِبْطَانُ الْكُفْرِ ، فَالزِّنْدِيقُ هُوَ مَنْ يُظْهِرُ الإِسْلامَ وَيُبْطِنُ الْكُفْرَ . قَالَ الدُّسُوقِيُّ : وَهُوَ الْمُسَمَّى فِي الصَّدْرِ الأَوَّلِ مُنَافِقًا ، وَيُسَمِّيهِ الْفُقَهَاءُ زِنْدِيقًا .

وَعِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ وَبَعْضِ الشَّافِعِيَّةِ الزَّنْدَقَةُ : عَدَمُ التَّدَيُّنِ بِدِينٍ ، أَوْ هِيَ الْقَوْلُ بِبَقَاءِ الدَّهْرِ وَاعْتِقَادُ

(۲) يَتَّفِقُ الْفُقَهَاءُ عَلَى أَنَّ الزَّنْدَقَةَ كُفْرٌ ، فَمَنْ كَانَ مُسْلِمًا ثُمَّ تَزَنْدَقَ ، بِأَنْ صَارَ يُبْطِنُ الْكُفْرَ وَيُظْهِرُ الإِسْلامَ ، أَوْ صَارَ لا يَتَدَيَّنُ بِدِينٍ ، فَإِنَّهُ يُعْتَبَرُ كَافِرًا ، إلا أَنَّ الْفُقَهَاءَ اخْتَلَفُوا فِي اسْتِتَابَتِهِ وَفِي قَبُولِ تَوْبَتِهِ وَبَيَانُ ذَلِكَ فِيمَا يَلِي :

يُفَرِّقُ الْحَنَفِيَّةُ وَالْمَالِكِيَّةُ بَيْنَ مَنْ تَابَ قَبْلَ الاطِّلاعِ عَلَيْهِ وَالْعِلْمِ بِزَنْدَقَتِهِ ، وَبَيْنَ مَنْ أُخِذَ قَبْلَ أَنْ يَتُوبَ ، فَمَنْ كَانَ زِنْدِيقًا ثُمَّ تَابَ إِلَى اللَّهِ وَرَجَعَ عَنْ زَنْدَقَتِهِ ، وَتَقَدَّمَ مُعْلِنًا تَوْبَتَهُ قَبْلَ أَنْ يُعْرَفَ ذَلِكَ عَنْهُ قُبِلَتْ تَوْبَتُهُ وَلا يُقْتَلُ ، وَهَذَا هُوَ مَذْهَبُ الْمَالِكِيَّةِ وَفِي رِوَايَةٍ عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ ، فَقَدْ ذَكَرَ صَاحِبُ الدُّرِّ الْمُخْتَارِ نَقْلا عَنِ الْخَانِيَّةِ أَنَّ الْفَتْوَى عَلَى أَنَّ الزِّنْدِيقَ إِنْ أُخِذَ بَعْدَ أَنْ تَابَ قُبِلَتْ تَوْبَتُهُ - وَبِهَذَا قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ - وَالْقَوْلُ الثَّانِي عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ أَنَّهُ يُقْتَلُ وَلا تُقْبَلُ تَوْبَتُهُ .

## مسئله د ایمان

**دویمه مسئله**: یوازې اقرار باللسان ته ایمان ویل کیږي اخلاص قلبي وي او که نه وي ځکه الله تعالی (امنوآ) مقید کړی له ڤید د (کما امن الناس) سره یعني ایمان راوړئ داسې ایمان چې له اخلاص څخه ډک وي نو که یوازې اقرار باللسان ایمان نه وای نو کما امن الناس قید زیاتولو سره به اخلاص طرفته د اشارې بلکل ضرورته نه و ځکه هغه پخپله له امنوا څخه معلومیدله خو اصل خبره دا دی چې ایمان په دوه ډوله دی (۱) ظاهري (۲) ایمان حقیقي. ایمان ظاهري سره دنیوي فایده حاصلیږي لکه مال او جان به دې محفوظ وي او حقیقي ایمان سره نجات حاصلیږي ایمان ظاهري یوازې په اقرار سره هم حاصلیږي او ایمان حقیقي بغیر له تصدیق او اخلاص نه

---

وَإِنِ اطَّلَعَ عَلَيْهِ قَبْلَ أَنْ يَتُوبَ وَرُفِعَ إِلَى الْحَاكِمِ فَلا تُقْبَلُ تَوْبَتُهُ وَيُقْتَلُ ، وَطَرِيقُ الْعِلْمِ بِحَالِهِ إِمَّا بِاعْتِرَافِهِ أَوْ بِشَهَادَةِ بَعْضِ النَّاسِ عَلَيْهِ ، أَوْ يُسِرُّ هُوَ بِحَالِهِ إِلَى مَنْ أَمِنَ إِلَيْهِ وَالْخِلافُ فِي قَبُولِ التَّوْبَةِ وَعَدَمِهَا إِنَّمَا هُوَ فِي حَقِّ الدُّنْيَا ، أَمَّا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى فَتُقْبَلُ تَوْبَتُهُ بِلا خِلافٍ .(حاشية ابن عابدين ٣ / ٢٩٢ ، ٢٩٣ ، ٢٩٦ ، ٢٩٧ ، وحاشية الدسوقي على الشرح الكبير ٤ / ٣٠٦ . . )

هَذَا مَذْهَبُ الْحَنَفِيَّةِ وَالْمَالِكِيَّةِ .

أَمَّا الشَّافِعِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ فَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَنْ يَتُوبَ قَبْلَ الاطِّلاعِ عَلَيْهِ أَوْ بَعْدَ ذَلِكَ .

وَالْمَذْهَبُ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ قَبُولُ تَوْبَتِهِ ، وَهُوَ رِوَايَةٌ عِنْدَ الْحَنَابِلَةِ . قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ : مَفْهُومُ كَلامِ الْخِرَقِيِّ أَنَّ الزِّنْدِيقَ إِذَا تَابَ قُبِلَتْ تَوْبَتُهُ وَلَمْ يُقْتَلْ، وَهُوَ إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَحْمَدَ وَاخْتِيَارُ أَبِي بَكْرٍ الْخَلالِ، وَقَالَ : إِنَّهُ أَوْلَى عَلَى مَذْهَبِ أَحْمَدَ .

وَيُرْوَى ذَلِكَ أَيْضًا عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ، وَالدَّلِيلُ عَلَى قَبُولِ تَوْبَتِهِ وَعَدَمِ قَتْلِهِ قَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى : { قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنْتَهُوا يُغْفَرْ لَهُمْ مَا قَدْ سَلَفَ } (سورة الأنفال / ٣٨ .) وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلا بِحَقِّ الإِسْلامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ " (حديث : " فإذا فعلوا ذلك عصموا مني . . . " شطر من حديث أوله " أمرت أن أقاتل الناس . . . " أخرجه البخاري (الفتح ١ / ٧٥ ط . السلفية ) ، ومسلم ( ١ / ٥١ ، ٥٢ ، ٥٣ ط . عيسى الحلبي ) ، عن ابن عمر واللفظ للبخاري .) .

وَرُوِيَ أَنَّ < رَجُلا سَارَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا سَارَّ بِهِ حَتَّى جَهَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ يَسْتَأْذِنُهُ فِي قَتْلِ رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَلَيْسَ يَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ ؟ قَالَ : بَلَى وَلا شَهَادَةَ لَهُ ، قَالَ : أَلَيْسَ يُصَلِّي ؟ قَالَ : بَلَى وَلا صَلاةَ لَهُ ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أُولَئِكَ الَّذِينَ نَهَانِي اللَّهُ عَنْ قَتْلِهِمْ > (. حديث : " أولئك الذين نهاني الله عن قتلهم " . أخرجه أحمد ( ٥ / ٤٣٣ ط الميمنية ) ، والبيهقي ( ٣ / ٣٦٧ ط دار المعارف الإسلامية ) عن عبد الله بن عدي ، واللفظ له ، وابن حبان ( ٧ / ٥٨١ ط . دار الكتب العلمية ) وصححه .) كَمَا يَدُلُّ عَلَى قَبُولِ تَوْبَةِ الزِّنْدِيقِ قَوْله تَعَالَى : { إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا إِلا الَّذِينَ تَابُوا } (سورة النساء / ١٤٥ ، ١٤٦).

وَالْمَذْهَبُ عِنْدَ الْحَنَابِلَةِ وَفِي قَوْلٍ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ أَنَّهُ لا تُقْبَلُ تَوْبَةُ الزِّنْدِيقِ مُطْلَقًا لِقَوْلِهِ تَعَالَى : { إِلا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا } (سورة البقرة / ١٦٠) وَلأَنَّ التَّوْبَةَ عِنْدَ الْخَوْفِ عَيْنُ الزَّنْدَقَةِ ، وَلأَنَّهُ لا تَظْهَرُ مِنْهُ عَلامَةٌ تُبَيِّنُ رُجُوعَهُ وَتَوْبَتَهُ لأَنَّهُ كَانَ مُظْهِرًا لِلإِسْلامِ مُسِرًّا لِلْكُفْرِ ، فَإِذَا وَقَفَ عَلَى ذَلِكَ فَأَظْهَرَ التَّوْبَةَ لَمْ يَزِدْ عَلَى مَا كَانَ مِنْهُ قَبْلَهَا وَهُوَ إِظْهَارُ الإِسْلامِ (أسنى المطالب ٤ / ١٢٢ ، ونهاية المحتاج ٧ / ٣٩٨ - ٣٩٩ ، والمغني ٨ / ١٢٦ - ١٢٧ ، وكشاف القناع ٦ / ١٧٧)

حاصليږي او په شريعت کې هم حقيقي ايمان مطلوب دی نو له امنوا څخه حقيقي ايمان مراد دی نو کما امن الناس د امنوا لپاره توضيح دی تقيد نه دی .

**تفسيربيضاوي**: قالُوا أَنُؤْمِنُ كَما آمَنَ السُّفَهاءُ الهمزة فيه للإنكار، واللام مشار بها إلى الناس، أو الجنس بأسره وهم مندرجون فيه على زعمهم، وإنما سَفَّهُوهُم لاعتقادهم فساد رأيهم، أو لتحقير شأنهم، فإن أكثر المؤمنين كانوا فقراء ومنهم موالي: كصهيب وبلال، أو للتجلد وعدم المبالاة بمن آمن منهم إن فسر الناس بعبد الله بن سلام وأشياعه. والسفه: خفة وسخافة رأي يقتضيهما نقصان العقل، والحلم يقابله.

**ترجمه**: دوی وايي چې ايآ موږ داسې ايمان راوړو لکه څنګه چې دې بېوقوفانو راوړی دی په دې کې همزه انکاري دی او د السفهاء لام سره الناس طرفته اشاره دی او يا ټول جنس د سفهاء طرفته اشاره دی او د منافقينو د خيال مطابق ناس هم په دې کې شامل دی او منافقانو مومنانو ته بيوقوفان ځکه وويل چې دوی يې کمعقلان ګڼل او يا دسپکوالي په وجه ځکه چې مومنان فقيران و او ځينې يې ازاد شده غلامان و لکه صهيب او بلال رضي الله عنهما او که د الناس تفسير په عبدالله بن سلام او د هغه په ملګرو سره وکړی شي نو بيا هغوی ته بيوقوف ويل د بيباکی او جسارت اظهار په وجه و او له دې وجې و چې کنافقانو د دوی فروا نه کوله او سفه د سپکې رايي نوم دی د عقل د نقصان په له امله راځي او د سفه مقابل لفظ حُلم دی .

**تشريح**: دلته مصنف درې بحثونه کوي (۱) د السفهاء د الف لام متعلق (۲) د منافقانو مومنانو د سفهاء ويلو وجه (۳) د سفاهت تحقيق.

**لومړی بحث**: اول خو دا خبره زده کړه چې دا همزه د استفهام انکاري دی . الف لام کې دوه احتماله دي (۱)جنسي دی (۲)عهد خارجي دي. که الف لام عهد خارجي شی نو په دې سره به الناس طرفته اشاره وي بيا الناس څخه معين افراد مراد وي او کنسي معنا مقصود وي او که الف لام جنسي شي نو بياه به له دې نه جنس سفهاء مراد وي او په دې کې به د منافقانو د ګمان مطابق الناس هم شامل وي ځکه له سفهاءنه د مناقانو اصل مقصد همدوی و .

**دويم بحث**: (وإنما سَفَّهُوهُم لاعتقادهم فساد رأيهم) دې عبارت سره د سفاهت او تسفيه دوه وجوهات بيانوي اول دا چې منافقانو به خپلې عقيدې او نظريې ته يوه برحق او صحيح عقيده او نظريه ويل او د مومنانو عقايد به يې داسې ګڼل چې دا نه ښايې مګر له ليونيانو او بېوقفانو سره نو ځکه به يې مومنان بېوقوفان ګڼل دويمه وجه دا وه چې منافقان زياتره شتمن او مادار خلک و او په مومنانو زياتره غريب او فقيران بلکې لا يوځه بکې ازاد شوي غلامان هم و نو ځکه يې ورته بيوقوفان ويل خو دا وجوهات هغه وخت صحيح دي چې کله الف لام سره جنس سفيه او يا ناس طرفته اشاره وي او له ناس ځخه نبی کريم (ﷺ) او صحابه کرام مراد شي عبدالله بن سلام او ملګري يې مراد نه وي او که الف لام عهد خارجي وي او ناس طرفته اشاره وي او له ناس نه مراد عبدالله بن سلام او دهغه ملګري وي نو بيا د سفيه ويلو دغه وجه نه ده ځکه عبدالله بن سلام د دوی په نزد نه کمعقل و او نه به دنيوي اعتبار سره کمزوری سړی و په دې وخت کې به د سفاهت وجه بېباکې وي او بل د دوی له ايمان راوړلو ځخه استغنا ظاهرول هم مقصود وه.

**دريم بحث**: السَّفَهُ وَالسَّفَاهُ وَالسَّفَاهَةُ : ضِدُّ الْحِلْمِ ، وَهِيَ مَصَادِرُ سَفِهَ يَسْفَهُ ، مِنْ بَابِ تَعِبَ ، وَهُوَ نَقْصٌ فِي الْعَقْلِ أَصْلُهُ الْخِفَّةُ وَالْحَرَكَةُ. سفه ، سفاء او سفاهة ضد حلم راځي هغه چاته ويلی شي چې په عقل کې يې نقص وي[1]

**تفسيربيضاوي**: (أَلا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهاءُ وَلكِنْ لاَّ يَعْلَمُونَ رد ومبالغة في تجهيلهم، فإن الجاهل بجهله الجازم على خلاف ما هو الواقع أعظم ضلالة وأتم جهالة من المتوقف المعترف بجهله، فإنه ربما يعذر وتنفعه الآيات والنذر، وإنما فصلت الآية بلاَّ يَعْلَمُونَ والتي قبلها ب لاَّ يَشْعُرُونَ لأنه أكثر طباقاً لذكر السفه، ولأن الوقوف على أمر الدين

(١) يُقَالُ : تَسَفَّهَتِ الرِّيحُ الشَّجَرَ ؛ أَيْ مَالَتْ بِهِ ، وَسَفُهَ بِالضَّمِّ ، وَسَفِهَ بِالْكَسْرِ ؛ أَيْ صَارَ سَفِيهًا ، وَالْجَمْعُ سُفَهَاءُ وَسُفَّهٌ وَسِفَاهٌ. وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ سَفِيهَةٌ ، وَالْجَمْعُ سَفَائِهُ (الصحاح ، والمصباح المنير).

وَاصْطِلاحًا : هُوَ التَّبْذِيرُ فِي الْمَالِ وَالإِسْرَافُ فِيهِ وَلا أَثَرَ لِلْفِسْقِ وَالْعَدَالَةِ فِيهِ . وَيُقَابِلُهُ الرُّشْدُ : وَهُوَ إِصْلاحُ الْمَالِ وَتَنْمِيَتُهُ وَعَدَمُ تَبْذِيرِهِ. وَهَذَا عِنْدَ الْجُمْهُورِ ( أَبِي حَنِيفَةَ ، وَأَبِي يُوسُفَ ، وَمُحَمَّدٍ ، وَمَالِكٍ ، وَهُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَ الْحَنَابِلَةِ ، وَالْمَرْجُوحُ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ ، وَهُوَ قَوْلُ وَالرَّاجِحُ عِنْدَ الشَّافِعِيَّةِ أَنَّهُ : التَّبْذِيرُ فِي الْمَالِ وَالْفَسَادُ فِيهِ وَفِي الدِّينِ مَعًا . وَهُوَ قَوْلٌ لأَحْمَدَ

والتميز بين الحق والباطل مما يفتقر إلى نظر وفكر. وأما النفاق وما فيه من الفتن والفساد فإنما يدرك بأدنى تفطن وتأمل فيما يُشَاهد من أقوالهم وأفعالهم.

**ترجمه**: خبردا همدا خلک بيوقوفان دي لکن په دې خبره نه پوهيږي له دېنه د منافقانو جواب او د هغوی په جهالت کې مبالغه مقصود دی ځکه څوک چې له خپل جهالت څخه بې خبره وي او خلاف الواقع عقايد لري نو داسر د هغه سړي په مقابل کې زيات جاهل دی چې څوک د خپل جهالت اعتراف کوي ځکه داسې سړی معذور ګڼلی کيږي او ايتونه او ويرول د هغه په حق کې مفيد نه وي او د دې ايت فاصله لايعلمون جوړه کړه او له دې مخکې ايت لايشعرون ځکه چې د سفاهت د ذکر په وجه لايعلمون کې صنعت طباق زيات دی او په دې وجه هم چط امور دينيه باندې خبريدل او حق او باطل کې فرق کول داسې کړنې دي چې ددې لپاره نظر او فکر ته ضرورت دی پاتې شو نفاق او د هغې فتنې او فساد نو هغه د منافقانو مشاهد اقوال او افعالو کې لږ غور سره هم معلوميږي.

**تشريح**: د مصنف دې عبارت سره خبرې مقصود دي لومړی د منافقانو ترديد هغه داسې چې منافقانو د سفاهت نسبت مومنانو ته کړی و نو الله تعالی په (الا انهم هم السفهاء) سره په ابلغې طريقې سره د هغوی ترديد وکړ د مبالغې وجوهات په (الاانهم هم المفسدون) ذکر شوه او دويم مبالغه په تجهيل الله تعالی دوی د لايعلمون کلمه استعمال کړه چې دوی په خپل جهل هم ناخبر دي ګويا چې دوی په جهل مرکب کې مبتلا دي او جهل مرکب په سبت سره جهل بسيط ته زيات وي دوی په خپل جهالت جاهل دي ځکه ايتونه فايده هم نه ورکوي.

(وإنما فصلت الآية بلاَّ يَعْلَمُونَ) فصلت د ماضي مجهول صيغه دی په معنا د يوې کلمې لره فاصله جوړول د ايت اخر ته فاصله ويي او طباق د باب مفاعله مصدر دی په معنا د موافقت او په معنا د جمع بين المتضادين.

**سوال**: د مخکني ايت فاصله په لايشعرون او ددې ايت فاصله په لايعلمون ولې جوړه شوه ؟

(۱) **جواب**: ددې ايت فاصله يې په لايعلمون ځکه چې دې ايت کې سفاهت ذکر دی او لايعلمون کې علم موجود دی او دا صنعت طباق دی ځکه سفاهت ناپوهي او عدم علم لره مستلزم

دی نو سفاهت او علم جمع کول جمع بین المتضادین دی او قاضي صیب اکثر طبقا ځکه وویل چې نفس طباق په لایشعرون کې هم شته ځکه عدم شعور عدم علم لره مستلزم دی او عدم علم د سفاهت ضد دی خو په دې کې واسطه راځي ځکه یې د لایشعرون په ځای لایعلمون وویل.

(۲)**جواب**: په دواړو ځایونو کې له منافقانو ادراک نفي کول مقصود دي په اول ایت کې ورته مسفد او په دویم ایت کې ورته سفیه یعنې په حق او باطل کې له امتیاز څخه بې خبره لکن د دوی په اقوالو افعالو کې فتنه او فساد کوم چې د نفاق ثمره دی په معمولي غور او فکر سره هم معلومیږي نو د دغو شیانو علم په منزله د یو شي محسوس دی نو له همدې وجې دوی ته شعور چې د احساس هم معنا دی ډېر غوره دی او د احساس د نفي لپاره لایشعرون ډېر موزون دی.

د دې په خلاف د دین په معاملاتو خبریدل او امتیاز بین الحق والباطل په سطحي نظر سره نه پېژندل کیږي بلکې د مخفي او معقولي شیانو لپاره تدبیر او تعمق او نظر او فکر ضرورت و نو د دوی د ادراک د نفي لپاره لایعلمون غوره دی چې د معقولي اشیاو لپاره استعمالیږي.

وَإِذا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قالُوا آمَنَّا وَإِذا خَلَوْا إِلى شَياطِينِهِمْ قالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّما نَحْنُ مُسْتَهْزِؤُنَ (١٤)

**تفسیربیضاوي**: وَإِذا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قالُوا آمَنَّا بيان لمعاملتهم المؤمنين والكفار، وما صدرت به القصة فمساقه لبيان مذهبهم وتمهيد نفاقهم فليس بتكرير.

**ترجمه**: کله چې منافقان له مومنانو سره ملاقي شي دوی وايي موږ ایمان راوړی دی دا د منافقانو له مومنانو او کفارو سره د معاملې بیان دی او کومو واقعاتو سره چې د منافقانو د قصې بیان شوی دی د دغې کلماتو راوړل د دوی مذهب بیانوي او د منافقانو د نفاق د تمهید لپاره دي تکرار نه دی.

**تشریح**: د منافقانو یادونه چې شروع شوې ده له هغه ځایه دوی ځانته دا کلمات استعمالوي چې امنّا بالله وبالیوم الاخر وغیر په دې کلماتو سره به دوی خپل کفر پټولو او ایمان یې ظاهرولو

الله تعالی ورته وویل وماهم بمؤمنین په دې سره یې نفاق او هغه معامله چې منافقانو به له مومنانو او کافرانو سره کوله واضحه کړه.

(وماصدرت به القصة) دې سره د یو اعتراض جواب کوي

**سوال**: (اذا لقو الذین امنوا) له څخه دا خبر معلومیږي چې دوی په ظاهر باندې د ایمان دعوې کولې او په باطن کې مومنان نه و همدغه مفهوم خو له (ومن الناس من یقول امنا) څخه هم معلومیږي او دا نه دی مکرر تکرار دی او تکرار شنیع دی.

**جواب**: هو! په ظاهر دواړه ایتونه متحد او مکرر معلومیږي خو د غوارضو لخوا جدا جدا دي د لومړي ایت غرض د منافقانو مذهبي او باطني عقیده بیانول دي او د دې ایت غرض د منافقانو مومنانو او کافرانو سره سلوک بیانول دي یا داسې اووایه چې د لړمړي ایت غرض اطلاع عن احداث الایمان دی او له دې ایت نه اطلاع عن اخلاص فی الایمان دی.

**تفسیربیضاوي**: (روي أن ابن أبيّ وأصحابه استقبلهم نفر من الصحابة، فقال لقومه: انظروا كيف أرد هؤلاء السفهاء عنكم، فأخذ بيد أبي بكر رضي الله عنه فقال: مرحباً بالصديق سيد بني تيم، وشيخ الإسلام وثاني رسول الله في الغار الباذل نفسه وماله لرسول الله صلّى الله عليه وسلّم، ثم أخذ بيد عمر رضي الله عنه فقال: مرحباً بسيد بني عدي الفاروق القوي في دينه، الباذل نفسه وماله لرسول الله صلّى الله عليه وسلّم، ثم أخذ بيد علي رضي الله عنه فقال: مرحبا يا ابن عم رسول الله صلّى الله عليه وسلّم وختنه سيد بني هاشم، ما خلا رسول الله صلّى الله عليه وسلّم. فنزلت.

**ترجمه**: روایت دی چې ابن ابی له خپلو ملګرو سره یو ځای روان و چې مخې ته د صحابه کرامو یو جماعت راروان و ابن ابی خپلو ملګرو ته وویل چې ګورئ دا بیوقوفان څنګه در څخه دفع کوم نو د ابوبکر صدیق لاس یې ونیو او وې ویل مرحبا د بنو تمیم سردار شیخ الاسلام په غار ثور کې د سول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دویم ملګری خپل مال او ځان په سول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) قربانوونکی بیا یې عمر فاروق له لاس څخه ونیو او وې ویل مرحبا ای د بنو عدي سرداره د حق او باطل جدا کونکیه! په دین کې

قوي شخصیته او په رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) باندې سر او مال شیندونکیه او بیا یې د علي مرتضی لاس ونیو او وې ویل مرحبا د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) د تره زویه او د رسول الله (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) زومه او د بنو هاشم سرداره نو چې دا واقعه پېښه شوه دا ایت نازل شو.

**تشریح**: د منافقانو سردار چې له صحابه کرامو سره دا سې معامله وکړه بیا یې خپلو ملګرو ته وویل څنګه چل مې ورسره وکړ هغوی یې ستاینه وکړه په یو روایت کې دي چې علي (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ورته وویل (یا عبد الله اتق الله ولا تنافق فإنّ المنافقین شرّ خلق الله فقال له: مهلاً یا أبا الحسن أنی تقول هذا والله إنّ إیماننا کإیمانکم وتصدیقنا کتصدیقکم) له خدایه وډار شه او منافق د الله تعالی په نزد تر هرچا بد مخلوق دی هغه ورته وویل په الله قسم زما داسې ایمان لکه ستاسو ایمان بیا صحابه کرامو چې دا واقعه نبي علیه السلام ته بیان کړه الله تعالی په دغه موقعه دا ایت نازل کړ خو[1].

## د شیخ الاسلام لقب تاریخ او مصداق

صاحب د حاشیة الشهاب علامه شهاب الدین رحمه الله وایي چې د شیخ الاسلام اطلاق به په زمانه د صحابه کرامو کې په ابوبکر او عمر رضي الله عنهما باندې کیده علامه سخاوي د خپل استاذ علامه ابن حجر رحمه الله په مناقبو کې یو کتاب لیکلی (الجواهر في مناقب العلامة ابن حجر) هلته وایي چې سلفو به شیخ الاسلام لقب هغه چاته استعمالولو چې هغه د کتاب او سنة کامل تابع و او په علومو نقلیه او عقلیه و کې متبحر و او کله به یو ولي ته هم شیخ الاسلام ویل کیدل که د چا به عمر په اسلام ډېر تیر شوی و هغه ته به یې هم ځیني وخت شیخ الاسلام ویل خو دومره دی چې په متقدمینو کې له ابوبکر او عمر رضي الله عنه پرته بل چاته داسې لقب استعمالول مشهور نه و او دوی دواړو ته هم دا لقب علي

(۱)حاشیه الشهاب علي تفسیر البیضاوي -عنایه القاضي وکفایة الراضي (۱/ ۳۳۸)

وقد أخرجه الواحديّ رحمه الله، وروي أنّ علیا رضي الله عنه قال له: یا عبد الله اتق الله ولا تنافق فإنّ المنافقین شرّ خلق الله فقال له: مهلاً یا أبا الحسن أنی تقول هذا والله إنّ إیماننا کإیمانکم وتصدیقنا کتصدیقکم، ثم افترقا فقال ابن أبيّ لأصحابه: کیف رأیتموني فعلت، فإذا رأیتموهم، فافعلوا مثل ما فعلت، فأثنوا علیه خیراً وقالوا: ما نزال بخیر ما عشت فینا فرجع المسلمون إلی رسول الله صلی الله علیه وسلّم، وأخبروه بذلك فنزلت هذه الآیة.

رضي الله عنه ورکړی و انس بن مالک رضي الله عنه فرمايي چې علي رضي الله عنه ته ځينې کسان راغلل ورته يې وويل چې تا په منبر داسې دعا کړې چې الله زما اصلاح په هغه څه سره وکړې په کوم سره دې چې د راشيدينو او مهدينو اصلاح کړې دا راشدين او مهدين څوک دي علي (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) ورته وويل(أبو بكر وعمر إماما وشيخا الإسلام) [1] دا سلسله داسې راروانه تر اتمې صدۍ په اتمه صدۍ کې به شيخ الاسلام د هغه چا لقب چې په منصب د فتوا به ناست و او يا به قاضي مقرر شوی و اګر له علم څخه به خالي او له عمر به ډېر کم و ترديې چې اوس پرې هر مفلس هم ونومول شو دا علامه ابن حجر رحمه الله له خپلې زمانې څخه شکايت کوي افسوس زموږ په حال چې نن هر يو مقرر ته خپل مينوال شيخ الاسلام لقب ورکوي که زموږ د زمانې د علماؤ القابو ته وکتل شي نو ته به ووايي چې ائمه اربعه د ده په شاګردانو کې هم نه شميرل کيږي او که علم ته يې وګورې په منبر د پرېښودو قابل هم وي.

بهرحال نن د علماؤ په اصطلاح شيخ الاسلام هغه شخصيت ته ويل کې چې د نړۍ د اکثره علماؤ په نزد مسّلم شخصيت وي او له علمي خدماتو يې عرب او عجم مستفيد شوي وي.

هر چې د دې روايت سند دی په هغې کې په دې کې سدي الصغير، کلبی او ابو صالح دي او علامه ابن حجر رحمه الله وايي سدي کذاب دی کلبي ضعيف دی او ابو صالح متهم بالكذب او د دې روايت سند سلسلة الكذب دی ځکه دې روايت کې دې چې علي (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) ته يې وويل ای د

---

(۱)حاشيه الشهاب على تفسير البيضاوي -عنايه القاضي وكفاية الراضي (۱/ ۳۳۹)

قوله: (وشيخ الإسلام) هو كان في زمن الصحابة رضي الله عنهم يطلق على أبي بكر رضي الله عنه وعمر، وهما الشيخان قال السخاوي في كتاب الجواهر في مناقب العلامة ابن حجر شيخ الإسلام: أطلقه السلف على المتبع لكتاب الله، وسنة رسوله مع التبحر في العلوم لمعقول والمنقول، وربما وصف به من بلغ درجة الولاية، وقد يوصف به من طال عمره سلام، فدخل في عداد " من شاب شيبة في الإسلام، كانت له نوراً " (۱) ولم تكن هذه مشهورة بين القدماء بعد الشيخين الصديق، والفاروق رضي الله عنهما فانه ورد وصفهما وعن علي فيما رواه الطبري في الرياض النضرة عن أنس أنّ رجلاً جاء إلى علي رضي فقال: يا أمير المؤمنين سمعتك تقول على المنبر: اللَّهُمَّ أصلحني بما أصلحت به الراشدين المهديين، فمن هم فاغرورقت عيناه وأهملهما، ثم قال: أبو بكر وعمر إماما وشيخا الإسلام، ورجلا قريش المقتدى بهما بعد رسول الله صلّى الله عليه وسلّم إلخ. سهر بها جماعة من علماء السلف حتى ابتذلت على رأس المائة الثامنة، فوصف بها من لا، وصارت لقباً لمن ولي القضاء اكبر ولو عري عن العلم والسن إنا لله وإنا إليه

قلت) ثم صارت الآن لقباً لمن تولى منصب الفتوى، وإن عري عن لباس العلم ى:لقدهزلت حتى بدا من هزالها كلاها وحتى سامها كل مفلس

نبی علیه السلام زومه او حال دا چې علي (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نکاح له فاطمې (رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) سره په دويمه هجري کې کړې وه او سورت بقره په اوله زمانه د هجرت کې نازل شوی دی.[1]

**تفسيربيضاوي**: (واللقاء المصادفة يقال لقيته ولاقيته، إذا صادفته واستقبلته، ومنه ألقيته إذا طرحته فإنك بطرحه جعلته بحيث يلقى.)

**ترجمه**: د لقاء معنا مصادفه يعنې موندل دي ويل کيږي لقيته او لاقيته هغه وخت چې کله ته يو شی پيدا کړې او ورته مخامخ شې او له همدې نه القيته اخستل شوی دی هغه وخت ويلی شي چې کله ته يو شی او غورځوې ځکه په غورځولو سره دا شی داسې شو چې بل چا ته ميلاو شي.

**تشريح**: لقاء په معنا د موندلو له القاء څخه دی او القاء غورځولو ته ويلی شي.

**سوال**: په لقاء او القاء مشتق او مشتق منه کې مناسبت پکار دی او دلته مناسبت نشته ځکه د لقاء معنا موندل او د القاء معنا غورځول دی او په دواړو کې کمال بُعد دی،

**جواب**: مناسبت موجود دی په مابين مشتق او مشتق منه کې ځکه القاء غورځولو ته وايي او په دې کې د لقاء معنا موجوده دی هغه داسې کوم شی چې ته وغورځوې ګويا هغه دې د بل چا د موندلو قابل جوړ کړو او د بل چا موندل عين لقاء دی.

**تفسيربيضاوي**: (وَإِذَا خَلَوْا إِلَى شَيَاطِينِهِمْ من خلوت بفلان وإليه إذا انفردت معه. أو من خلاك ذَمٌّ أي عداك ومضى عنك، ومنه القرون الخالية. أو من خلوت به إذا سخرت منه، وعدي بإلى لتضمن معنى الإنهاء، والمراد بشياطينهم الذين ماثلوا الشيطان في تمردهم، وهم المظهرون كفرهم، وإضافتهم إليهم للمشاركة في الكفر. أو كبار المنافقين والقائلون صغارهم. وجعل سيبويه نونه تارة أصلية على أنه من شطن إذا بعد

(۱) وقال ابن حجر: إنّ هذا الحديث منكر وذكر إسناده، ثم قال هو سلسلة الكذب لا سلسلة الذهب وآثار الوضع عليه لائحة ومما يدلّ على ذلك أنّ سورة البقرة نزلت أوّل ما قدم النبيّ صلّى الله عليه وسلّم المدينة على ما صححه المحدّثون وعليّ رضي الله عنه إنما تزوّج فاطمة رضي الله عنها في السنة الثانية من الهجرة فكيف يدعوه ختنا، فإن قلت: ليس فيما ذكر من سبب النزول أنهم قالوا آمنا قلت: سبب النزول أمر مناسب تنزل الآية عقبه، ولا يخفى مناسبته مع ما فيه من إظهار الاستهزاء،

فإنه بعيد عن الصلاح، ويشهد له قولهم: تشيطن. وأخرى زائدة على أنه من شاط إذا بطل، ومن أسمائه الباطل.)

**ترجمه**: او چې کله خلوت کې شي خپلو سرکشه مشرانو سره، خلو ماخوذ دی له خلوتُ بفلان او الی فلان څخه دا هغه وخت ویلی شي چې کله ته له فلاني سره یوازې شې او یا له خلاک ذمّ څخه ماخوذ دی په معنا د تاته مذمت متجاوز شو او له همدې نه القرون الخالية اخستل شوی دی یا له خلوت بهِ نه ماخوذ دی په معنا د ټوقې کول او د دې معنا په اعتبار سره به د خلوا په الی سره متعدي کیدل به انهاء د معنا د تضمین په وجه وې او له شیاطینو څخه مراد هغه خلک دي چې د سرکشي په د شیطانانو سره مشابه و اوس که مراد ترینه کفار وي چې خپل کفر به برملا ښکاره کولو په دې تقدیر سره یې منافقینو طرفته نسبت کول د مشارکت فی الکفر له وجې دی او ترینه لوی منافقان مراد دی او د انّامعکم ویونکي د دوی دواړو منافقان دي او سیبویه د شیاطین نون په دې بنا اصلي ښودلی چې له شطن څخه چې په معنا د بعد سره دی ماخوذ دی ځکه شیطان هم له صلاح نه بلکل لرې وي او د عربو قول تشیطن په دې باندې شاهد دی او کله یې زاید هم ورته ویلي دي په دې بنا باندې چې شیطان په معنا د شاط په معنا د بطل څخه ماخوذ دی او د شیطان په نومونو کې یو نوم باطل هم دی.

**تشریح**: مصنف دلته درې بحثونه کوي (۱) د خلا درې معناګانې ذکر کوي (۲) د شیاطینو مصداق (۳) د لفظ د شیطان مأخذ.

**لومړی بحث**: د خلا درې معناګانې دي (۱) تنها کیدل او یوازې کیدل (۲) متاجاوز کیدل (۳) مزاق او ټوقې کول د اولو معناګانو په اعتبار سره خلا په الی او باء سره متعدي کیدلی شي نو معنا به یې داسې شي چې کله دوی تنها شي خپلو سردارانو سره او هغوی سره تخلیه کوي د دویم استعمال په اعتبار به یې معنا داسې شي چې کله مومنانو څخه خپلو سردارانو ته لاړ شي او د دریم استعمال په اعتبار سره یې متعدي کیدل په الی سره د انهاء د معنا په تضمین سره مبني دی نو تقدیر د عبارت به داسې شي (سخروا بالمؤمنین منیهین السخرية الی شیاطینهم) یعنې مذاق کوي مومنانو پورې په داسې حال کې چې د مذاق سلسله خپلو سردارانو پورې رسونکي دي.

دویم بحث: د شیطانانو باره کې دوه احتماله دي (۱) د دې نه مراد هغه کافران دي چې په برملا یې د خپل کفر اظهار کولو (۲) یا له دې څخه د منافقانو لوی لوی سرداران مراد دي په دواړو صورتونو کې به لفظ د شیطان استعمال د استعارې تصریحې په بنا وي یعنې کافران یې له شیطانانو سره مشابه کړي او وجه د شبه یې کفر او سرکشي دی نو ذکر د مشبه به او مراد مشبه.

**دریم بحث**: د شیطان مأخذ یا شطن یا شاط دی په معنا د بعد او لرېوالي سره نو شیطان په وزن د فیعال په معنا بعید نو شیطان هم د الله تعالی له رحمت څخه لرې وي نو یط نوم هم شیطان دی له شطن څخه واخستل شي نو بئر شطون ویلی کیږي کله چې د کوهي اوبه لرې وي او په دې اشتقاق باندې صیغه د تشیطن شاهده دی تشیطن صیغه مزیده دی خو په مزید کې د مجرد تمام حروف اصلیه ظاهرېږي او که له شاط څخه شي ماخوذ شي بیا په معنا دباطل سره نو د شیطان په نومونو کې یو نوم هم باطل دی په دې صورت کې شیطان به په وزن د فعلان شي الف او نون به زائدتان شي او په اول صورت کې به یې نون اصلي وي هم دا د سیبویه رایه هم دی.

**تفسیربیضاوي**: (قالُوا إِنَّا مَعَكُمْ أي في الدين والاعتقاد، خاطبوا المؤمنين بالجملة الفعلية، والشياطين بالجملة الإسمية المؤكدة بإن لأنهم قصدوا بالأولى دعوى إحداث الإيمان، وبالثانية تحقيق ثباتهم على ما كانوا عليه، ولأنه لم يكن لهم باعث من عقيدة وصدق رغبة فيما خاطبوا به المؤمنين، ولا توقع رواج ادعاء الكمال في الإيمان على المؤمنين من المهاجرين والأنصار بخلاف ما قالوه مع الكفار.)

**ترجمه**: دوی وایی چې بیشکه موږ له تاسو سره یو یعنې په دین او عقیده کې مومنانو یې په جملې فعلیه سره او شیطانان یې په جملې اسمیه سره چې په (ان) سره مؤکده دی مخاطب کړل ځکه هغوی له اول نه د احداث ایمان دعوه اراده کړې وه او دویم طرف په خپل زوړ حالت د ثابت پاتې کېدلو اراده کړې وه او په دې وجه هم چې د منافقینو لپاره څه داعیه او باعث نه و په عقیده او نه په الفاظو کې رېښتونی رغبت چې په هغې سره مومنانو ته خطاب وکړي او نه دا توقع وه چې د کمال

ايمان دعوه به د مومنانو ، مهاجرينو او انصارو په مينځ کې رواج او مومې په خلاف د هغې دعوې چې د کافرانو وړاندې شوې وه چې په هغې کې د رواج توقع وه .

**تشريح**: منافقان به چې کله شيطانانو ته راغلل دوی ته به يې ويل انّا معکم يعنې موږ ستاسو ملګري يو په دين او عقيده کې دلته يو اعتراض وارديږي هغه دا

**سوال**: منافقانو مومنانو ته په جمله فعليه سره خطاب وکړو چې (امنّا) دی او جمله فعليه په حدوث دلالت کوي او شيطانانو سره يط جمله اسميه دلالت وکړو چې په ثبوت او دوام دلالت کوي او بيا په (ان)سره مؤکده هم کړه حالانکې د دې عکس کول پکار و ځکه مومناتو د دوی په ايمان کې متردد و تر دې چې د ځينو ترديد تر انکاره رسيدلی و نو له دوی سره خطاب له منکرينو سره خطاب دی او له منکرينو سره خطاب په تکيد سره کولی شي او شيطانان د دوی په نفاق کې متردد نه نو له هغوی سره خطاب په غير تاکيد سره کول پکار دی .

(۱)**جواب**: اصل کې د منافقانو مقصد د مومنانو د شک او تردد ازاله نه وه بلکې د هغوی د ايمان خالص د احداث دعوه وه او ده په امنّا سره حاصله شوې وه نو ځکه يې امنا وويلې او شياطينو سره يې په جمله مؤکدې سره ځکه خطاب وکړو چې منافقان په دې وربدل چې هسې نه په ظاهري امنّا سره دوی ته څه شک پيدا شوی وي او جدا وګڼې نو د دغه شک د ازالې لپاره او پخپل حال د ثبات لپاره يې جمله اسميه مؤکده راوړله .

(۲)**جواب**: (ولأنه لم يكن لهم باعث من عقيدة وصدق رغبة) فرمايي لکه څنګه چې د عدم تاکيد په وجه تاکيد پرېښودل کيږي دغسې په هغو الفاظو کې چې هيڅ رغبت نه تاکيد پرېښودل کيږي نو منافقانو ته په لفظ د امنّا کې رغبت نه ځکه يې تاکيد پرېښود او په انّا معکم کې پوره رغبت و ځکه جمله مؤکده کړه په ان سره ته نه ګورې دې ايت ته (ربنا اننا امنا) مومنان د خپل ايمان تاکيد کوي او حال دا چې مخاطب يې الله تعالی دی او هغه د دوی د ايمان څخه منکر نه دی .

(۳)**جواب**: (ولا توقع رواج ادعاء الكمال في الإيمان) که منافقانو د ايمان دعوه په تاکيد سره کړې وای داخو بيا د کمال ايمان دعوه وه او د دوی د کمال ايمان دعوې په مومنانو (مهاجرينو او

انصارو) کې د رواج هیڅ توقع او امید نه و ځکه ټول د دوی له حالت څخه خبر و او د انّا معکم چې کومه دعوه د هغې د رواج پوره توقع وه نو ځکه یې دوی سره خطاب په تاکید سره وکړو.

**تفسیربیضاوي**: (إِنَّما نَحْنُ مُسْتَهْزِؤُنَ تأكيد لما قبله، لأن المستهزئ بالشيء المستخف به مُصِرٌّ على خلافه. أو بدل منه لأن من حقر الإسلام فقد عظم الكفر. أو استئناف فكأن الشياطين قالوا لهم لما (قالوا إنا معكم) إن صح ذلك فما بالكم توافقون المؤمنين وتدعون الإيمان فأجابوا بذلك.)

**ترجمه**: مونږ خو ټوقې کوو دا دماقبل تاکید دی ځکه د یوشي مذاق کونکی هغه شي لره سپک ګڼونکی او هغې خلاف باندې اصرار کونکی دی یا له عبارت سابق څخه بدل دی ځکه چې چا اسلام سپک اوګڼلو هغه لوی کفر وکړو یا جمله مستأنفه دی چې کله دوی ورته انّا معکم وویل ګویا چې شیطان لة هغوی نه پوښتنه وکړه که ستاسو دا خبره صحیح وي بیا له مومنانو سره موافقت ولې کوئ او د ایمان دعوه ولې کوئ نو دوی جواب وکړ (انما نحن مستهزؤن).

**تشریح**: دلته مصنف درې په ماقبل دا عبارت ور عطف نه کړ ځکه دا عبارت د درې نحوي ترکیبونو احتمال لري (۱) د ماقبل تاکید دی (۲) د ماقبل څخه بدل دی (۳) جمله مستأنفه دی.

په اولنیو درکیبونو کې عطف د کمال اتصال په وجه پرېښودل شو ځکه د تاکید او مؤکد او د بدل او مبدل منه تر منځ کمال اتصال وي او په دریم ترکیب کې د کمال انقطاع په وجه عطف پرېښودلی شو او استهزاء بالمؤمنین کنایه دی له اصرار بالیهودیت څخه ځکه د مومنانو سپکاوی په حقیقت کې د ایمان سپکاوی دی او د ایمان سپکاوی نفي د ایمان دی. په دویم ترکیب کې له بدل څخه بدل اشتمال مراد دی هغه داسې چې انما نحن مستهزءون دلالت کوي په انما نحن معظمون الکفر او د اسلام سپکاوی د یقینا لوی کفر دی او تعظیم د کفر داسې معنا دی چې انامعکم متعلقه ده هم دیته بدل الاشتمال وایي دریم ترکیب کې چې دا جمله مستأنفه شي دا به جواب د سوال مقدر کې واقع وي سوال مقدر دا دی چې کله منافقانو خپلو سردارانو سره د انما

معکم دعوه وکړه نو مشرانو ورته وويل چې تاسو موږ سره د معيت دعوه کوي نو بيا چې مومنانو سره يو ځای شي هلته د ايمان دعوه ولې کوئ نو منافقينو جواب ورکړ انما نحن مستهزءون.

**تفسيربيضاوي**: (والاستهزاء السخرية والاستخفاف يقال: هزئت واستهزأت بمعنى كأجبت واستجبت، وأصله الخفة من الهزء وهو القتل السريع بقال: هزأ فلان إذا مات على مكانه، وناقته تهزأ به أي تسرع وتخف.)

**ترجمه**: استهزاء ټوقو کولو ار چاته سبک کتلو ته وايي چې هزءت او استهزءت دواړه يوه معنا لري لکه اجيب استجيب اصل کې د دې معنا خفت او سپکوالی دی دا له هزء څخه مأخوذ دی په معنا د عجلت سره قتلول او دا هغه وخت ويلی شي چې کله يو سړی سمدستي مړ شي د (ناقته تهزأبه) په معنا دی چې د هغه اوښ په تېزئ سره هغه په سلګو کې پرېښودونکې روانه دی.

**تشريح**: دلته د استهزاء لغوي تحقيق کوي هغه داچې د استهزاء مجرد هزء دی په معنا د سرعت او خفت فوري طور سره قتلولو ته هم هزء ويلی شي لکه هزء فلان هغه وخت ويلی شي چې کله يو کس پخپل ځای ناست وَي او مړ شي د (ناقته تهزأبه) په معنا کې هم سرعت او خفت موجود دی بيا هزء د ټوقو په معنا سره دی ځکه ټوقو کې هم خفت او سپکاوی پروت وي استهزاء او هزء دواړه په يوه معنا استعماليږي لکه اجابت او استجابت چې په يوه معنا مستعمليږي.

اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ (۱۵)

**تفسيربيضاوي**: (اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ يجازيهم على استهزائهم، سمي جزاء الاستهزاء باسمه كما سمي جزاء السيئة سيئة، إما لمقابلة اللفظ باللفظ، أو لكونه مماثلاً له في القدر، أو يرجع وبال الاستهزاء عليهم فيكون كالمستهزئ بهم، أو ينزل بهم الحقارة والهوانَ الذي هو لازم الاستهزاء، أو الغرض منه، أو يعاملهم معاملة المستهزئ.أما في الدنيا فبإجراء أحكام المسلمين عليهم، واستدراجهم بالإمهال والزيادة في النعمة على التمادي في الطغيان، وأما في الآخرة: فبأن يفتح لهم وهم في النار باباً إلى الجنة فيسرعون نحوه، فإذا صاروا إليه سد عليهم الباب، وذلك قوله تعالى: فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ).

**ترجمه**: الله تعالی دوی پورې استهزاء کوي یعنې الله تعالی دوی ته د دوی د استهزاء سزا ورکوي نو د استهزاء سزا په استهزاء سره و نومول شوه لکه څنګه چې د بدی سزا په بدی سره نومولی شي یا له دې وجې چې دا لفظ د منافقینو د لفظ مقابل کې دی یا په دې وجه چې جزا په مقدار کې د استهزاء برابره دی یا معنا دا چې الله تعالی د استهزاء وبال په هغوی باندې واپس کوي نو داسې شوه ګویا چې له منافقانو سره مذاق او ټوقې کیږي او یا مطلب دادی چې الله تعالی په هغوی باندې ذلت نازلوي چې له استهزاء سره لازم دی او له استهزاء مطلب هم دا دی یا یې مطلب دادی چې الله تعالی له دوی سره داسې معامله کوې لکه څنګه یې چې استهزاء کونکی کوي په دنیا کې خو الله تعالی په دوی د مسلمانانو احکام جاري کوي دوی ته مهلت او زیات وحت ورکوي او په نعمتونو کې ورته زیادت کوي له دې هر څه سره دا ظالمان په کفر کې مظبوطیږي او په آخرت کې به د دوی حال داوي چې کله به دوی دوزخ کې وي او مخامخ به ورته د جنت دروازه خلاصه شي چې کله د جنت دروازه ووینې نو هغې طرفته ورمنډه کړي چې کله ورته را ورسیږي دروازه به بنده شي دا منظر چې مومنان وګوري په خندا به شي دې ته الله تعالی په دې ایت کې اشاره کړي دی(فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ) نن به مومنان له کافرانو پورې خاندي.

## د الله تعالی طرفته د استهزاء نسبت

**تشریح**: د استهزاء معنا دا چې الله تعالی به دوی ته د استهزاء کولو سزا ورکړي.

**سوال**: په دې ایت کې خو د استهزاء نسبت الله تعالی طرفته وشو او د الله تعالی په حق کې استهزاء کول محال دی ځکه حکیم ذات په استهزء سره نشي متصف کیدلی او بل په استهزاء کې جهل وي لکه موسی (عَلَيْهِ السَّلَامُ) چې وویل (اتخذنا هزواً) روسته ورپسې وویل (اعوذ بالله ان اکون من الجاهلین) او د جهل نسبت هم الله تعالی ته محال دی.

مصنف له دې اعتراض څخه پنځه جوابونه کوي.

(۱)**جواب**: (يجازيهم على استهزائهم، سمي جزاء الاستهزاء) له استهزاء څخه نفس استهزاء نه دی مراد بلکې سزا د استهزاء مراد دی سزا د استهزاء ته استهزاء مجازاً وویل شول لکه الله تعالی په

قران کې سزا د بدی ته خپله بدي ويلې دی (جزاء سيئة سيئةٌ ، مکروا ومکر الله وغيره) او سزا ته ولې استهزاء ويلی شوه دا ځکه چې (اما مقابلة اللفظ باللفظ) يا خو دلته (الله يستهزءُ بهم) په مقابل د (انمانحن مستهزءون) اګر که مقاصد يې جلا جلا دي يعنې دا تسميه په صنعت مشاکلة بانې بنا دی صنعت مشاکلة معنا دا چې د يوشي له الفاظو نه په بل شي سره تعبير کول يوازې په دې وجه چې په مقابل کې کې يې واقع دی او يا ځکه سزا ته استهزاء ويلی شوه چې (لکونه مثلا) له وجې د تشبه نه يعنې د استهزاء سزا په مقدار کې له استهزاء سره مشابه دی.

(۲)**جواب**: دلته له استهزاء څخه حقيقي نسبت د استهزاء مراد نه دی بلکې مقصد دا دی چې د استهزاء وبال او ضرر په منافقينو پورې منحصر دی.

(۳)**جواب**: (او ينزّل بهم الحقارة) د استهزاء معنا دا دی چې الله تعالی په دوی باندې حقارت او ذلت نازلوي ځکه ذلت او حقارت لازم دی له استهزاء سره تسميه د لازم دی په اسم د ملزوم سره.

(۴)**جواب**: (او يعاملهم معاملة المستهزئ) حاصل دا چې منافقانو سره په دنيا کې د الله تعالی کومه معامله وه لکه د نکاح ميراث وغيره کې دوی باندې د مومنانو احکام جاري کيدلو سره سره په کفر کې مظبوطيدل دا صورت يې مشابه کړ چې استهزاء مهزؤ به ته د مذاق کونکي له طرفه پيښيږي له هغه صورت سره چې الله تعالی به يې په اخرت کې له منافقانو سره کوي چې دوی ته به د جنت دروازه ښکاره شي دوی به ورمنډه کړي چې ور ورسيږي بيرته به ورته بنده شي او يا لکه ابن عباس (رَضِيَ اللهُ عَنهُ) فرمايي چې منافقانو ته به د پل صراط د تيريدلو لپاره نور ورکړل شي چې کله روان شي نور به يې ختم شي.

**تفسيربيضاوي**: (وإنما استؤنف به ولم يعطف ليدل على إن الله تعالى تولى مجازاتهم، ولم يحوج المؤمنين إلى أن يعارضوهم، وأنَّ استهزاءهم لا يؤبه به في مقابلة ما يفعل الله تعالى بهم ولعله لم يقل: الله مستهزئ بهم ليطابق قولهم، إيماء بأن الاستهزاء يحدث

حالاً فحالاً ويتجدد حيناً بعد حين، وهكذا كانت نكايات الله فيهم كما قال تعالى: أَوَلا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عامٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ.)

**ترجمه**: الله يستهزء بهم جمله مستأنفه ذکر شوه په ماقبل يې عطف د دې لپاره ونکړی شو چې په دې خبره دلالت وکړي چې الله تعالی پخپله د هغوی د سزا ورکولو لپاره متولی شو مومنان يې د هغوی مقابلې ته رانه وستل او مومنان يې له هغوی سره جنګ کولو ته اړ نه کړل او په دې خبره دلالت وکړي چې الله تعالی به کوم سلوک منافقانو سره کوي د دې مقابله کې د منافقانو استهزاء د اعتبار وړ نه دی او داسې يې ونه ويل (الله مستهزء بهم) ځکه بيا به دا قول د منافقانو د قول مطابق شوی و او د دې خبرې ته د اشارې کولو لپاره چې استهزاء وخت په وخت او نوې نوې پيدا کيږي او د منافقانو په حق کې د الله تعالی عذابونه داسې نه دي لکه څنګه چې دې آيت (أَوَلا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عامٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ) کې اشاره دی ايا دوی نه ګوري چې هر کال په امتحان کې يو يا دوه ځله مبتلا کيږي.

**تشريح**: قاضي صيب دلته د دوه خبرو وضاحت کوي (۱) دا جمله په ماقبل ولې عطف نه شوه بايد په ماقبل عطف شوې وای نو جواب دا کوي چې د سياق تقاضا دا وه چې دا جمله دې مستأنفه شي ځکه جمله مستأنفه جواب د سوال مقدر وي او دلته دغه ضرورت محسوسيده هغه داسې چې کله الله تعالی د منافقانو استهزا بالايمان ذکر کړه او د پط انتها شنيع او قبيح کار و نو چې چا به هم دا استهزا واوريده ويل به يې چې د داسې خلکو ځای به کوم وي نو الله تعالی دغو خلکو ته جواب ورکړ چې دوی ته به په دنيا او اخرت کې سزا وي دا جمله يې مستأنفه ذکر کړه.

(۲) خبره دا چې په دې جمله کې مبتدا صرف لفظ د الله تعالی دی او حال دا چې د ظاهر تقاضا دادی چې لفظ د مؤمنين دې مبتدا شي ځکه د منافقينو استهزاء دوی پورې وه. جواب داسې کوي چې لفظ د الله تعالی ځکه مبتدا شوه چې دې کې اشاره دی الی تعظيم المؤمنين يعني مومنان د الله تعالی په نزد دومره قابل احترام دي چې هغوی استهزاء طرفته محتاج نه کړل بلکې الله تعالی د دې کار نګران او متولي شو يا دا جواب کوي چې مومنانو ته به هغه وخت د استهزاء د جواب ضرورت وای

چې الله تعالی د دوی له طرفه د هغوی د استهزاء ځخه قوي جواب نه وای ورکړی او کله چې د کوټک جواب په توپک ورکړل شو نو منافقانو استهزاء بلکل بې اعتباره او هيڅ شی وګرځېده.

(ولعله لم يقل. الله مستهزئ بهم) سره دفع د يو اعتراض کوي هغه دا

**سوال**: (الله يستهزئ بهم) په جواب د (انما نحن مستهزءون) واقع دی او د دې جملې دواړه اجزاء اسمونه دي يکار خو دا وچې د (الله يستهزئ بهم) جملې هم دواړه اجزا اسمونه وای بلکې دلته اول جز اسم او دويم فعل دی د (الله يستهزئ بهم) په ځای الله مستهزئ بهم ويل پکارو.

**جواب**: په (الله يستهزئ بهم) سره د منافقانو د سزاګانو ذکر کول مقصود دی خو کله چې په يو ډول او يوه طريقه چانه ورکولی شي هغه په مجرم ډېره دردونکې نه تماميږي دلته يې د دې جملې دويم جز ځکه فعل راوړ چې په دې خبره دلالت وکړي چې الله تعالی به منافقانو ته د استهزاء په بدل کې وخت په وخت نوې نوې سزاګانې ورکوي له همدې وجې الله تعالی ورته فرمايي(أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عامٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ)

**تفسيربيضاوي**: (وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيانِهِمْ يَعْمَهُونَ من مد الجيش وأمده إذا زاده وقواه، ومنه مددت السراج والأرض إذا استصلحتهما بالزيت والسماد، لا من المد في العمر فإنه يعدى باللام كأملى له. ويدل عليه قراءة ابن كثير (ويمدهم).

**ترجمه**: او مهلت ورکوي دوی ته چې خپله سرکشي کې پټبمانه شي يمدّ د مد الجيش او امده ځخه اخستل شوی دی او دا هغه وخت ويلی شي چې کله په لښکر کې افراد زيات شي او لښکر ته قوت ورسوي او مددت السراج او مدوت الارض هم له همدې نه مشتق دی دا هغه وخت ويلی شي چې کله په ډېوه کې تيل او په ځمکه کې کهاد او سَرَه واچولی شي او له مد فی العمر ځخه نه دي ماخوذ ځکه مد فی العمر د (املی له) په شان متعدي کيږي په لام سره او په دې باندې د ابن کثير قراءت(يُمدهم) په ضمې د يا سره.

**تشريح**: د يمد مأخذ مدّ دی او مدّ په دوه معناګانو سره مستعمل دی (۱) الحاق الشي بما يقويه يعنې داسې شی زياتول چې چې په هغې سره شي ته قوت رسيږي (۲) په معنا د مهلت

ورکولو او مد فی العمر له لومړئ معنا څخه مأخوذ دی له دویمې څخه نه دی مأخوذ د دې لپاره مصنف دوه دلایل بیانوي.

**لومړی دلیل**: د ابن کثیر په قرءت کې یمد له باب افعال څخه دی او باب افعال په دویمه معنا کې نه استعمالیږي او حتی الامکان په دواړو قرءتونو کې توافق غوره دی او توافق هغه وخت راځي چې کله مدّ په اولې معنا سره مأخوذ اومنلی شي.

**دویم دلیل**: مدّ بالمعنی لاولی متعدي بفسه دی او بالمعنی الثاني متعدي په لام سره دی چې ایت ته نظر وکړو هلته هم مد متعدي بلاواسطه دی نو له همدې وجې یمد له مدّ څخه مأخذ دی خو بالمعنی اولی شیخ زاده دلته اعتراض نقل کړی دی هغه دا چې یمد مأخوذ دی له مد ثاني څخه خو دلته د دې صله لام حذف شوی دی او بلاواسطه په طریقې د ایصال متعدي جوړ کړی شوی دی. جواب دادی چې حذف او ایصال منل خلاف الاصل دي او بغیر له دلیل څخه د خلاف الاصل ارتکاب نشي کیدلی.

**تفسیربیضاوي**: (والمعتزلة لما تعذر عليهم إجراء الكلام على ظاهره قالوا: لما منعهم الله تعالى ألطافة التي يمنحها المؤمنين وخذلهم بسبب كفرهم وإصرارهم، وسدهم طرق التوفيق على أنفسهم فتزايدت بسببه قلوبهم ريناً وظلمة، تزايد قلوب المؤمنين انشراحاً ونوراً).

**ترجمه**: او په معتزله باندې چې کله دا خبره ګرانه شوه چې کلام دې په خپل ظاهر باندې پرېښودلی شي نو هغوی وویل چې کله الله تعالی له کفارونه هغه الطاف منع کړی کوم چې مومنانو ته ورکوي الله تعالی د کفر او اصرار علی الکفر په وجه او په خپل ځان باندې د توفیق د لارو بندولو په وجه د هغوی مرسته پرېښودله نو د همدې اسبابو په وجه د کفارو په زړونو باندې زنګ ولګیدل او نور هم زیات شول لکه څنګه چې د مومنانو په زړونو کې نور او انشراح زیات شو.

## څلور توجیهات

**تشریح**: کله چې د له ظاهر د ایت څخه دا خبره ثابته شوه چې الله تعالی د منافقینو په سرکشي کې زیادت راولي او په سرکشي کې زیادت فعل قبیح دی او د قبیح فعل نسبت الله تعالی ته نه کیږي له همدې وجې معتزله په دې ایت کې څلور توجیهات کوي.

**لومړی توجیه**: په (یمدهم فی طغیانهم) دوه مجازه دي یو مجازِ لغوي او بل مجاز عقلي د مجاز لغوي حاصل دا چې له مد فی طغیانهم څخه په طغیان کې اضافه کول نه دي مراد بلکې مراد له دې څخه زنګ زیاتول دي او زنګ زیاتول بالواسطه سبب دی یعنې د کفارو طغیان د دې سبب شو چې د الله تعالی له توفیق څخه یې محرومه کړل او د الله الله تعالی د توفیق څخه محرومیت سبب شو لپاره د زیادت د زنګ د هغوی د زړونو نو ذکر د سبب مراد ترینه مسبب دا مجاز لغوي دی.او د مجاز عقلي حاصل دا چې د زنګ زیاتول هم د کفارو کار او فعل دی خو دمره دی چې د الله تعالی د نیولو سبب شو په حیثیت د سبب یې د الله تعالی په طرف نسبت شو او د فعل نسبت مسبب طرفته مجازٌ عقلي وي.

(لما منعهم الله تعالی ألطافة) الطاف جمع د لطف دی او لطف اطاعت او بندګي ته وایي او په ګناه باندې اماده کولو ته وایی نو که د اطاعت لاره یې مهیا او برابره کړه دیته توفیق او که د ګناه پرهېښودلو ته یې اماده کړ دیته عصمت وایي نو د لطف مفهوم دواړو ته عام دی.

**تفسیربیضاوي**: ( وأمكن الشيطان من إغوائهم فزادهم طغياناً، أُسْنِدَ ذلك إلى الله تعالى إسناد الفعل إلى المسبب مجازاً ، وأضاف الطغيان إليهم لئلا يتوهم أن إسناد الفعل إليه على الحقيقة ، ومصداق ذلك أنه لما أسند المد إلى الشياطين أطلق الغي و قال وَإِخْوانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الغَيِّ.)

**ترجمه**: او یا چې کله الله تعالی شیطان ته د دوی په سرکشی باندې قدرت ورکړو نو شیطان د دوی سرکشي نوره هم زیاته کړه نو د دې نسبت الله تعالی طرفته وکړی شو لکه څنګه چې د فعل نسبت د هغه د مسبب طرفته کولی شي او د طغیان نسبت هم د منافقینو طرفته په دې وجه اوشو چې دا وهم پیدا نشي چې د (یمدّ) نسبت حقیقتا د الله تعالی طرفته دی او د دې مصداق دا دی چې

کله الله تعالی د مد نسبت د شیطانانو طرفته وکړو نو د غی اطلاق یې وکړو او وې ویل د دوی ورونو د دوی ګمراهي نوره هم زیاته کړه.

**تشریح دویمه توجیح**: حاصل دا دی چې د یمد نسبت د الله تعالی طرفته مجاز عقلي دی هغه داسې چې سرکشي کې اضافه کوونکي شیطانان او سرداران و او په حقیقت کې په خپله کفار او منافقین و البته د شیطان د وسوسې په وجه وشو او په دې کار باندې شیطان ته قدرت الله تعالی ورکړی و نو مونږ داسې ویلو شو چې د طغیان او سرکشي اضافه کونکي په خپله هم دوی و د شیطانانو اغوا سبب قریب او د الله تعالی قدرت سبب بعید دی نو د مسبب کیدو له حیثیته یې الله تعالی ته نسبت وشو او د دې مجاز لپاره قرینه دا دی چې په (طغیانهم) کې د طغیان نسبت کفارو ته شوی او نسبت یې الله تعالی طرفته مجاز دی ځکه چې فاعل شیطان دی او په دې ایت کې (وَإِخْوانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ) د سرکشي نسبت شیطانانو ته شوی.

**تفسیربیضاوي**: (أو أصله يمد لهم بمعنى يملي لهم ويمد في أعمارهم كي يتنبهوا ويطيعوا، فما زادوا إلا طغياناً وعمهاً، فحذفت اللام وعدى الفعل بنفسه كما في قوله تعالى: وَاخْتارَ مُوسى قَوْمَهُ.)

**ترجمه**: او یا معتزله وایي چې یمدهم په اصل کې یمدلهم دی په معنا د (یملی لهم او یمد فی اعمارهم) یعنې مهلت ورکول او عمر اوږدول د عمر اوږدولو معنا ځکه وه چې هغوی به بیدار شي او اطاعت وکړي لکن په هغوی کې د دې په ځای سرکشي او ګمراهي زیاته شوه بیا لام حذف کړی شو او فعل بلاواسطه متعدي شو لکه څنګه چې الله تعالی فرمایي (وَاخْتارَ مُوسى قَوْمَهُ) کې.

**تشریح دریمه توجیه**: حاصل دا چې په یمدهم کې حذف او ایصال شوی دی هغه داسې چې یمدهم په معنا د یمدلهم دی په معنا د اوږدوالي دعمر بیا لام حذف شو لکه څنګه چې (وَاخْتارَ مُوسى قَوْمَهُ) اصل کې من قومه و من ترینه حذف شو او اختار بغیر له واسطې مفعول طرفته متعدي شو دغسې د یمد صله لام هم حذف شو او یمد د هم ضمیر مفعول طرفته بغیر له واسطې متعدي شو نو مطلب او خلاصه دا شوه چې الله تعالی د هغوی عمر ځکه اوږدولو چې کیدی شي دوی له غفلت څخه بیدار شي او په

مستقیمه لاره برابر شي خو د دوی د عمر په زیادت سره په ګمراهۍ او سرکشۍ کې لا ترقي وکړه د دې توجیه په بنا به طغیانهم او یعمهون دواړه د یمدهم د ضمیر مفعول نه خالي شي.

**تفسیربیضاوي**: (أو التقدیر یمدهم استصلاحاً، وهم مع ذلك یعمهون في طغیانهم.

**ترجمه**: او یا تقدیر دا چې یمدهم استصلاحاً یعنې الله تعالی په دوی کې د هدایت شیان اضافه کوي د دوی د اصلاح په خاطر خو دوی له دې هر څه سره په سرکشي کې لګیا دي.

**تشریح څلورمه توجیه**: حاصل دا چې د یمدهم فی طغیانهم عبارت تقدیر داسې دی یمدهم استصلاحاً یعنې الله تعالی د هغوی د اصلاح او نجات په خاطر د لائل نقلیه او عقلیه زیاتوي چې د دوی رهنمایي وشي منافقین د دې هر څه سره په خپلو سرکشیو کې سرګردانه دي.

د مصنف له (وهم مع ذلك یعمهون في طغیانهم) عبارت څخه معلومیږي چې په دې توجیه کې في طغیانهم د یعمهون سره متعلق دی او په یعمهون کې به هم د مبتداء محذوفې خبر وي نو په دې سره به دا جمله مستأنفه شي یعنې د یمد په اوریدو سره سوال پیدا شو چې هر کله الله تعالی د هغوی اصلاح او نجات غواړي نو د هغوی څه حال و؟ جواب ورکړل شو وهم مع ذلک یعمهون في طغیانهم خو له دې دواړو توجیهاتو څخه دا لازمیږي چې الله تعالی د یو شي اراده کوي او هغه نه پوره کیږي ګویا چې د الله تعالی په اراده او مراد کې تخلف دی!

**تفسیربیضاوي**: (والطغیان بالضم والکسر کلقیان، والطغیان: تجاوز الحد في العتو، والغلو في الکفر، وأصله تجاوز الشيء عن مکانه قال تعالی: إِنَّا لَمَّا طَغَى الْمَاءُ حَمَلْنَاكُمْ. والعمه في البصیرة کالعمی في البصر، وهو: التحیر في الأمر یقال رجل عامه وعمه، وأرض عمهاء لا منار بها، قال: أَعْمَى الهُدَى بالجاهِلین العمهْ)

**ترجمه**: طغیان په ضمې او کسرې دواړو سره دی لکه لُقیان او لِقیان چې په ضمې او کسرې سره لوستلی شوی دی او طغیان په سرکشي کې له حد څخه تجاوز ته او په کفر کې غلو کولو ته ویلی شي او اصل معنا یې دی یو شی له خپل مکان نه زیاتیدل الله تعالی فرمایي: چې کله اوبه له خپل حد څخه زیاتې شوې نو تاسو په کشتۍ کې سواره کړئ او عمه په فقدان د بصیرت کې

مستعمل دی لکه عمی په فقدان د بصر کې مستعمل دی او معنا د عمه په معامله کې پرېشانه کېدل دی لکه ویلی شي (أرض عمهاء) هغه ځمکه چې څه نوم او نښان نه لري شاعر وايي:

أَعْمَى الهُدَى بالجاهِلين العمهْ.

**تشریح**: طغیان لکه څنګه چې په ضمې د طاء سره لوستلی شوی دغسې په کسرې د طاء سره هم جایز دی لکه څنګه چې لقیان په ضمې او کسرې د لام سره لوستلی شي او لقیان مصدر دی په معنا د لقاء سره او طغیان په معنا د سرکشي سره دی لکه علامه واحدي وايي : کل شيء جاوز القدر فقد طغی. د فرعون په اړه هم الله تعالی فرمايي (انه طغی) ای اسرف فی العصیان حتی ادعی الربوبیة . او عمه د بصیرت د نشتوالي په معنا سره دی لکه عمی د بصر د نشتوالي په معنا سره دی قاضي صیب په تائید کې د رَؤْبه شاعر د شعر یوه مصرعه پیش کوي پوره شعر داسې دی:

(و مهمه اطرافه فی مهمه === اعمی الهدی بالجاهلین العمه)

دا واو په معنا د رُبّ سره دی نو معنا دا شوه: ډېر ځنګلات داسې دي چې دهغې غاړې او اطرافه له نورو سره متصلې دي د هغې نښانې په لارو باندې مخفي دي کوم چې د لارو نه ناخبره خلک دي. محل د استشهاد په شعر عمه دی چې په معنا د فقدان بصیرت او حیرانتیا سره مستعمل دی.

وصلّى الله تعالى على خير خلقه محمّد وعلى آله واصحابه وازواجه واهل بيته اجمعين.

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِيِّ وَعَلَى آلِهِ وَاَصْحَابِهِ.

ربي اغفرلي ولوالدي يوم يقوم الحساب ربي ارحمهما كما ربياني صغيراً

اللّٰهُمَّ احسن عاقبتنا في الامور كلها واجرنا من خزي الدنيا وعذاب الاخرة

تمت بعون الملك والوهاب

دوهم ځل تصحیح/ ۲۱ ربیع الثاني/ ۱٤٤۱ هـ ق.

وقت/ ۱۰:۱۵ / دپنج شنبې شپه.

# دکتاب د مضامينو فهرست

| موضوع | صفحه |
|---|---|

تمت بالخیر